



# زاهد
# پښتو ـ پښتو
# سيند




دویمه برخه

د افغانستان د علومو اکاډيمي
د پښتو څېړنو نړيوال مرکز

عبدالقيوم زاهد مشواني



خپرندوی دانش خپرندويه ټولنه

# ځ

**ځ** (ǰe) ښځ.م. د پښتو الفبې لسم توری دی.

**ځاځل** (ǰāǰә́l) مص.مت. په غوسه کول، قهرول.

**ځاځمن** (ǰāǰmán) ص. پرغزناک، غوسه ناک.

**ځاځن** (ǰāǰán) ص. و.گ.: ځاځمن.

**ځار** (ǰār) نر.م. ج. ۱) جار، قربان، فدا، جيو.

**ځارځار** (ǰārǰār) نر.م. ج. ۱) جارجار، قربان قربان؛ ۲) ژړا، فرياد.

**ځارځپلی** (ǰārǰapálay) ص. خوار و ځار، ځلبل، ځلبلاند.

**ځارول** (ǰārawә́l) مص. مت. قربانول، نثارول.

**ځارېدل** (ǰāredә́l) مص.ل. جارېدل، قربانېدل، فدا کېدل، نثارېدل.

**ځازول** (ǰāzә́l) مص.مت. گرول، ښونکاري کول، شوکارول، نوکاري کول.

**ځازلی** (ǰāzә́lay) مف. نر.م گرولی، شوکاری کړی شوي، نوکاری کړی..

**ځاگی** (ǰāgáy) ښځ.م. ځاکی، د غنمو گېډۍ، سترۍ، ځپتی، وځه، د غنمو وځه.

**ځالگی** (ǰālagáy) ښځ.م. ۱) د ځالې د تصغير نوم؛ ۲) د اوسېدو یا استېدو ځای.

**ځاله** (ǰāla) ښځ.م. (ج. ځالې) منځرله، جاله، ښخرلی، د الوتونکيو د اوسېدو ځای.

**ځان** (ǰān) نر.م. ۱) تن، وجود، جسم؛ ۲) ساه، دم، روح؛ ۳) شها، شهی، شهو، محبوبه.

**ځان ازمېښت** (ǰānazmeṣ́t) ا. ځان ازمېښه، ځان پېژندل.

**ځان باوری** (ǰānbāwaráy) ص. پرځان باور لرونکی، پرځان دادمن.

**ځان بسيا** (ǰānbasyā́) ص. مړه خوا، موراروا، په ځان دادمن.

**ځانبوختيا** (ǰānboxtyā́) ا. زياتره د شعر و شاعرۍ په اړه، چې شاعر د ځان په اړه لیږو د بېر غمېږېږ

**ځانپالن کېټ** (ǰānpālankéṭ) ا. د ځانپالنې دود، د شخصیت پالنې کېش.

**ځانپلورلی** (ǰānplorálay) ص. ځان خرڅ کړی، مریی، ګوداګی.

**ځانپېښې** (ǰānpéṣe) ا. ځان ژوند لیک، ژوند پېښې.

**ځانتنی** (ǰāntanáy) ص. په ځان پورې اړوند، ځاني، ځانګړی.

**ځانته** (ǰā́nta) ص.نب. ځانله، یوازې، بېل، جلا.

**ځانجوړی** (ǰānjóṛay) ص. چې خپل ځان پخپله جوړ کړی یا رسولی وي.

**ځان ځاروونی** (ǰānǰārawū́nkay) فا. نرم. فدایي، قربانېدونکی، ځارېدونکی، جارېدونکی.

**ځان ځاني** (ǰānǰāní) ښځ.م. ۱) خپل خپل ځانته؛ ۲) خودخواهي، خودي؛ ۳) بې وسیلې توب.

**ځانځولی** (ǰānǰoláy) ښځ.م. ج. دانګولی، ځنځولی، د کوچنیانو یو دول لوبه ده.

**ځانځومړی** (ǰānǰūmṛáy) ص. نـر.م. ۱) تمپ، کمزوری؛ ۲) سست، ناراسته، لټ.

**ځان خورګي** (ǰānxorgí) ښځ.م. زړه خورنه، ځان کړونه، ځیګرخوني.

**ځانخوښي** (ǰānxwaṣí) ښځ.م. ځان خوښونه، ځان ته ځوینه، ځان په څه کې حسابونه.

**ځانخوښی** (ǰānxwáṣay) ص. نـر.م. په ځان مین، ځان په څه کې حسابوونکی.

**ځاندار** (ǰāndā́r) ص.نر.م. جاندار، د ساه خاوند، روح لرونکی، ساکښ.

**ځاندره** (ǰāndará) ښځ.م.(ج. ځاندرې) ۱) ځانده، شکل، بڼه، صورت؛ ۲) ځانګه، وجود، تنه.

**ځان ساتی** (ǰānsā́tay) ص.نـر.م. محتاط، ځان ژغورونکی، احتیاط کوونکی، محافظه کار.

**ځانسپاری** (ǰānspáray) ص. ځان سپارونکی، ځانتېری، ځان تسلیمونکی، سلامي.

**ځانستای** (ǰānstā́y) ص. ځان ستایونکی، ځانبود، ځانښکاری.

**ځان ستاینه** (ǰānstāyə́na) ښځ.م. خود ستایي، د ځان صفت کونه.

**ځان ستایونی** (ǰānstāyū́nay) ص. نـر.م. د ځان صفت کوونکی، ځان ستایونکی.

**ځان ښکاری** (ǰānskā́ray) ص.نـر.م. ځان ښکاره کوونکی، خودنما، تظاهر کاره.

**ځان غتاوی** (ǰānğaṭā́way) ا. لـویي، ستروی، سترچاري، ځان غټ ښکاره کول.

**ځانغودي** (ǰānğodí) ا. ځانمیندي.

**ځانکاری** (ǰānkā́ray) ص. خپلکاری، خپل چاری، خودکار.

**ځانګړتیا** (ǰāngaṛtyā́) ښځ.م. ۱) یوازیتوب، ګوښیتوب؛ ۲) خصوصیت، مشخصه.

**ځانګړنوم** (ǰāngaṛnū́m) ا. ځانګړی نوم، عَلَم، مشخص نوم.

**ځانګړی** (ǰāngáṛay) ص.نر.م. (ج. ځانګړي) ۱) یوازې، بېل؛ ۲) خپلواک؛ ۳) مشخص، مخصوص، ممتاز.

**ځانله** (ǰā́nla) ص. نب. ۱) یـوازې، بېل، جلا، ځانته، ځانګړی؛ ۲) دځان لپاره.

**ځانمن** (ǰānmán) ص. نر.م. مغرور، کبرجن.

**ځانمنتوب** (ǰānmantób) نـر.م. لـویي، خود بیني، غرور، کبر، تکبر، ځان لیدنه، ځانمني.

**ځانمنی** (ǰānmánay) ص. نر.م. مغرور، کبرجن.

**ځانواله** (ǰānwā́la) ا. ځانخوښي، خودپسندي، خودخواهي.

**ځانویني** (ǰānwiní) ص. ښاځمني (غرور)، خودبیني.

**ځاني** (ǰānī) ص. نب. ۱) له ځان سره تعلق لرونکی ۲) خوراګران، ډېر ضروري.

**ځانه** (ǰ̌āna) ښځ.م. (ج. ځانې) وګ. زانه.

**ځاو** (ǰ̌āw) نر.م. مارش، د حملې او د تګ حکم.

**ځاوو** (ǰ̌āwū́) نر.م. ځروبی، زاوه، جروبی.

**ځای** (ǰ̌āy) نر.م. ۱) جای، تهکانه، مکان، محل؛ ۲) مقام، درجه؛ ۳) وخت او موقع.

**ځای پر ځای** (ǰ̌āyp(ə,u)rǰ̌ā́y) ځای په ځای، په ځای، مقامي؛ ۲) وار د واره، ټک له ټکه.

**ځای غلی** (ǰ̌āyǧalə́y) ښځ.م. هغه ښځه چې تر لنګون (زېږوني) وروسته درد ولري.

**ځایکی** (ǰ̌āykáy) نر.م. ګل زری، د نښې منځ، هدف، پخپله هدف.

**ځایګی** (ǰ̌āygáy) نر.م. ۱) په تیر، پوخ په نښه؛ ۲) تاکلی ځای؛ ۳) ځای، د ښځې تناسلي آله؛ ٤) د ځای د تصغیر نوم؛ ۲) نښه، نخښه.

**ځایګیر** (ǰ̌āygír) ص. نر.م. ۱) دېره، استوګن، اوسېدونکی؛ ۲) په زړه کې، د زړه د ننه.

**ځایناستی** (ǰ̌āynā́stay) ص. نر.م. ۱) جانشیني، ولیعهد، تقاعد؛ ۲) مجازأ زوی، بچی.

**ځایول** (ǰ̌āyawə́l) مص. مت. ۱) جایول، ځای پیدا کول، خوندي کول؛ ۲) زغمل، پېځل.

**ځایېدل** (ǰ̌āyedə́l) مص. ل. ۱) ځای کېدل، کوم شي ته په زور یا بې زوره ځای مېندل کېدل؛ ۲) زغمل کېدل، تحمل کېدل.

**ځبځب** (ǰ̌ā́bǰab) ص. نر.م. مېده مېده، ذره ذره.

**ځب زیری** (ǰabziráy) ص. نر.م. ببر زیری.

**ځبل** (ǰabál) مص. مت. کوټل، مېده کول، ځپل.

**ځبله** (ǰáb ǰáb) یو تر بله، یو له بله، په خپلو کې.

**ځبلی** (ǰabə́lay) مف. نر.م. ۱) ځپلی، کوټلی، مېده کړی؛ ۲) خوار، ذلیل؛ ۳) ګن، ببر.

**ځبن** (ǰabə́n) ص. نر.م. ۱) خبرن، خبهن، ځبهن؛ ۲) ناپوه، احمق؛ ۳) ځیږ، سخت.

**ځبوالی** (ǰabwā́lay) نر.م. ګنوالی، ګوروالی.

**ځبول** (ǰabawə́l) مص. مت. ۱) توت ځنډل، توت ټکول؛ ۲) ځپول، شړول.

**ځبونکی** (ǰabū́nkay) نر.م. مېده کوونکی، کوټونکی، پستوونکی.

**ځبېدل** (ǰabedə́l) مص. ل. ۱) ګنېدل، ګوربېدل؛ ۲) توت ټکېدنه، توت ځنډل کېدنه.

**ځبېښل** (ǰ̌ besə́l) مص. مت. (له ټولو صیغو سره) وګ. زبېښل.

**ځپلی** (ǰapə́lay) نر.م. کوټلی، وهلی ځپلی.

**ځځا** (ǰəǰā́) ښځ.م. جزجز، د غوښې د وریتېدو اواز.

**ځځبوکی** (ǰaǰbūkáy) نر.م. ځځغولی، جزغولی.

**ځځغولی** (ǰaǰǧólay) نر.م. جځغولی، جزغولی، خځوزی، هغه مواد چې دوازګې د وېلې کېدو وروسته په لوښي کې پاته کېږي.

**ځځېرل** (ǰaǰerə́l) مص. مت. ۱) توته توته کول، ورزل؛ ۲) سپکول، بنکنځل؛ ۳) چیچل.

**ځخه** (ǰə́xa) نر.م. جوک، د توپک د نښې ځای؛ ۲) دلرګي زخه؛ ۳) زخه، وچه دانه ده چې انسان پر پوست باندې راخېژي.

**ځرځ** (ǰarǰ̌) ص. نر.م. ۱) سور شین بخون رنګ- ځرځې سترګې؛ ۲) وګ. زرغ.

**ځری** (ǰəráy) نر.م (ج. ځري) ۱) قاصد، استازی؛ ۲) جاسوس؛ ۳) جری، نظیر، د توپک د فاصله تاکلو او نښه نیولو ځای.

**ځرانګه** (ǰarā́nga) نر.م. (ج. ځرانګې) هغه باد او سېلۍ چې آثار یې له لیرې لیدل کېږي.

**ځروبه** (ǰaróba) ښځ.م. ځروبی، جروبی، آبشار.

**ځرول** (ǰarawə́l) مص. مت. ځوړندول، کوږول.

**ځوړېدل** (ǰawedə́l) مص. ل. ځوړندېدل، کوږې کېدل.

**ځز** (ǰaz) صوت. نر. م. جز، په تاوده شي باندې د اوبو د توېدلو اواز.

**ځزکی** (ǰəzkáy) نر. م. جزېدنه، ځځېدنه.

**ځې** (ǰaz) نر. م. ۱) د خسا مېند يا ... چې زیم ولري او اوبه ترې راووځي؛ ۲) سېلاب راوړي شګه.

**ځږی** (ǰəẓáy) نر. م. زېږه ځمکه، هغه ځای چې اوبه او نباتات و نه لري.

**ځېبت** (ǰəbt) نر. م. ۱) زېښت، ناخوښي، هغه شوک چې د چا بد ایسي؛ ۲) زیات، زېښت، ډېر.

**ځېکله** (ǰəkala) ق. هغه وخت، کله، ځه وخت، هر کله، کله چې، هغه وخت چې.

**ځغ** (ǰəg) نر. م. ځز، جز، ځغ.

**ځغاست** (ǰgāst) نر. م. منډه، تېښته، ځغل، ترپ.

**ځغاسته** (ǰgāsta) ښځ. م. منډه، تېښته، ترپ.

**ځغاله** (ǰgāla) ښځ. م. زغاله، پېره، غرورې.

**ځغځه** (ǰagǰa) ښځ. م. یو ډول شنه واښه دي.

**ځغستا** (ǰgastā) ښځ. م. منډه، تېښته، ځغل، ترپ.

**ځغستل** (ǰgastəl) نر. م. منډه کول، ځغاستل، تېښته کول، ترپل، ترپ کول، منډه اخستل.

**ځغل** (ǰgal) نر. م. منډه کونه، تېښته کونه.

**ځغلا** (ǰgalā) ښځ. م. منډه، ځغاسته، تېښته، ځغل.

**ځغلند** (ǰgaland) ص. نر. م. ځغلېدونکی، د منډو په حال کې، د تېښتې په حال کې.

**ځغلندی** (ǰgalandáy) نر. م. ۱) تېښتېدونکی، ځغلېدونکی؛ ۲) ذلیل، بدبوتی؛ ۳) عاجز، خوار؛ ۴) دارن؛ ۵) ارمانجن.

**ځغلول** (ǰgalawə́l) مص. مت. ۱) په منډه کړل، په تېښته کول؛ ۲) په مخه کول، په مخه اخستل.

**ځغلېدل** (ǰgaledə́l) مص. ل. په منډه کېدل، په تېښته کېدل، منډه وهل.

**ځغول** (ǰagawə́l) مص. مت. جغول، جزول، جزول، په غورو یا تېلو کې سره کول.

**ځغونځ** (ǰgunǰ) نر. م. غوزنګ، حرکت، د مچیو او چنجیو حرکت، خوځ ماخوځ، غونښېدنه.

**ځغونځاوې** (ǰgunǰāwe) ښځ. ج. غوزاوې، ډېره او نامنظمه ګڼه ګوڼه، ازدحام.

**ځغونځول** (ǰgunǰawə́l) مص. مت. پسارول، غونزول، په نامنظمه ګڼه ګېهر لوستل.

**ځغېدل** (ǰagedə́l) مص. ل. جوزېدل، جغېدل، په غورو کې غوښه په شور او جغ جغ راتلل.

**ځک** (ǰak) نر. م. تکلیف، ربړ، آزار، زک.

**ځکلول** (ǰuklawə́l) مص. مت. زوکلول، ربړول، خپه کول، ازارول، ځورول.

**ځکلېدل** (ǰukledə́l) مص. ل. زوکلېدل، ربړېدل، ځورېدل، کړېدل، په تکلیف کېدل.

**ځکندن** (ǰakandán) نر. م. و. ګ. ځنکدن.

**ځکه** (ǰə́ka) ربط. په دې سبب، په دې دلیل، په دې وجه، په دې علت، له دې امله.

**ځګ** (ǰag) نر. م. ۱) ځک، قف، کف؛ ۲) ځګ، ځک، د مستې شاربلو خاورین لوښی.

**ځګال** (ǰgāl) نر. م. مېده دوړې، ورو دوړې چې د پاسه بورورا و رباندې اچول کېږي.

**ځګخور** (ǰgaxór) نر. م. کب خورکه مرغی.

**ځګر** (ǰigár) نر. م. ځيګر، ينه، اینه، ينه.

**ځګرخون** (ǰigarxún) نر. م. جيګرخون، غمجن، خفه، په کړاو اخته، په تکليف او ربړ اخته.

**ځګرور** (ǰigarwár) ص. نر. م. ۱) بهادر، تکړه، توروزن؛ ۲) د زیاتې حوصلې څښتن.

**ځګلاته** (ǰaglāta) ښځ. م. غړکه، هغه ګوډې چې مستې په کې شاربلې کېږي.

**ځګلن** (ǰaglán) ص. نر. م. ځګن، ځګ لرونکی.

ځګېدل (ǰgedә́l) مص. ل. ختکول، شاریل کېدل، ځګ پرېښول.

ځل (ǰal) نر.م ١) ځلا، بریښېدا؛ ٢) سخته تنده، جل ٣) وار، نوبت؛ ٤). زل، د توکرانو پوښ چې د ځارویو په شا باندې اچول کېږي.

ځلا (ǰalā́) ښځ.م. ځل، زلق، بریښنا، ځلېدا.

ځلاند (ǰalā́nd) ص. نر.م.ج. ځلان، ځلېدونکی، ځلارونکی، بریښېدونکی.

ځلبل (ǰalbál) ص. نر.م.ج. جلبل، زلقېدونکي.

ځلبلاند (ǰalbalā́nd) نر.م. نارامه، پریشانه.

ځلبلاندول (ǰalbalāndawә́l) مص.مت. ځورول، کړول، پریشانه کول، ناکراره کول.

ځلبلاندېدل (ǰalbalāndedә́l) مص. ل. پریشانه کېدل، ځورول کېدل، غمجن کېدل.

ځلبلی (ǰalbalә́y) ص. نر.م. روښانه، ځلېدونکی، چنګېدونکی، پنکېدونکی.

ځلځلی (ǰalǰalә́y) نر.م. يو ډول هېوکی دی.

ځلښت (ǰaláṣ̌t) نر.م. ځل، ځلا، زلق، پنک.

ځلک (ǰalk) نر.م. بریښن، ځلا، ځلا، ځلښت.

ځلکول (ǰalkawә́l) مص. مت. ځـل وبل کـول، ځلول، زلق کول، چنګول، پنکول.

ځلکېدل (ǰalkedә́l) مص. ل. ځـلېدل، زلقـېدل، پرکېدل، پرقېدل، چنګېدل، پنکېدل.

ځلما (ǰalmā́) نر.م. ځواني، ځلمیتوب، زلمیتوب.

ځلموټی (ǰalmóṭay) ص. نر.م. ځلمکی، ژنی، ژنکی، زنی، ځوانکی.

ځلمی (ǰalmáy) ص. نر.م. زلمی، ځوان، زنی.

ځلمیتوب (ǰalmitób) نر.م. زلمیتوب، ځواني.

ځلند (ǰalánd) ص. نر.م. ظالم، زبردست جابر.

ځلندوکی (ǰalandū́kay) ص. نر.م. بریښېدونکی، زلقېدونکی، جل وبل کېدونکی.

ځلوبی (ǰalobә́y) ښځ.م. ځیلبی، جلبی، یو ډول خواږه خواړه دی.

ځلوبی (ǰalóbay) نر.م. سراب، پیریان اوربه.

ځلوکه (ǰaluká) ښځ.م. د زوږ رګونه.

ځلول (ǰalawә́l) مص.مت. زلقول، پرکول، چنګول، پنکول، بریښول.

ځلون (ǰalū́n) نر.م. ژی، زی، رابیا، د اوبو لوړی ژی چې پر حیواناتو باندې ورول کېږي.

ځله (ǰála) ښځ.م. ١) ځل، وار؛ ٢) مینه، شوق.

ځلي (ǰalí) ښځ.م. زیار، هڅه، خواری، کړاو ربړ.

ځلې (ǰále) ښځ.م. د «هلې» سره د منتاو کوېږ ماناوې ورکوي – هلې ځلې یې وکړې.

ځلېدل (ǰaledә́l) مـص. ل. پرکـېدل، بریښېدل، پرقېدل، چنګېدل، پنکېدل، چرکېدل.

ځما (ǰmā) ض. و.ګ. زما.

ځمبل (ǰambә́l) مص. مت. ١) ځنبول، بانه‌رسول؛ ٢) ځنډل؛ ٣) بې عزته کول، بې آبه کول.

ځمبلی (ǰambә́lay) نر.م. ځملی، منبلی شوی، یو تربله وهل شوي، ځنډلی.

ځمبنه (ǰambána) ښځ.م. بانه‌رسونه، ځمبنونه، زمبنه، سترګه وهنه، سترګک وهنه.

ځمبېدل (ǰambedә́l) مص. ل. وروورو تلل.

ځمکپوهاند (ǰmakpohā́nd) ص. ځمکپوه، جیولوجي پوه.

ځمکپوهنه (ǰmәkpohána) ا. د ځمکې پېژندنه، د ځمکې علم، جیولوجي.

ځمکتوت (ǰmәktū́t) ا. ځمکني توت.

ځمکدننه (ǰmakdanána) ص. په ځمکه کې، د ځمکې دننه.

ځمکسمون (ǰmәksamū́n) ا. د ځمکې اصلاح، د ځمکو اصلاحات.

**ځمکلار** (ǰmaklár) ا. ځمکنۍ لار، مېترو.

**ځمکلاندې** (ǰmaklánde) ص. تر ځمکې لاندې (اوبه یا...).

**ځمکنی** (ǰmakanáy) ص.نر.م. ځمکې ته منسوب.

**ځمکنۍ بشپړتیا** (ǰmakanaybəšpaṛtyā́) ا. ځمکنۍ تمامیت، ارضي تمامیت.

**ځمکنۍ ځواک** (ǰmakanayǰwā́k) ځمکنۍ قوه.

**ځمکواک** (ǰmakwā́k) جاګیردار، فیوډال.

**ځمکوال** (ǰmakawā́l) نر.م. د ځمکې څښتن.

**ځمکوېش** (ǰmakwéš) ا. د ځمکې وېشنه.

**ځمکه** (ǰmáka) ښځ.م. ۱) مځکه، زمکه؛ د شمسي نظام له سیارو څخه یوه سیاره ده چې موږ او تاسو پکې ژوند کوو؛ ۲) مخ، سطحه.

**ځمل** (ǰmal) مص.مت. ځمبل، باڼه، رپول، سترګې رپول، سترګې بڼورول.

**ځملی** (ǰmálay) نر.م. ځمبل شوی، موړل شوی، یو تربله وهل شوی، لت پت شوی.

**ځموږ** (ǰmūẓ) ض.ج.و.ګ. زموږ.

**ځنازه** (ǰanāzá) ښځ.م. جنازه.

**ځناور** (ǰanāwár) نر.م. ۱) ځیرونکی حیوان، جناور ۲) حیوان، څاروی.

**ځناورتوب** (ǰanāwartób) نر.م. ۱) حیوانیت، وحشي توب؛ ۲) حماقت، بې عقلي.

**ځنبول** (ǰanbawə́l) مص.مت. ځنبل، ځمبل.

**ځنبېدل** (ǰanbedə́l) مص.ل. سترګې زنبېدل، سترګې رپېدل، باڼه رپېدل، باڼه بڼورېدل.

**ځنځ** (ǰanǰ) نر.م. خوری، پتکری، زمچ.

**ځنځرۍ** (ǰanǰiráy) ښځ.م. یو ډول کېښه چې د زنځیر په شېر وي.

**ځنځلېر** (ǰanǰlér) نر.م. جالر، یو ډول تور ځوندی دی چې په کېږدۍ باندې ځړېږي.

**ځنځول** (ǰanǰawə́l) مص.مت ۱) څاشکی څاشکی توییول؛ ۲) لږ څه ورکول، په شومتیا سره یو شی چاته ورکول.

**ځنځولیه** (ǰanǰolayá) ښځ.م. ډنډولی، یو شی په څلورو اخستی، کوم څه په څادرکې اخیستل.

**ځنځه** (ǰanǰá) ښځ.م. ۱) زنځه، سرسوبله، شویله؛ ۲) ص.نب. لالچي، جهلي، چیچړ بنیادم.

**ځنځی** (ǰanjáy) ښځ.م. زنځیرک، د ښځو یو ډول ګاڼه.

**ځنځېدل** (ǰanǰedə́l) مص.ل. څڅېدل، ټکی ټکی توییدل، څاشکی څاشکې توییدل.

**ځنځیر** (ǰanǰír) نر.م. زنځیر.

**ځنځیرکه** (ǰanǰiráka) ښځ.م. د خامکدوزۍ هغه کرښه چې د زنځیر په شېر وي.

**ځنځیرۍ** (ǰanǰiráy) ښځ.م. یو ډول لیک دود دی چې د خوشحال خټک لخوا دخپلې کورنۍ لپاره ټاکل شوی و.

**ځنخول** (ǰanxwə́l) نر.م. ۱) بې سدي، بېهوښي، له حاله تلنه، د خپګان څپه؛ ۲) د زړه پرده.

**ځنډ** (ǰand) نر.م. ایسارتیا، ډیل، درنګ، معطلي، تال.

**ځنډپوهی** (ǰandpóhay) ض. لارغپوهی، وروسته پوهېدونکی، ډېرفهم.

**ځنډمن** (ǰandmán) ص.نر.م. ځنډن، ناوخته شوی، معطل شوی، تال شوي.

**ځنډن** (ǰandán) ص.نر.م. پخوانی، لرغونی، وراندینی، قدیمي، د ډېري مودې.

**ځنډنی** (ǰandanáy) ص.نر.م. ۱) پخوانی، لرغونی، قدیمي؛ ۲) ایسار، تال، معطل.

**ځنډنی کوکو** (ǰandanáykūkū́) نر.م. یو ډول ګل.

**ځنډوالی** (ǰandwā́lay) نـر.م. معطلي، ناوخته والی، ټالېدنه، معطلېدنه، ځنډېدنه.

**ځنډول** (ǰandawə́l) مص.مت. ټالول، ایسارول، ناوخته کول، معطلول.

**ځنډېدل** (ǰandedə́l) مص.ل. ټالېدل، ایسارېدل، ناوخته کېدل، معطلېدل.

**ځنغلي** (ǰanǧalí) نر.ج. زنګني، زاړه پرتوګ ته له نوي توکر څخه لېدي ښکته پايڅې اچول.

**ځنکندن** (ǰankandə́n) نـر.م. ځنکـدن، د نزعې حالت، د ژوند آخري سلګۍ.

**ځنګر** (ǰangár) ص. نر.م. بې هوښه، بې سده.

**ځنګل** (ǰangál) نـر.م. ګـڼې ونې، د ګـڼو ونو او وحشي بوټو ځای.

**ځنګل څېری** (ǰangalceráy) نـر.م. يـو ډول تريخ بوټی دی چې ژېړه ريښه لري.

**ځنګلساتی** (ǰangalsā́tay) ص. ځنګلوان، ځنګل ساتونکی.

**ځنګلي** (ǰangalí) ص. نب. ۱) د ځنګل، د ځنګل سره تعلق لرونکی؛ ۲) وحشي؛ ۳) مج. کم عقل، ناپوه، بې تربيې، بې تمدنه.

**ځنګل ګړی** (ǰangalgaṛáy) ښځ.م. جونګړه، د ځنګله ساتونکي ځای

**ځنګوری** (ǰangū́ray) نـر.م. دانګورو وانښکی، ډنډوری، د انګورو وښکالی.

**ځنل** (ǰanál) مص. مت. سوری په کې جوړول.

**ځنې** (ǰáne) اد. ۱) څخه، ترېنه، ورنـه، ورڅـخـه، ځنه؛ ۲) بعضې، ځينې، بعض.

**ځنکی** (ǰankáy) نر.م. و ګ. زنکی.

**ځواب** (ǰawā́b) نـر.م. ۱) غبرګـون، د پوښـتنې ځواب؛ ۲) احوال معلومېدل؛ ۳) ردول، منفي جواب ورکول.

**ځواب لوڅی** (ǰawāblócay) ص.نر.م. ژر ځواب، حاضر ځواب، ځواب ګر، ځوابي.

**ځواکپېر** (ǰwākpér) ا. د اقتدار يا قدرت دوره.

**ځواکجګړه** (ǰwākjagṛá) ا. د اقتدار پر سر شخړه او جګړه.

**ځواکځی** (ǰwākǰáy) ا. د قـدرت ځـای، د انرژي مرکز، نيروګاه (برېښنايي، ذروي).

**ځواک سيمه** (ǰwāksíma) ا. تر ځواک لاندې سيمه، د قدرت قلمرو، د اقتدار ساحه.

**ځواکلېږ** (ǰwākléẓd) ا. د ځواک يا اقتدار لېږدونه، انتقال.

**ځواکمن** (ǰwākmán) ص. قـدرتمـن، زورور، د اقتدار خاوند.

**ځواکمني** (ǰwākmaní) ا. پيـاوړتيا، اقـتدار، توانمندي.

**ځواکمېچ** (ǰwākméč) ا. د ځواک سنجوونکې آله.

**ځواکوېش** (ǰwākwéš) ا. د قدرت وېش، د اقتدار تقسيم (په دولت کې).

**ځواله** (ǰwālá) ښځ.م ۱) ښوروا، زومنه؛ ۲) نواله، ځـوواله، د اوربشو د اورو څخه جـوړ هغه غټې چې پخوا به يې په پيـلانو خـوړلې؛ ۳) مج. د ښوروا لپاره تر اندازې زياته ډوډۍ ميده کول.

**ځوان** (ǰwān) ص. نر.م. ۱) ژنی، زلمی، بالغ شوی؛ ۲) بهادر، زړور؛ ۳) عس. لـه دريم بريدمـن څخه تر جګتورن پورې منصبداران.

**ځوانکه** (ǰwānáka) ښځ.م. ګـرمکې، ګرمکی، ستو، هغه دانې چې د زلميتوب په وخت کې په مخ باندې راخېژي.

**ځوانکی** (ǰwānakáy) ص.نر.م. زلموټی، ځوان، زلمکی، نوی زلمی، زلمی، ژنکی، ژنی.

**ځوانګه** (ǰwāngá) ښځ.م. چيچل، سکونډل، سکوه.

**ځوانمرد** (ǰwānmard) ص. نر.م ۱) نر، بهادر، مېړنی؛ ۲) سخي؛ ۳) زړوری مار.

**ځوانمرګي** (ǰwānmargí) ښځ.م. ځوانیمرګي، د ځوانۍ مرګ، په زلمیتوب کې مړینه.

**ځوانول** (ǰwānawə́l) مص. مت. ۱) ځوان کول، مج. قوت او طاقت ورکول.

**ځواني** (ǰwāní) ښځ.م. ژنیتوب، شباب، جواني، زلمیتوب؛ ۳) ښکلا؛ ٤) قوت او طاقت.

**ځوانېدل** (ǰwānedə́l) مص. ل. ۱) ژنی کېدل، ځوان کېدل؛ ۲) طاقت او قدرت موندل.

**ځواوله** (ǰwāwlá) ښځ.م. و ګ. ځومنه.

**ځواونه** (ǰwāwná) ښځ.م. و ګ. ځواله.

**ځوځات** (ǰawǰā́t) ښځ.م. و ګ. زوزات.

**ځور** (ǰawár) نر.م. تکلیف، کړاو، رنځ، ازار.

**ځور** (ǰur) ص. نر.م. ۱) ژر اوربدونکی، تېره غوږی ۲) پوه، دانا، ځیرک؛ ۳) متوجه.

**ځورتوب** (ǰurtób) نر.م ۱) ځورتیا، تېزه اوربدنه ۲) پوهه، دانايي، متوجه کېدنه.

**ځورول** (ǰawrawə́l) مص. مت. ازارول، کړول، تکلیفول، رنځول، په عذابول.

**ځورول** (ǰurawə́l) مص. مت. ۱) ژر اورول، تېز اورول؛ ۲) پوه کول، عاقلول؛ ۳) متوجه کول؛ ٤) هضمول.

**ځوره** (ǰurá) ښځ.م. هضم، هضمېدنه، هضمونه- په ځوره دې شه= نوش جان دې شه.

**ځورېدل** (ǰawredə́l) مص. ل. ۱) په عذابېدل، ځورېدل، تکلیف رسېدل؛ ۲) غمجنېدل.

**ځورېدل** (ǰuredə́l) مص. ل. ۱) هضمېدل، حلېدل؛ ۲) الګېدل.

**ځوړ** (ǰwaṛ) ص. نر.م. ج. د لوړ ضد، ځوړ، مخ په کښته، اوترايي، ځوړی.

**ځوړتوب** (ǰwaṛtób) نر.م. ځوړتیا، ځوړوالی.

**ځوړند** (ǰwaṛánd) ص.نر.م. کړوری، ځړول شوی، ځړېدونکی، ځړېدلی.

**ځوړندوالی** (ǰwaṛandwā́lay) نر.م. ځوړندتیا، ځوړندتوب، ځوړندېدنه.

**ځوړندول** (ǰwaṛandawə́l) مص. مت. ځړول، ځوړندول، للول، کوږی کول.

**ځوړندی** (ǰwaṛandáy) نر.م. په کور کې هغه شی چې له لوخوا او مېزري څخه جوړ شوی وي.

**ځوړندېدل** (ǰwaṛandedə́l) مص.ل. ځړېدل، کوږی کېدل.

**ځوړوبی** (ǰoṛobáy) نر.م. ځړوبی، جړوبی، زاوه.

**ځوړول** (ǰwaṛawə́l) مص. مت. ۱) مخ کښته کول؛ ۲) ژوړول، غوڅول.

**ځوړېدل** (ǰwaṛedə́l) مص.ل. مخ کښته کېدل، سرځوړی کېدل، سرکښته کېدل.

**ځوز** (ǰoz) نر.م. زوز، ځوځ، یو دول ازغن بوټی.

**ځوزخانه** (ǰozxāná) ښځ.م. د ځوځو کوډی، د ځوزانو خونه، ځوز کوډی، خارخانه.

**ځوزګوری** (ǰozgúray) ښځ.م. ګوری، د ځوځو زاوله، ځوز ژاوله، ترنجبین.

**ځوزن** (ǰozán) ص.نر.م. اغزن، ازغن.

**ځوزیانه** (ǰozyā́na) ښځ.م. اغزن ځای، ازغمي لرونکې سیمه، اغزنه علاقه، اغزیانه.

**ځوږ** (ǰwaẓ) نر.م. شور، بګت، غالمغال.

**ځوښ** (ǰoṣ) نر.م. ۱) جوش، خوټېدنه؛ ۲) تاو، غوسه، کینه.

**ځوښا** (ǰoṣā́) ښځ.م. دوښا، د انګورو یا هرې مېوې شیره، د توتو شیره، جوشاب.

**ځوښول** (ǰoṣawə́l) مص. مت. ۱) ځوښېږ ورکول؛ ۲) شیره ایستل، دوښا کول، دوښا ایستل.

**ځوښېدل** (ǰošedә́l) مص.ل. ایشېدل، جوشېدل، جوش خوړل.

**ځوکی** (ǰokáy) نر.م. زوړی، سنځ، سخته لاره.

**ځوګ** (ǰwag) نر.م. بدبویه غرنی بوټی دی.

**ځول**(۱) (ǰūl) نر.م. زول، سخته یخني، سخت یخ.

**ځول**(۲) (ǰawә́l) نر.م. زویل، یو دول بوټی دی چې زیړ ګل کوي.

**ځوله** (ǰolá) ښځ.م. ۱) زوړ کمیس، ګیلـه کمیس؛ ۲) لوی او اوږد جوال دی چې د وزو لـه زغـنو څخه جوړېږي او په اوښ باندې بارېږي.

**ځولی** (ǰoláy) ښځ.م. ۱) جـولی، لمنه؛ ۲) کلچ، پیڅه، جوال غوندې شی دی چې دوه سرونه او یو لوری یې ګنډلی وي.

**ځومبک** (ǰumbák) نر.م. څوندی، ګوچه، ګچه.

**ځومبکی** (ǰūmbakáy) نـر.م. ځـومبکه، وټی، هـغـه وټی چې ښـځې یې په غـوږو بـانـدې راځړوي.

**ځومبول** (ǰūmbawә́l) مص. مـت. ۱) خـوځـول، کرارکرار حرکت ورکول؛ ۲) ســتول.

**ځومبېدل** (ǰumbedә́l) مـص. ل. ۱) خـوځېدل، سوکه حرکت کول؛ ۲) ســېدل.

**ځومنه** (ǰūmná) ښځ.م. څواله، ښوروا، زېمنه.

**ځون** (ǰawә́n) نر.م. بچه، بچن، بتی، د کلال بچه.

**ځونډی** (ǰunḍáy) نـر.م. ۱) طره، پوپکه، کلغی؛ ۲) زومبک، ګچه، څوندی.

**ځونګه** (ǰongá) ښځ.م. عادت، فطرت.

**ځوی** (ǰoy) نر.م. زوی، بچی، زمنګی.

**ځوېر** (ǰwer) نر.م. ځوړ، مخ ښکته، د تل په لور.

**ځوېښل** (ǰwešә́l) مص. مت. ځـېښـل، ځوېل.

**ځېځېرل** (ǰiǰerә́l) مص. مت. ۱) تکول، وهـل؛ ۲) خوړل، وهل لکه موږک وهل.

**ځیر** (ǰir) ص. نـر.م. ۱) متوجه؛ ۲) تېزنظر، باریک بین؛ ۳) خالص، سوچه؛ ٤) امر.زړ. چیغندک، تربېل د بم اواز ضد.

**ځیرک** (ǰirák) ص. نر.م. هوښیار، تېزنظره، پوه.

**ځیرکتوب** (ǰiraktób) نر.م. ځیرکتیا، ځیرکوالی، هوښیاري، پوهه.

**ځیرکتونی** (ǰiraktunáy) ص. نر.م. تېزنظری، په ځیر نظر کتونکی، پوه، دقت کوونکی.

**ځېرکی** (ǰerkáy) نر.م. دوپوسته.

**ځیرمن** (ǰirmán) ص. نر.م. هوښیار، ځیرک، پوه.

**ځېرمه** (ǰermá) ښځ.م. زېرمه، توښه، ذخیره.

**ځېرمه وال** (ǰermawāl) ص. نر.م. هغه څوک چې د دوه ی د تیارولو نوکري ورپه غاړه وي.

**ځیرول** (ǰirawә́l) مـص. مـت. ۱) کتل، لیدل، لتول؛ ۲) متوجه کول.

**ځیره** (ǰirá) ښځ.م ۱) و ګ. جیره؛ ۲) زنګی، زیره، یو ګیاه ده چې تخم یې ښه بوی لري.

**ځیرېدل** (ǰiredә́l) مص.ل. متوجه کېدل، دقت کول.

**ځیزغالي** (ǰizǧālí) ښځ.م. ځـزغـولي، سوی، بوګړی، کروړی، ګبګ ژی.

**ځیږ** (ǰiẓ) ص. نر.م. ۱) زیږ، دیږ؛ ۲) بېر؛ ۳) غیرنی ٤) سپېڅلی، سوچه.

**ځیږتوب** (ǰiẓtób) ص. نر.م. ۱) زیږتوب، ځیږتیا ۲) بېروالی؛ ۳) سـخت مـزاجي؛ ٤) سوچه والی، سپېڅلتیا.

**ځیږګی** (ǰiẓgáy) نر.م. جیږګی سږګی؛ ۲) یو دول بوټی دی چې په پانو کې یې اغزي وي.

**ځېږمه** (ǰeẓmá) ښځ.م. جېږمه؛ دسترګې د پوښ هغه برخه چې بانه وریاندې راشنه کېږي.

**ځیږول** (ǰiẓawә́l) مص.مت ۱) ببرول؛ ۲) دیږول، زیږول؛ ۳) پرننګ او غیرت راوستل.

**ځيږېدل** (ǰizedə́l) مص.ل ۱) بېرېدل؛ ۲) ډېرېدل، زېرېدل؛ ۲) غوسه کېدل، سوځېدل، قهرېدل.

**ځېسل** (ǰesə́l) مص. مت. کږول، جسل، ازارول، ځورول، تکليف ورکول، کړول.

**ځيګر** (ǰigár) نر.م. وګ. ځګر.

**ځېل** (ǰel) نر.م. ۱) جهل، ضد، اړی، سرتمبګي؛ ۲) جهل، جهل؛ ۳) کتار، قطار.

**ځېلانځه** (ǰelānǰá) ښځ.م. زليانځه، ځليانځه، پېروان، پرېوان.

**ځېلپوهه** (ǰelpóha) ا. ځېلپوهنه. د ژبپوهنې هغه څانګه چې له ژبنيو ځېلونو سره کار لري (typology).

**ځېلي** (ǰelí) ص. نر.م. ښځ.م. ۱) ضدي، اړيمار، سرتمبه، سرتمبه، جېلي؛ ۲) جاهل، کم عقله، ناپوه.

**ځېلی** (ǰeláy) ښځ.م ۱) زيری، کجيران؛ ۲) کجران يو ډول ناروغي ده چې تر پوستکي لاندې ګرد او غوند شيان چې دانو ته ورته وي پيدا کېږي.

**ځينار** (ǰinā́r) نر.م. وګ. زنار.

**ځينګر** (ǰingár) نر.م. زينګر، ګن؛ ګور.

**ځينه** (ǰiná) ښځ.م. زينه، پوړۍ، پايه، پارځنګ.

**ځيني** (ǰíne) ص. نب. ۱) بعضې، ځنې؛ ۲) ورځنه، ورنه، تري، ترينه.

# ځ

**ځ** (cc) ښځ.م.د پښتو الفبې یوولسم توری دی.

**ځا** (ca) ښځ.نر.م. (ج. ځاګانې) کوځی، ځاه.

**ځابانی** (cābáṇay) ص. نر.م. ځاپانی، پرېوتو ته نیږدې، غورځېدونکی، لوېدونکی.

**ځابونک** (cābūnák) نـر.م. د یوه بوټي څګ دی چې جامې پرې مـنښل کېږي.

**ځاپاکی** (cāpákay) ص. ځاه پاکوونکی.

**ځاپېره** (cāpéṛa) ښځ.م. څېره، څېره، چاپېره.

**ځاڅکی** (cāckáy) نر.م ۱) تکی، قطره، څڅواکی؛ ۲) خوږوالی، قدرمنې، ګرانښت، مینه لرل.

**ځاڅکی ځاڅکی** (cāckáycāckáy) ق. تکی تکی قطره قطره.

**ځاڅوکی** (cācūkáy) نر.م. ووړوکي ځاڅکی، ووړه قطره، د ځاڅکي تصغیر.

**ځاڅېروکی** (cāccrūkáy) نر.م. ګګرکی، ګله ګرکی، د واورو کوچنی دانې، برنجک.

**ځادر** (cādár) نر.م. (ج. ځادرونه) ۱) دوېټه، پټو، چکاله؛ ۲) چادر، اهن چادر.

**ځادرلوندی** (cādarlúṇday) نـر.م. ښورمک، لږ باران، ښورمه

**ځادري** (cādarí) ښـځ.م. ۱) چـادري، بـورقه، بورکه؛ ۲) ص.نب. د ځـادر، په ځادري پورې اړوند.

**ځار** (cār) نـر.م. ۱) تلاش، لټون؛ ۲) مـراقبت، ساتنه، ځارنه.

**ځارا** (cārá) ښځ.م. (ج. ځـاراګانې) کېنـدل شوې ځای چې تېږ، ګازرې او... په کې ساتل کېږي.

**ځارڅرخومه** (cārcarxúma) ښځ.م. ګرد چاپېره، چارچاپېره، شا وخوا، څلورخواوې.

**ځارځی** (cārǰáy) ا. ځارتون، رصد خانه، زیج.

**ځارښکه** (cārəṣká) ښځ.م. څـرښکه، سارکه؛ د یوې مرغۍ نوم دی.

ځارل (cāral) مص. مت. په نظر کې ساتل، په پټه د ځا مراقبت کول، ځاوکونه.
ځارنتون (cārantún) نر.م. د وترنري رياست.
ځارند (cāránd) ص. نر.م. کنټرولر، څېړونکی.
ځارندوی (cārandóy) نر.م ۱) پوليس، امنيتي عسکر ۲) ځارکوونکی؛ ۳) سکوټ، سکاوټ هغه څوک چې په ځارندويي کې شامل وي.
ځارندويي (cārandoyí) ښځ.م. د اخلاقي او سپورتي تعليم او تربيې يو ډول سيستم دی.
ځارنوال (cāranwā́l) ا. مدعي العموم، د تورنو رسمي حقوقي مدافع.
ځارنه (cārə́na) ښځ.م. (ج. ځارنې) په نظر کې ساتنه، څوکي کونه، مراقبت کونه..
ځارو (cārú) ص. نب ۱) ځارونکی، ځاري، ... مراقبت کوونکی، تعقيبوونکی؛ ۲) جاسوس.
ځاروان (cārwā́n) ص. جوپه مشر، د کاروان مير.
ځارونکی (cārūnkáy) فا. نر م. په نظر کې ساتونکي، څوکي کوونکی، تعقيبوونکی.
ځاروی (cārwáy) نر.م. (ج. ځاروي) هغه ځلور بولي چې څرکوي او وابنه خوري.
ځاره (cārá) ښځ. م. (ج. ځارې) ۱) چاره، علاج؛ ۲) کسب، کار؛ ۳) هغه کنده او ډوغل چې گني په کې ابښودل کېږي.
ځاړ (cāṛ) نر.م. د لم يا غوبني هغه ټوټه چې د لېوه تر حملې وروسته په ځاړزي، پسې څړېږي.
ځاړو (cāṛú) نر.م. (ج. ځاړوگان) ۱) برخ، برخې، برنځ، د نس پرده؛ ۲) دحيوان هغه غوبنه چې ځيني د خورو ور نه بولي.
ځاړی (cāṛáy) نر.م. (ج. ځاړي) ۱) دوبښتانو د توبېدلو ناروغي؛ ۲) څوری، يو ډول خړ رنگي حلاله مرغۍ ده.

ځاږ (cāẓ) نر.م. د وينې پور د وينې بيه، خون بها.
ځابښت (cāṣ̌t) ق. ۱) کچه غرمه، برېښر؛ ۲) نر.م. څښت، تاشت، لېکلی کاغذ دی چې مقدسه محتوا لري او د مذهبي خلکو له خوا ناروغانو ته زرکول کېږي..
ځابښتی (cāṣ̌táy) نر.م. دغرمې خوراک، د غرمنۍ، د غرمې زرخوړی، ځابښت ناری.
ځابښتي (cāṣ̌tí) ص. نب. غرمنی، د غرمې، د ځابښت، په ځابښت پورې تړلي.
ځابښکه (cāṣ̌ká) ښځ.م. (ج. ځابښکې) سارکه، ځربښکه، ګنهسيره، يو ډول مرغۍ ده.
ځابښه (cāṣ̌á) ښځ.م. (ج. ځابښې) تاوکېږي سنې، اينځې، انځی، غښتلې پړی.
ځابښی (cāṣ̌óy) نر.م. دځرخې محور، څوبښه.
ځاک (cāk) نر.م. (ج. ځاکونه) ۱) درز، چاک؛ ۲) نيم سري؛ د سر يو ډول درد دی.
ځاکن (cākə́n) ص. نر.م. ۱) څڅېدونکی، ترشح کوونکی؛ ۲) ځاه ايستونکی، ځاه باسونکی؛ ۳) دسيسه کار.
ځاکه (cāká) ښځ.م. (ج. ځاکې) ۱) د غره تېره څوکه؛ ۲) دځادر پيڅکه، د ځادر څنډه.
ځاکی (cākáy) نر.م. (ج. ځاکي) د ځادر پيڅکه، د ځادر څنډه، د ځادر پيڅه.
ځاګله (cāgalá) ښځ.م. ساګلی ساګله، پتيله، د ارتې خولې ديګچې.
ځاګوړی (cāgúṛay) نر.م. ډينګری، ځاګی، ورکوټی کوهی، وره ځاه.
ځاګی (cāgáy) نر.م. ځاه ګی، وره ځاه.
ځاله (cā́la) ښځ.م. ځېر، ځېړ، ځېږي، کوډلي، کوډی، هغه ساله او کوډی چې د پټي د فصل د ساتلو لپاره جوړېږي.

**څانړو** (canṛū́) نر.م. ساندو، باجه، وحشي مېوه.

**څانګ** (cāng) نر.م. ۱) وزر، شاهپر؛ ۲) ښاخ، شاخ، حاخ، څانګه.

**څانګ څانګ** (cāngcāng) ق. ښاخ ښاخ؛ وزر وزر.

**څانګو** (cāngū́) نر.م. ۱) د غرکي موتي، د ځمک موتي؛ ۲) د منډلرو تناو، د غرکي تناو.

**څانګوال** (cāngawā́l) ص. د څانګې (مسلک) خاوند، ماهر.

**څانګور** (cāngawā́r) ص. وزروال، ګن ارخيز.

**څانګورتوغندی** (cāngawartoġandáy) ا. وزروال توغندی، راکټ.

**څانګوړې** (cāngūṛáy) ښځ.م. ۱) وړه څانګه، وړکوټی ښاخ؛ ۲) نر.م. وړوکی وزر.

**څانګه** (cā́nga) ښځ. م. (ج. څانګې) ۱) درد، برېښ، خوږ، درېکه؛ ۲) ښاخ؛ ۳) شعبه، اداره؛ ٤) نېزه، پلمه؛ ٥) ښځينه شخصي نوم.

**څانګې څانګې** (cā́ngecā́nge) ص. نب. ښاخ ښاخ، برخې برخې، شعبې شعبې.

**څانګې وانګې** (cā́ngewā́nge) ص. نب. ۱) ښاخ ښاخ؛ ۲) ټوټې ټوټې؛ ۳) ګډوډ؛ ٤) سست، لټ، تنبل.

**څانی** (cānáy) نر.م. د ربل شويو غنمو له پټي څخه د وريو ټولونکی.

**څاو** (cāw) نر.م. ۱) څارنه، مراقبت؛ ۲) په ژمي کې د ګازرو، منګېريتو او... د ساتلو لپاره تر ځمکې لاندې ژور کړی ځای.

**څاوار** (cāwā́r) نر.م. ۱) مصنوعي وېښتان، څاواره؛ ۲) د ښځې پر دولګانه؛ ۳) څينې ښځې له سر وېښتانو سره د وړيو تارونه تړي او خپلې کلۍ په کې غوټوي.

**څاوتی** (cāwtáy) نر.م. څاوتی، نيم سری.

**څاه** (cāh) نر.ښځ.م. و.ګ. څا.

**څبله** (cábla) ق. څبله، پو ترپله، په څپلو کې.

**څپ** (cap) نر.م. (ج. څپونه) ۱) د پښې د بکڼ غږ، اواز؛ ۲) د غلې د پاکولو اواز.

**څپا** (capá) ښځ.م. د پښو اوازونه.

**څپاری** (capāráy) نر.م. ۱) څپرکی، څپړ، څاپولی، د واورې توته؛ ۲) پو لپه لوبه.

**څپاړو** (capāṛū́) ص. نب. د نسه، ريخن.

**څپاړه** (capāṛá) ښځ.م. دست، ريخ، اسهال.

**څپان** (capā́n) نر.م. (ج. څپانونه) د لويو تړپان.

**څپاند** (capā́nd) ص. نر.م. ج. څپې وهونکی، هغه سيند يا درياب چې څپې وهي.

**څپاڼ** (capā́ṇ) نر.م. کتار، قطار، صف، چپل.

**څپاڼی** (capāṇáy) ص. نر.م. ګډوډ، پرېشان.

**څپټی** (capaṭáy) نر.م. (ج. څپټي) پوستين، پاستي، چپاتي، لويه او نری ډوډۍ.

**څپڅپانی** (capcapā́nay) ص. نر.م. ۱) تار په تار، ګډوډ؛ ۲) کرياب، ار؛ ۳) نر.م. د کوچنيانو يو دول لوبه ده.

**څپڅپی** (capcapáy) نر.م. (ج. څپڅپي) لوی غلبېل، پرويزی، چڼ.

**څپر** (capár) نر.م. (ج. څپرونه) ۱) و.ګ. چپری؛ ۲) خونه، خاله، څپری؛ ۳) د غره پر سر لوړه ځمکه؛ ٤) تورک، د ورذی توته؛ ٥) د بام جبه.

**څپرغوری** (capargwáṛay) ص. نر.م. ۱) غوږور، پلن غوږی؛ ۲) نر.م. هاتي، فيل.

**څپرکی** (capárkay) نر.م. (ج. څپرکي) ۱) توک، د ډوډۍ توته؛ ۲) د کاڼي يا لرګي توته؛ ۳) د واورې پاغونده څپری؛ ٤) حصه، برخه، فصل، باب.

**څپړۍ** (capáray) نر.م. (ج. څپري) ۱) جلاشوې توټه؛ ۲) دواوري پاغونده؛ ۳) د غره په سر اواره ځمکه؛ ٤) کوچنۍ د ختو دنه.

**څپړۍ** (caparáy) ښځ.م ۱) څپر، کوډله؛ ۲) د آس له وېښتانو څخه جوړه شوې ګېډۍ چې د تندي د پاسه یې غوړنده وي.

**څپر** (capár) نر.م. ۱) د اوبو په غېل د پښې تلې؛ ۲) د سړي د پښې پلن تلې؛ ۳) څپېړه، يو عرني بوټی دی؛ ٤) څپېړه، څاپېړه.

**څپراخه** (caparáxa) ښځ.م. چپېړه، چپلاخه. څپلاخه، څاپېړه، څپېړه، څپېر.

**څپردخ** (capardáx) نر.م. مېږګټی ګ ی ... کوچنیانو پوره لوبه ده.

**څپرغوزی** (capargwázay) ص. ... څپرغوزی.

**څپرکی** (capárkay) نر.م. څپک، څپو، څسوره ګوتو په اندازه.

**څپرور** (caparawár) ص.نر.م. ...

**څپړۍ** (capráy) نر.م. د پښو ... واښه دي.

**څپړۍ** (caparáy) ښځ.م. ۱) ... ۲) دلوېي راشپلک؛ ۳) ښځ.م. ج. څپسي، کپري، کپري؛ ٤) ښځ.م. تاپوری، دانګوری. هغه لرګی چې ... لاندې نیسي.

**څپېنه** (capéna) ښځ.م. ۱) څپلکه، چپکه، روه په بیاپورته؛ ۲) التکه.

**څپک** (capák) نر.م ۱) د ووی تورګه؛ ۲) څپرکی، څپو، د لاس د څلورو نښتو ګوتو په اندازه.

**څپکه** (capáka) ښځ.م. ریبده، د ووی پخولو پوره آلده.

**څپکی** (capakáy) نر.م. قمار، جواري، شرط.

**څپل** (capál) نر.م. ۱) د مرغانو د وزرونو ترپېدنه؛ ۲) چړپل؛ ۳) څپ کونه، چپې کونه.

**څپلاخه** (capláxa) ښځ.م. و ګ. څپراخه.

**څپلاک** (caplák) ص. نر.م. ج. ۱) ګن، ګڼور؛ ۲) ګونجلک، ګونځي؛ ۳) ګیوږ؛ ٤) کیمنډلی ۵) څوروټی، کړولی.

**څپلک** (caplák) نر.م. ۱) هغه څه چې د زړښت له امله کلک شوي وي لکه څرمن؛ ۲) د پښو کړولو هغه شی چې د زړښت له امله وچ، سخت او تنګ شوی وي لکه زړه پنه، وچه څپلۍ.

**څپلکۍ** (capláke) ښځ.م. چپړکۍ، چپلکۍ، د پلاستیک یا څرمې څپلۍ.

**څپلوز** (caplóz) ص. نر.م. د اوږدو پښو خاوند.

**څپۍ** (capáy) ښځ.م. ۱) ربړی، کپری؛ ۲) له ... څخه جوړ د پښو کړولو شی؛ ۳) د سړي ... په ... کپري؛ ٤) د څپر د پاسه جوړ شوی شکل؛ ۵) تاوراتاو، منجیله.

**څپلۍ ګنډ** (caplay gand) نر.م. د ... اکثر د راوستلو ... او کارکولو مزده

**څپن غوزی** (capangwázay) نر.م. د غوږ نرمی، د غوږ پستکی، د غوږ بوځکی.

**څپنۍ** (capanáy) ښځ.م. ۱) د کوندې صوتي، مونځنه، د کوندې هغه سرځه چې بزګر د بیوې کولو په وخت کې لاس ورباندې ږدي؛ ۲) پانه، سپېنه، شپېنه، چپی، سپېنه.

**څپنزری** (capanzaráy) نر.م. څنزری، تنزری، تیهو، براج، چنجری، یو ډول مرغه دی.

**څپوتکی** (caputákay) نر.م. څپوټی، کوچنی دوپټه، ووړکي لوپټه، ورکوټی زړوکی.

**څپول**[1] (capúl) ص. نر.م. گور گوتي وېښته، گڼ گور وېښتان، بېر او چنگ وېښتان، څپوله.

**څپول**[2] (capawə́l) مص. مت. ۱) څپ کول، په چج سره غله پاکول؛ ۲) مچول، بېکسولول؛ ۳) ځان پسې پښې راښکل.

**څپول څنی** (capolcanay) ص. نر.م. څپولی، بېرسری، سخ سری.

**څپولی** (capoláy) ص. نر.م ۱) بېر او گڼ وېښتان لرونکی؛ ۲) د واوري لوی څپولی؛ ۳) نر.م. د مېو، مرتویا پلي لرونکو حبوباتو د وېښو ایښودل شوی دېری یا ولی؛ ٤) څپونی، صافي؛ ٥) دسترخوان.

**څپولې** (capolé) ښځ.م. خاپوړې، خرپوځې.

**څپونه** (capawə́na) ښځ.م. (ج. څپونې) څپ وهنه، څپ کونه، غله په چج سره پاکونه.

**څپونی** (capúnay) نر.م ۱) دسترخوان، کندوری، څپرنکی، کوندوری؛ ۲) څپولی؛ ۳) صافي.

**څپه** (cápa) ښځ.م. (ج. څپې) ۱) موج، چپه، د اوبو موج؛ ۲) چپه، بېهوښي، بېهسدي.

**څپهار** (capahā́r) نر.م. د اوبو د څپو، د کښتۍ د څپو، د غلې د پاکولو او د اوبو د پښو اواز.

**څپیاکه** (capyáka) ښځ.م. ۱) ټپی، ټیپی، بدره، سوریه، ټوپي؛ ۲) دومبکی، پیاشه، دمکی؛ ۳) یو ډول سابه دي.

**څپېدل** (capedə́l) مص. ل. ۱) غله چج کېدل؛ ۲) مچېدل؛ ۳) د اوبو څپې وهل؛ ٥) ورو ورو خوځېدل.

**څپېره**[1] (capéra) ښځ.م (ج. څپېرې) ۱) ورگ، څپراخه؛ ۲) صابلـه څمکه، کښته؛ ۳) پیکه، ژبې، تت؛ ۲) وېرېدونکی، دارن.

**څپېز** (capíz) ص. ښایي، سېلاییک.

**څپېزخجېز** (capízxajíz) ص. سپلابېرزېګ (شعري وزن).

**څپېله** (capéla) ښځ.م. (ج. څپېلې) منبلور، دورر غوایانو غوېل.

**څتری** (catráy) نر.م. ۱) د ژرندې تېرک؛ ۲) د ژرندي د پله څواته د اوره ترلهو ځای.

**څته** (catá) ښځ.م. ۱) دالان؛ ۲) ګواته، د ښېباکر دلی، کرزور، کنزور.

**څت** (cat) نر.م. ۱) ورمهېر، د غاړې د شا طرف؛ ۲) د هر شي شا؛ ۳) غیاب، پسې شا.

**څتېک** (c(u,ə)ták) نر.م. څوټک، چیټک، څټکی، څټېک، د مېخ ټکولو آله.

**څټکوری** (catkúray) نر.م. ۱) ستکوری، لوغړن لرګی، نیم سوی غوندي لرګی؛ ۲) ص. نر.م. ۱) کروړانی؛ ۲) سپېره، منحوس.

**څټل** (catə́l) مص. مت ۱) ژبه پرې تېرول، په لوښي پورې ګوته رانښکل او پر ګوته باندې ژبه تېرول؛ ۲) تباه کېدل، بربادېدل، ستول؛ ۳) د چا مړ، پلار یا خپلوان مړه کېدل.

**څټمخ** (catmáx) ق. ۱) پېرمخ، په بل مخ اوښتی؛ ۲) دوه مخی، دوو رویه، منافق.

**څټمخی** (catmə́xay) ص. نر.م. ۱) د بدې څېرې، بد شکله؛ ۲) خوسا، خورجن.

**څټمری** (catmaráy) ښځ.م. د څت مری، جوړ جوړ، څټمېری.

**څټوټ** (catwáṭ) نر.م. ۱) ستوټ، ناڅاپه مرګ؛ ۲) ببخي تباه؛ ۳) د چا په مینه کې لېونی.

**څټه** (cáta) ښځ.م. (ج. څټې) ۱) دوه اندېزه ښلر یو جوال غله؛ ۲) پېټی، بوج؛ ۳) د غلې ګودام؛ ٤) یو تاکلی وزن دی؛ ٥) استه، تنه، د ونې د ریښو او ښاخونو ترمنځ برخه.

**څتی** (caṭáy) ښځ.م. ۱) څېتی، د لیمو پښه خوا، ستې، چیتی؛ ۲) د جوت اولوبه لوبه کې چې کوم شرط ورکول کیږي؛ ۳) د گلونو گیډی.

**څتی** (caṭáy) نر.م. (ج. څتي) څېتی، ستری، د غنمو یا لوربشو ریبل شوي گیډی.

**څچه** (caĉá) ښځ.م. اچې، چه، د بزې د شېرلو غږ.

**څڅ** (cac) نر.م. څڅی، سسی، آلو اخار، یو ډول ازغی دی.

**څڅېکی** (cachékay) نر.م. ۱) کشوبی، لکی، د کوچنیانو یو ډول ناروغي ده؛ ۲) په والگي کې د مری د خوږېدو ناروغي؛ ۳) ص. نر.م. تېز، رټ، تکړه، گرندی، چست، چالاک.

**څڅن** (cacán) ص. نر.م. څڅونکی، ترشح کوونکی

**څڅند** (cacánd) ص. نر.م. و گ. څڅن.

**څڅنکی** (cacúnkay) فا. نر.م. چیچونکی، کرېډونکی هډوکی، کرپندوکی.

**څڅواکی** (cacwákay) نر.م. څاڅکی، قطره.

**څڅوب** (cacób) نر.م. څڅېدنه څڅوبی، چکک.

**څڅوبکی** (cacobkáy) نر.م. څاڅکی، څڅواکي، د باران قطره.

**څڅوبی** (cacóbay) نر.م. ۱) څڅېده، چکک؛ ۲) هغه چینه چې څاڅکي څاڅکي اوبه ترې رلوځي؛ ۳) څنډلی، د دېوال یا د چت چچه.

**څڅوری** (cacóray) نر.م. پاتې شونی، هغه دوډۍ چې له خوراک څخه پاتې شوې وي.

**څڅول** (cacawә́l) مص. مت. ۱) څاڅکی څاڅکی توېول؛ ۲) نینول؛ ۳) شوړول (اوبه)؛ ٤) توېول او شړول (لکه د ورېځو څڅول).

**څڅون** (cacún) نر.م. ننښتنه، نېښتنه، ننښده.

**څڅوېکی** (cacwekáy) نر.م. څاڅکی، قطره.

**څڅی** (cacáy) ښځ.م. ناوه، پرناله، ترې، چر.

**څڅېدل** (cacedә́l) مص. ل. ۱) څاڅکی څاڅکی رالټل، څکېدل؛ ۲) نینېدل؛ ۳) توېېدل، شړېدل لکه ورېځې څڅېدل.

**څځله** (caǰlá) ښځ.م. سځله، سجده.

**څحاک** (cxāk) نر.م. سځاث، اسقاط، سکوت.

**څخاندی** (cxāndáy) نر.م. خنزنده، هغه شمزی لرونکی ژوی دی چې د لومړي ځل لپاره یې په وچه کې د ژوندانه سره توافق موندلی دی.

**څخڅخکي** (caxcaxakí) نر.ج. د اوبو یو ډول ميې، د اوبو پوکنی، ببرورکی، خوپنی.

**څخڅه** (caxcá) ښځ.م. یو ډول بوټی دی.

**څخره** (cxә́ra) ښځ.م. ۱) لوټ، ولجه، بیورمه، غنیمت؛ ۲) د خلکو ریسکه، یو ډله خلک.

**څخره** (caxrá) ښځ.م. چرخه، چوخره، چخه، د سترگو په کونجو کې خړ مواد.

**څخکو** (caxkú) نر.م. څېکو، څابکو، چاشکو، چکبو، یو مشهوره دوا ده.

**څخکي** (cxakí) ښځ.م. د پسه غوښه.

**څخل** (cxәl) مص. مت. چخېیل سبخل، څیخل، په زوره ننه ایستل، سره کوته کول.

**څخو** (caxó) ص. نب. نوکی، متکي شی، د هر کم شی، لږ غوندې، پوټی غوندې.

**څخول** (caxawә́l) مص. مت. څکول، په غمکه باندې راڅکول، پر غمکه رابېکل.

**څخه** (cxa) ربط ۱) شکه، سره، نزدو؛ ۲) په واک کې، لاس لاندې؛ ۳) ورته، ترینه، ورځني، له؛ ٤) څه خبر یم، نه پوهېږم، خبر نه یم.

**څخهار** (caxahár) نر.م. پشهار، پنجهار، د حیوان د حلالولو په وخت کې د وینې اواز.

**څخی** (cxay) نر.م. ۱) خوسی، خوسکی، گېلکی، سخوندر؛ ۲) د کوچنیانو یوه لوبه ده.

ځخېدل (cxedə́l) مص. ل. ۱) څکېدل؛ ۲) پر ځلورو تلل، خاپوړې کول.

څر (car) نر.م. ۱) څر، څرونده، څړېدنه؛ ۲) د تو کرد شېرې کېدو اواز؛ ۳) د واورې سر، سرجه؛ ۴) ص. نر.م. بېرندوکی، وېرندونکی، ډارن.

څراغ (c(i,ə)rā́g) نر.م. چراغ، ډیوه.

څراو (carā́w) څراو، ورشو، چرا، څرځای.

څرب (c(u,ə)rb) ص.نر.م ۱) څوروب، تیار، چاغ؛ ۲) تازه، ساتلی.

څربېښت (carbeṣ́t) نر.م ۱) څوربوالی، څربوالی، چاغښت؛ ۲) مستي، خرتېزي، لته پېر.

څربول (carbawə́l) مص.مت. ۱) شلنډول، چاغول ۲) مستول.

څربوله (carbolá) ښځ.م. (ج.څربولې) کاسنی، یو ډول تریخ بوټی دی. انګریا، انړیا، هندبېد او هندبا هم ورته وایي.

څربېدل (carbedə́l) مص. ل. څوربېدل، چاغېدل، شلنډېدل، مزي کېدل.

څرپ (crap) نر.م. د مرغانو د وزرو د ټپېدو اواز.

څرپول (carpawə́l) مص. مت. ټپول، سرپول.

څرڅر (carcár) نر.م. اوبۀ ته د اوبو د ورکولو په وخت غږ.

څرڅره (carcára) ښځ.م. چرچره، چنچنه، چرچنه، یو ډول مرغۍ ده.

څرخ (carx) نر.م. ۱) پېر، تاو، چورلک، تاوېدنه؛ ۲) د ت ... د چېرو د تیره کولو څرخ؛ ۳) ګیا، نښا؛ ۴) ارت، هغه پردا ره اله چې ژرنده پرې چورلي.

څرخاو (carxā́w) نر.م. (ج. څرخاونه) ګرداو، ګرداب، څور څرخړی، غورندی، ډوبی.

څرخباني (carxbā́nay) نر.م. بازېنګر، نښا کرونکی، ګډېدونکی، ټتوی، لېټی.

څرخک (carxák) نر.م. (ج. څرخکونه) ښکېل ... ښکاري مرغه دی.

څرخکه (carxáka) ښځ.م. وګ. سارکه.

څرخکی (carxakáy) نر.م. څوبېه، اتېرن، یو لرګینه آله ده چې وړی پرې ورېشي.

څرخ لرګی (carxlargáy) نر.م. ۱) څرخکی، د څرخې هغه لرګی چې تار پرې ... ؛ ۲) د لاسي څرخي اوسنی ریشلو لرګی.

څرخند (carxánd) ص.نر. ۱) څرګنده سرسري، سطحي؛ ۲) څرخنده، چورلېدونکی.

څرخندوکی (carxondúkay) فا.نر.م ۱) چورلنی، بانېچغ، غنجلی، اندرېچو، د کوچنیانو یو ډول لوبه ده؛ ۲) لاټو، ګرځندی.

څرخنکی (carxankáy) نر.م. ۱) څوبېه، څوخه، هغه لرګی چې وړی پرې ورېشنل کېږي.

څرخني (carxanáy) نر.م. ۱) خسرزی، ژغوری، ښوزی، د وریجو د تلېسر په منځ کې ژور ځای چې لنډېل په کې اچوي؛ ۲) ګرداب، څرخړی؛ ۳) بانېچغ؛ ۴) لاټو، ګرځندی، څرخندوکی.

څرخوکی (carxūkay) نر.م. څرخ لرګی، څرخنکی، د څوبېې او څرخې هغه لرګی چې تارېږي.

څرخول (carxawə́l) مص. مت. ۱) چورلول، تاوول، څرخ ورکول؛ ۲) ګرځول، ښورول.

څرخه (carxá) ښځ.م. یوه آله ده چې د هغې سره له مالوچو څخه تار جوړېږي؛ ۲) د ګنډلو د ستنې تومنه.

څرخی (carxáy) نر.م. ۱) د ورېو ګونجي، د ورېو غونډاری، د تار کلوله؛ ۲) چارشه، څرخه، د وړیو د ورېشلو آله.

څرخېدل (carxedə́l) مص. ل ۱) چورلېدل، تاوېدل چورلېدل؛ ۲) ګرځېدل.

**څربند** (carṣ́and) ص. نب. و ګ. څرخند.

**څربنده** (carṣ́ənda) ښځ.م. ۱) څـربهه، کربهه، هغه لیکه یا کربنه چې د کوم شي د کشولو څخه پیدا کیږي؛ ۲) مېنه، مېنه؛ ۲) نژدېوالی.

**څربنه** (carṣ́a) ښځ.م. و ګ. څربنده.

**څرک** (crak) نر.م. ۱) راښکاره کېدنه، رابرسېره کېدنه(لکه دلمر سترګه) ۲) لاربښودونکی، سراغي؛ ۳) نښه، نښانه، درک، لټه، پته.

**څرکا** (craká) ښځ.م. ۱) ځالک، رڼا، ځلک، ځلا؛ ۲) څڅا، د ځاځکو پرېوتلو اواز.

**څرکبني** (crakabní)ا. پلټنه، لټون، جاسوسي.

**څرکبه** (crakbá)ص.نب.جاسوس، څارونکی.

**څرکول**[1] (crakawə́l) مص. مت. بربښول، ځلول، پرقول، بڼ کول، په څرېکو راوستل.

**څرکول**[2] (carkawə́l) مص. مت. واښه خـورل، څرکول، د څارویو دښو خوړل او څار کول.

**څرکهار** (crakahā́r) نر.ج. څرا، د ځاځکو د پرله پسې توېېدو اواز.

**څـرکېدل** (crakedə́l) مـص. ل. ۱) بربښـېدل، ځلېدل، پرکېدل؛ ۲) څرک وهـل، لمر راختل؛ ۳) په څرېکو راتلل.

**څرګند** (cargánd) ص. نر.م.ج. ښکاره، ظاهـر، جوت، بلنګ، معلوم، اوځار.

**څرګندتوب** (cargandtób) نـر.م. څـرګندتیا، څرګندوالی، ښکاره کېدنه، ظاهرېدنه.

**څرګندني** (cargandaní)ص. د څرګندنې وړ، بیاني، توضیحي، افادي.

**څرګندول** (cargandawə́l) مص. مت. ۱) ښکاره کول، جوتول، اوځارول؛ ۲) بربنډول.

**څـرګندون** (cargandū́n)ا. څـرګندونه، ښـکاره کونه، څرګندنه.

**څرګندوی** (cargandóy)ص. نر.م. ظاهروونکی، ښکاره کوونکی، څرګندوونکی.

**څرګندېدل** (cargandedə́l) مص. ل. ظاهرېدل، ښکاره کېدل، جوتېدل.

**څرګه** (cargá) ښځ.م. بزبو، حق دوسته مارغه، یو دول مـرغۍ ده چې د شپې له خوا ځان په ونه ځوړندوي او د حق ناري وهي.

**څرګی** (cragáy) نر.م. یو دول بوم، بوراز ګونګی.

**څرمښکی** (carmaṣkáy) ښځ.م. شرموښکی، چرمښکی، چرمشکی، چرمشکه.

**څرمن** (carmán) ښځ.م ۱) پوستکی، وژن، چرم، ګکاره؛ ۲) پوخ او رنګ شوی پوستکی.

**څرمن باب** (carmanbā́b)ا. څرمني څیزونه، څرمین توکي.

**څرمنی** (carmanáy) ص.نر.م. له څرمنې نه جوړ، د ساخت نه جوړ، ساختي.

**څرمه** (c(i,ə)rmá) ق. ۱) څهرمه، نیږدې، جوخت، په خواکې؛ ۲) ښځ.م. ګاونډی؛ ۳) حاشیه.

**څرنده** (carə́nda) فا. نر.م. څرېدونکی، څرونکی، خوراک کوونکی څاروی.

**څرنګتیا** (carangtyā́)ا. و ګ.، څرنګوالی.

**څرنګوالی** (carangwā́lay)نر.م. څرنګتوب، څه دولتوب، دول، بڼه، شکل، کیفیت.

**څرنګه**(cáranga) ص. نب. ۱) څه رنګه، څه دول، څنګه؛ ۲) ق. ځکه، له دې وجهې، په دې سبب، له دې امله.

**څرو** (carū́) نر.م. ۱) د اور رڼا؛ ۲) د کار تېزي، د کار پیاوړتوب؛ ۳) ص. نب. رسوا، ښکاره.

**څروټکه** (carwaṭká) ښځ. م. سکروټه، بل سکور.

**څرول** (carawə́l) مص. مت. پورل، مال د څر لپاره څرځای ته بېول.

**څروونکی**(carawū́nkay) فا. نر.م. پېرونکی، مال د څرلپاره بیرونکی، پادوان، شپون.

**څروه** (carwá) ښځ.م. ښشي، په کښت کي انسان ته ورته ښځ کړی نښان.

**څروی** (carwáy) نر.م ۱) لک شوی، برلک د وری کوری؛ ۲) نیبانه؛ ۳) احد، یرید، پوله.

**څره**⁽¹⁾ (cara) ښځ.م. څره خشمه، اره، د لرګي د پري کولو آله، د ښاخونو د ربیلو آله.

**څره**⁽²⁾ (cra) ښځ. ند. د څوکیداري غږ، د خبر دار غږ.

**څره لور** (caralór) نر.م. د اري په څېر لور.

**څری** (caráy) ښځ.م. ۱) د یوې مرۍ نوم؛ ۲) د چلم سرخانه؛ ۳) د زیېر ګلاب بوټي؛ ٤) چمچي، دمتي چمچي، د ستني برغولي.

**څری**(caráy) نر.م ۱) سرباري؛ ۲) متی، پورڅنګ؛ ۳) د مزریو یا منجو ترنګر؛ ٤) رنګ نشر بدنه؛ ۲) اثر، خبر بدنه، تیتبدنه، سرایت.

**څري** (caré) ص. نب. و ګ. څنګه.

**څریدل** (caredál) مص. ل. ۱) څرل، مال څاروی څریدل؛ ۲) پریدل، څروهل، څروهل، په دستو کېدل، له نسه کېدل.

**څریکه** (críka) ښځ.م. ۱) د لمر ورانګه، د لمر لومړنی شغله؛ ۲) درد، څانګه، خوږه.

**څړ** (car) نر.م. ۱) څړ، مال څړېدنه؛ ۲) هغه پری چي سرکښ څاروي پري ترل کېږي.

**څړا** (cạrā́) ښځ.م. ۱) ورشو، څراو، څرڅای؛ ۲) څړ، څړ، چړ.

**څړپ** (crap) نر.م. چړپ، د اوبو د توییدو اواز.

**څړپن** (crapán) نر.م. چړپن، پوچ ویونکی.

**څړپول** (crapawál) مص. مت. ۱) بي ځایه غږول؛ ۲) چړپول، شړپول.

**څړپېدل** (crapedál) مص. ل. چړپېدل، شړپېدل.

**څړځای** (carjā́y) نر.م. ورشو، څړاو.

**څړک** (cṛak) نر.م. ۱) چړک، د لرګي د ماتېدو اواز؛ ۲) څڅېدنه؛ ۳) ټمچو، لرم، تمېد.

**څړکه** (cṛáka) ښځ.م. څریکه، چړکه، درد، څانګه.

**څړل** (cạrál) مص. ل. څریدل، څړېدل.

**څړمنی** (cạrmánay) نر.م. څرمونی، پسرلی، سپرلی، د کال لومړنی فصل، څرمونی.

**څړنی** (cạrnáy) ښځ.م. ۱) ککری، د سر کپری؛ ۲) نذري کاکل.

**څړوکی** (cṛūkay) نر.م. لتوره، خرخوری، لند، خیره، چیره، ریتاره.

**څړونګه** (cṛūngá) ښځ.م. ۱) څرنګه، د جلغوزو ونه؛ ۲) د لمنځي تنکي غوړګه.

**څړه**⁽¹⁾ (cṛa) ښځ.م. د سپي حمله، د سپي برید.

**څړه**⁽²⁾ (cạrá) ص. نر.م ۱) ګوښی، یوازي، مجرد؛ ۲) بي بار و بني سپور؛ ۳) خالي، تش، فقط؛ ٤) بالکل؛ ۵) هغه مجرد چي د مزدوری لپاره له ملک څخه وځي.

**څړه پانه** (cạrapā́na) ښځ.م. پانو، کاوږ، کاهو.

**څړه توب** (cạratóh) نر.م. جره توب، یوازیوالی، تنهایي، څړه ګي، ګوښی والي، لونټوب.

**څړه خشمه** (cạraxā́šma) ښځ.م. اره، څره، څرنازه، فلزي غابنوره آله ده.

**څړه ګي** (cạragí) ښځ.م. څړه توب، یوازیوالی، ګوښی توب، تنهایي، جره توب.

**څړه لار** (cạralā́r) ښځ.م. د پلیو لاره، پیاده رو، څړه واټ، پلي لاره، دري ګزی.

**څړه نازه** (cạranā́za) ښځ.م. څره خشمه، څره، اره، فلزي غابنوره آله ده.

**څړه وری** (cạrawā́ray) نر.م. څړه، ګوښی لو یوازي، مسافر.

**څړول** (caṛawə́l) مص. مت. څړول، پوول، پېول، څاروي او حيوانات ورشو ته بوول.

**څړی** (caṛáy) نر.م. ۱) نوکر، ملازم؛ ۲) د تناره د پاکولو ساېې؛ ۳) د څناور ځل، د څوابې ځل.

**څړی** (caṛáy) ښځ.م. پلکی، چوتکه، په ککری د وېښتو غوندی؛ ۲) د ځمکې لاتدنی برخه چې ګنډل شوې وي؛ ۳) سورکه، سر، د کېږدیو د ټینګولو لپاره لرګی.

**څړېدل** (caṛedə́l) مص. ل. و.ګ. څړېدل.

**څړیکه** (cṛiká) ښځ.م. چړیکه، چړکه، سخت درد.

**څړی وړی** (caṛaywaṛáy) ص. نر.م. د تش لاس لاروی، یوازې مسافر، تنها لاروی.

**څړي وړي** (caṛiwaṛí) نر.م. خواره واره پاتې شوني.

**څز** (caz) نر.م. جز، دوازګي د زاز بوکو او غوړیو د سره کولو اواز.

**څښاک** (cṣāk) نر.م. څښل، څکل، څښنه، چښل.

**څښتن** (caṣtə́n) نر.م. ۱) الله تعالی؛ ۲) مالک، خاوند؛ ۳) بادار؛ ٤) مېړه.

**څښتنتوب** (caṣtantób) نر.م. ۱) څښتنوالی؛ ۲) مېړه توب، مېړه والی.

**څښتونی** (caṣtū́nay) نر.م. کمکی دسمال، وړوکی رويمال، کوچنی دسمال.

**څښته** (caṣta) ښځ.م. پخلی، د ډوډی یا کتغ پخول.

**څښ څوړی** (caṣcoṛáy) نر.م. و.ګ. تسکوره.

**څښکله** (caṣkə́la) مص. نب. څښکله، څرنګه، څنګه، چشکله، سشکله.

**څښکو** (caṣkū́) نر.م. چاکسو، څاښکو، چاشکو.

**څښکوری** (caṣkū́ray) نر.م. ۱) څرکه، څوبسه، چوبکه، چرروک، چوشکی؛ ۲) نلکه، وړوکی نل؛ ۳) دوړو هلکانو آله.

**څښکوړی** (caṣkū́ṛay) نر.م. څرمن، پوست، چرم.

**څښل** (cṣəl) مص. ل. څکل، چښل، چیکل.

**څښندی** (cṣandáy) ص. نر.م. ښوبهېدونکی، څښېدونکی، څکېدونکی، کښېدونی.

**څښول** (cṣawə́l) مص. مت. ښوېول، څکول، څخول، راکښل، کښول.

**څښهاری** (caṣahā́ray) نر.م. د یو شي ورو او نرم غږ، خفیف اواز.

**څښی** (caṣáy) نر.م. ۱) ګیلکی، خوسی، د غوا بچی؛ ۲) څه شی، څه څیز، کوم څه.

**څښېدل** (caṣedə́l) مص. ل. ښوېېدل، څکېدل، څخېدل، راښکل کېدل.

**څک** (cak) ص. نر.م. ۱) نېغ؛ ۲) اواز ته غوږ ونه بوڅول؛ غوږونه څکول؛ ۳) مضبوط، محکم؛ ٤) نر.م. ناڅاپي تېز درد.

**څکا** (caká) ښځ.م. ۱) څښنه، څکنه؛ ۲) د څاڅکو د راڅڅېدو اواز.

**څک اروا** (cakarwá) ص. نب. ۱) اروا ووی، بد اروا، وروسترګی، چوس مار، سترووی.

**څکالکی** (cakā́lkay) نر.م. شوپرک، بڼاپېرک، ماښام چکالی، څکالی.

**څکالی** (cakā́lay) نر.م. ۱) شوپرک، ماښام چکالی؛ ۱) د چرم زره توته؛ ۳) څادر، چکالی؛ ٤) پشتکی، په تناره پوري نښتې د ډوډی یوه برخه؛ ٥) پنبه، مالوچ.

**څکاول** (cakāwə́l) مص. مت. څکول، کشول، راکښل؛ راښکل، راکشول، څښول.

**څکاوو** (cakāwū́) ص. نر.م. کشوونکی، څکوونکی، جذبوونکی.

**څکپانی** (cakpā́nay) نر.م. د ټېپر د پاڼو سابه.

**څکښو** (cakṣū́) نر.م. چاکښو، چکښو.

**څکل**[1] (ckal) مص. مت. چیښل، څښل، چیکل.

**ښکل**[۲] (cakə́l) مص. مت. ۱) ښکـه کـول، د شي خوند معلومول؛ ۲) نر.م. ۱) کم واټن، لېه لاره؛ ۲) د لارې يو، توټه؛ ۳) د ځمکې يو ، برخه.

**ښکل پکل** (cakalpakál) ص.نر.م. چکل پکل، اوبلنه ولوره.

**ښکنه**[۱] (ckə́na) ښځ.م. چينېنه، ښبنه، چښنه، د اوبو يا نورو مايعاتو غورپونه.

**ښکنه**[۲] (cakə́na) ښځ.م. خوند اخيستنه، خوند يا مزه معلومونه، خوند کتنه.

**ښکو** (cakó) نر.م. يو ډول ښايسته سکوی، يو ډول کښېږه، يو رلز خامکدوزي ده.

**ښکوړی** (ckóṛay) نـر.م. ۱) چکـوړی، وروکی سخوندر؛ ۲) خرسي ته د اوبو د ورکولو يا څان ته راغوښتلو اواز.

**ښکوړې**(ckóṛe) نر.م. د خرسي د ښېرلو اواز.

**ښکول**(cakawə́l) مص.مت. ۱) راکښل، کـرږول، کشول؛ ۲) د چلم لوګي راکښل، سـاه راکښـل؛ ۳) نر.م. سـيوس، بورکی؛ ٤) مص. مـت. څه کم ښېز ورکول، لږ شي ورکول.

**ښکولی**(ckúlay) نر.م ۱) د ځرمنې توټه؛ ۲) د زاړه بوټ يا پنې توټه؛ ۳) ښکي، د ډوډۍ ککوړی، د ډوډۍ ټيکلی.

**ښکونډاره**(ckunḍā́ra) ښځ.م. (ج. ښکونډارې) نوکاره، نکاره، سکونډاره، سکونډکه.

**ښکونډل**(ckunḍə́l) مص. مت.و.ګ. سکونډل.

**ښکونکی**[۱] (cakū́nkay) فا.نر.م. خـوند کتونکی ذايقه معلومرونکی.

**ښکونکی**[۲] (ckū́nkay) فـا.نـر.م. چښونکـی، چکونکی؛ د چلم سګرټ لوګي راښکونکی.

**ښکه** (caká) ښځ.م. (ج. ښکې) ۱) خوند، نوه، ژبه وروړنه؛ ۲) لږ خواړه؛ ۳) يو ډول ناروغي ده.

**ښکی** (ckay) نر.م. (ج. ښکي) ۱) ټوکړی، ښکړی ۲) د منډتې زړی؛ ۳) ص. نر.م. راښکـونکی، چښونکی؛ ٤) نر.م. جالکی، ډالی، د ډوډۍ د ساتلو کور.

**ښکې**(cáke) ښځ.م. ۱) ښرو، د خرسي د ښېرلو اواز؛ ۲) د ونې کړې، لښتون.

**ښکېدل**(cakedə́l) مص. ل. ۱) په لږ شي قانع کېدل په لږ ښېز صبرېدل؛ ۲) ښښېدل؛ ۳) ښښېدل، په کوناتو ټلل، په ناسته تلل؛ ۲) خوښېدل، راښکل کېدل؛ ۳) چلم ښکول کېدل، چلم کښل کېدل.

**ښکېږل** (cakeṛə́l) مص. مت. ايسارول، ګيرول.

**ښکېږلی** (cakeṛə́lay) مف. نر.م. بندي، ايسار شوی، په دام کې نښتی، په دام کې ګير.

**ښکېندن** (cakedə́n) نر.م. خوند، ښکه، ښکه، ذايقه، مزه، خوند معلومونه.

**ښګ** (cag) نر.م. ګوره.

**ښګک** (cagák) نر.م. غربی، سياګک، سګک، د ښپلۍ يا کمربند غربی.

**ښګل** (cagál) نر.م. و.ګ. ښرګل.

**ښلاښل** (clācál) ق. ۱) هغه درنګ، ځای په ځای، له تکه، په هماغه ساعت؛ ۲) ست، تباه.

**ښلاړی** (calāráy)ا. ښلور لاړی چوک، ښرلاړی.

**ښلګه** (calagá) ښځ.م. د اوبو دلاره، د اوبو پشکه.

**ښلوراړخی**(calorarxáy) ص. نر.م. ښلورمخی، د ښلورو پلونو، د ښلورو خولوو.

**ښلور برغه** (calorbráğa) ص. نب. ښلور قاته، ښلورغبرګه، ښلورروله، ښلور ښله.

**ښلوربل** (calorbál)ا. و.ګ.: ښلوربول.

**ښلوربول**(calorból) ص.نر.م. ښاروی، چارپای.

**ښلورښنډی** (calorcanḍáy) ص. نـر.م. ښلور اړخی، ښلورګوټی، ښلورکونجی.

**ځلورخانيز** (calorxāniź) ص. نر.م. چارخانه.

**ځلور خواوې** (calorxwāwe) ښځ. ج. ځلور ړخه، ځلور طرفه، ځلور لورې، ځلور پلوونه.

**ځلور سترګی** (calorstə́rgay) ص.نر.م. ۱) بد سترګی، بداخلاقه؛ ۲) بې شرمه، بې حيا.

**ځلور غاښی** (calorğā́ṣay) ص. نرم. ۱) ځلور عيبی، هغه ځاروی چې په عمر پنځه کلن وي؛ ۲) بياځی، خاځی، سکو، چاربناځه.

**ځلور ګوټي** (calorgwaṭí) ص. نسب. پ. ک. د چړې، خنجر او توري (تېغ) په ټپ کې د زخم معيار دی چې د ځلور ګوټو په اندازه وي. که تر دغه حد لږ وي لږ پور او که زيات وي په نرخ کې ډېر پور ورته ټاکل کېږي.

**ځلورګوټی** (calorgóṭay) ص. نر.م. د ځلورو ګوټو، ځلورګوټيز، مربع، مستطيل، معين.

**ځلورګی** (calorgáy) ښځ.م. د ميرو لوبه، ګوټي، ګاټي، د ماشومانو يو ډول لوبه ده.

**ځلورلارې** (calorlā́re) ښځ.م ۱) چوک، چارراهي، چارسو؛ ۲) مردد، دوه زړه توب.

**ځلور وريزی** (calorwrézay) ص. نر.م. نوی ځوان، هغه هلک چې نوي يې بريتونه راغلي وي.

**ځلورياران** (caloryārā́n) اً. وګ.: چاريار.

**ځلوريزه** (caloríza) ښځ.م. ۱) ځلور يځه، رباعي، هغه دوه بيتونه دي چې د لومړي بيت دوې مسرې د دوهم بيت له دوهمې مسرې سره په قافيه کې يو شي وي.

**ځلوېښتمه** (calwestə́ma) ص. ښځ. م. د مړي ځلوېښت ورځې تېرېدل، د ماشوم د زېږېدو ځلوېښتمه ورځ.

**ځلوېښتي** (calwesti) ښځ.م. په مړي پسې د ځلوېښتمې ورځې د پوره کېدو خيرات.

**ځلوېښتی** (calwestáy) نر.م. د ځلوېښتو سرو مشر، په ځلوېښتو سرو کې انتخاب شوی سړی.

**ځلوېښت يکه** (calwestyáka) ص. نب. چليک، ځلوېښتمه، د ځلوېښتو يوه برخه.

**ځله**[1] (cə́la) ق. ۱) ولې، څه لپاره، څه لـه، څه ته؛ ۲) يو له بله، سره؛ ۳) ښځ.م. يقين، باور؛ ۴) درزه تاو؛ ۵) سوده، سپه؛ ۳) هيله، آرزو؛ ۴) امينه، لورينه، پېرزوينه.

**ځله**[2] (c(i,ə)la) ښځ.م. ځهله، ځيله، چله، د ژمي د موسم هغه ۶۰ ورځې چې سخته يخني وي.

**ځله مست** (cilamást) ص. نر.م. هغه اوښ چې د ژمي په ځله کې مستېږي.

**ځله وال** (cilawā́l) ص. نر.م. ج. هغه څوک چې ځلوېښت شپې او ورځې په پټ او ګوښې ځای کې رياضت او عبادت کوي.

**ځلی** (cálay) نر.م. ۱) د قبر ښنخته؛ ۲) د تيږو ډيری؛ ۳) نښه، نښکه؛ ۴) منار، يادګار؛ پ. ک. په قبيلوي تعاملاتو کې د هغې تاديې غبرګېدو ته وايي چې لومړی يې د (ساز) په نامه اخيستي وي او وروسته دغه مسترد کړي او د (وار) په نامه خپل غچ ته چمتو شي؛ ۴) چلی، چله، په ګوته کې د اچولو کړی.

**ځلی** (calə́y) ښځ.م. د غرږو منډری، د غرږو لښتې.

**ځلی ځولی** (calaycū́lay) نر.م. ۱) لوړې ژورې، ځلي ځولي؛ ۲) د لارې تربه.

**ځلېر** (cler) نر.م. د بېديا تالاو، د مېږي اژدهېښتې ونو، د سارا حوض، جوور، تربلی.

**ځلی رنګول** (calayrangawál) پ. ک. که دوو دښمنو خواوو تر منځ جوړه وشي چې په پخلا کې دواړو خواوو يو په بل کې مړي سره کړي وي داسې جوړې ته ځلی رنګول وايي.

**څلېښ** (cleṣ) نر.م. څلېښت، سرېښ، سرېښ.

**څلېښم** (cleṣә́m) نر.م. سرېښم، د کمانګرې سرېښ چې ترکاڼان لرګي پرې سرېښوي.

**څم** (cam) ص.نر.م. ج. سم، سيخ، سيده، برابر.

**څمڅ** (cmac) ښځ.م. غار، سمڅ، سمڅه، ښمڅ.

**څمڅريکی** (camcarékay) نر.م. ۱) شرموښکی، غرمښکی، چرمښکی؛ ۲) کربوړی.

**څمڅک** (camcák) نر.م. د غټو دانو ناروغي ده.

**څمڅکی** (camackáy) نر.م. ۱) يو ډول چينجی دی چې غټ سر لري او وروسته تر څه مودې په چونګښې تبديلېږي؛ ۲) درغوږ کول، د څارويو يو ډول ناروغي ده.

**څمڅلکی** (camcalakáy) نر.م. ستن، بابښکی، کمبلی، يو ډول الوتونکي خزنده ده.

**څمڅمار** (camcamā́r) نر.م. چمچمار، کوچه مار، يو ډول ورکوټی، تری منګورو دی.

**څمڅه** (camáca) ښځ.م. د څمکې پرمخ چاود.

**څمڅې** (camcéy) ښځ.م. ۱) چمچه، څمڅه، د لرګي کاچوغه؛ ۲) لويه کاچوغه.

**څمڅکی** (camcekáy) نر.م. کوڅوبی، کسوبی، ميانګی، لکی، د شيري په څېر د ماشومانو يو ډول ناروغي ده.

**څمر** (camár) نر.م. څمنګی، ورېنکی، کوندری، هغه توکر چې پېږې ورباندې پردي.

**څمغېلی** (camǧélay) نر.م. ۱) ورو او زوړ خيمه؛ ۲) څېره، د مرغانو شکنو او نورو ځناورو د دارولو لپاره په پټي کې د ډول شوي شی.

**څمغېلي څمغېلي** (camǧélicamǧelí) ص.نب. وتره څمکه، وچه او لنده څمکه.

**څملاستل** (camlāstúl) مص.ل. ۱) ويده کېدل، بيدېدل؛ ۲) غځېدل؛ ۳) مغلوبېدل.

**څملول** (camlawә́l) مص.مت. ۱) پسټوزول، راغوزارول؛ ۲) ويده کول؛ ۳) مغلوبول.

**څمنګی** (camangáy) نر.م. ۱) ازنګ شوی او پخه شوی څرمن؛ ۲) هغه دسته خوان چې پېږې ورباندې جوړېږي؛ ۳) د څرمنې توته.

**څموڅی** (camúcay) ص.نر.م. پک، ګنجی، کل، بې ويښته سر.

**څمول** (camól) ص. ۱) غمجن، غمځپلی؛ ۲) ټپی، پرهار ژلی، زخمي، پيارورژلی.

**څمولول** (camolawә́l) مص.مت. ۱) غمجنول، غمګينول؛ ۲) ټپي کول، زخمي کول.

**څمولېدل** (camoledә́l) مص.ل. ۱) څمول کېدل، غمجن کېدل؛ ۲) ټپي کېدل، زخمي کېدل.

**څميار** (camyā́r) نر.م. و.ګ. چميار.

**څنار** (canā́r) نر.م. و.ګ. چنار.

**څنډ** (canḍ) نر.م. ۱) ډکه، ډيکه، ربج؛ ۲) اړی، څنډه، غاړه، کناره؛ ۳) د اسمان څنډه (افق).

**څنډل** (canḍә́l) مص.مت ۱) ټکول، ستول، څپول، له وني څخه په ښوررولو سره مېوه راتويول؛ ۲) له ټغر يا قالينې څخه د ورې ټکوهل؛ ۳) سپکول، سپوري ستغي وهل؛ ۴) نر.م. د غره پر سر اوار ځای.

**څنډلټوب** (canḍaltób) نر.م. ۱) څنډلښيا، رچېدنه، ښوربدنه؛ ۲) غريبي، تش لاسي.

**څنډلی** (canḍә́lay) نر.م. ۱) ورکوټی څنډل، د غره په سر ورکوټی اوار ځای؛ ۲) کنډواله، کنډر؛ ۳) ورکوټی ديوال.

**څنډول**[1] (canḍúl) نر.م. څنډلی، د ديوډی ګوټ، د دهليز څنډه، د کوشکن کونج.

**څنډول**[2] (canḍawә́l) مص.مت. ۱) ستول، ښوررول، څپول؛ ۲) ټک وهل، دوره ايستل.

خنډمنډ (xanḍmanḍ) ص نر.م. چاغ، څمټ او پسېځ، سرې.

خنډن (xanḍan) ص.نر.م. ۱) خنډين، رخې او خنډ لرونکی لرګی؛ ۲) پر عسوتې عوټې لـرونکی موټی دی.

خنډيل (xanḍíl) نر.م. خنډه، خنډک، نرزرک.

خنزير (xanzír) نر.م. سرکوزی، خوګ، سوډر.

خنصر (xinsír) نر.م. خمچه ګوته، کوچنۍ ګوته.

خنګ (xang) ص. نر.م. ۱) جامد، کلک، سخت؛ ۲) خجل شرمېدلی، پښېمان.

خنګ توب (xəngtób) نر.م. خجالت، شـرمنده ګي، خنګتيا.

خنګره (xángra) ښځ.م. ۱) د سرپخه؛ ۲) د غاښو منګ؛ ۳) د چاپېروش منګ؛ ٤) کوولی.

خنګری (xangaráy) نـر.م. د جولاګانو د توکر د اوبدلو لرګی.

خنګول (xangawə́l) مص. مت. خجلول، خړول.

خنګی (xángay) نر.م. لومه، د دام حلقه.

خنګېدل (xangedə́l) مص.ل. شرمېدل، خجلېدل، خړېدل، خړکېدل.

خنه (xna) ښځ.م. د پښو ډېره، سنګ پای.

خنی (xánay) نر.م. ۱) غرنی مـوږک، غرنی مږه، خنی، خونی؛ ۲) د نس خالیګاه.

خناپس (xanāpə́s) ص.نر.م. ګرنګن، هغه څوک چې پزه يې همېشه له ګرنګو ډکه وي.

خو[۱] (xaw) نر.م. دروغ، غلطي، چل، بدعهدي.

خو[۲] (xo) ښځ.م. ۱) خېـه، درګيران، يږی، لګوونی، يژی؛ ۲) اد. مګر، اما، لـېکن، چون؛ ۳) نر.م. په دول ګنی دی؛ ٤) ښـځ.م. عـيب، نقـص؛ ٥) شک.

خو[۳] (xū) ښځ.م. يو ډول نرم غرنی لرګی دی.

خوا (xwā) ښـځ.م. ۱) لوری، پلو، لرخ؛ ۲) زړه، خاطر؛ ۳) ارزو، حيله؛ ٤) يوځي شـوي څمکه؛ ٥) رابطه، اړيکه؛ ٦) علاقه؛

خوابدوالی (xwābadwā́lay) نـر.م. خوابدی، خپګان، زړه بدوالی، زړه بدي، خپه توب.

خوابدی (xwābadáy) نر.م. ۱) خپګان، زړه بدی، مرورتيا؛ ۲) ص. نر.م. خپه، زړه بدی.

خوابدي (xwābadí) ښځ.م. خپګان، خپه کېدنه.

خواپوته (xwāpóṭa) ص.نب. ۱) خـپه؛ ۲) بې اشتها.

خوا په خوا (xwā́paxwā́) ص. نب. ښـنګ په ښنګ، ارخ په ارخ، سره نيږدې.

خواتورن (xwātorán) نر.م. خواتوری، زړه توری، زړه وهلی، متنفر، تر پام بد شوی.

خواجه (xwājá) نر.م. ۱) صاحب، څښتن، خاوند؛ ۲) خسي، خصي، تيکول شوی.

خواچپی (xwāčápay) ص. نر.م. بد، مکروه.

خواخوږتيا (xwāxūẓtyā́) نـر.م. زړه سوی، خواخوږي، همدردي، خواخوږوالی.

خواخوږي (xwāxūẓí) ښځ.م. زړه سوی، همدردي.

خواخوږی (xwāxūẓáy) ص. نـر.م. زړه سوانده، همدرد، غمشريک، زړه سواندی، خوږمن.

خواخوښی (xwāxwáṣay) ص. نـر.م. راضي، خوشحال، رضامند، خوښ.

خواخوښي (xwāxwaṣí) ښځ.م. خوښي، رضايت.

خوار (xwār) ص. نر.م ۱) ډنګر، ضعيف؛ ۲) ذليل؛ ۳) مسکين، غريب؛ ٤) حقير.

خواربرخی (xwārbárxay) ص.م. خـوار بخـتی، خوار قسمتی، کم بخت، بدمرغه.

خوارځواکی (xwārǰwā́kay) ص. نر.م ۱) ناتوان، کم ځواکه، خوار، غريب؛ ۲) ضعف، کمزوري.

**خوارکوتی** (xwārkótay) ص.نر.م. خوارکوټی، ډېر عاجز، ډېر غریب.

**خوارکی** (xwārakáy) ص.نر.م ۱) خوار، غریب، عاجز؛ ۲) په جسمي لحاظ کمزوری.

**خوارنجوکی** (xwāranjúkay) ص.نر.م. ضعیف، کمزوری، کم قوته.

**خوارنجی** (xwāranjáy) ص. نر.م. ضعیف، کمزوری، ډنگر، خوار، خوارینجی.

**خوارول** (xwārawә́l) مص. مت. ۱) غریبول، مسکینول؛ ۲) په جسمي لحاظ کمزوری کول.

**خواره واره** (xwārә́wārә́) ص.نر.م. ج. خپاره ولره، تیت و پرک، تس نس، تار په تار.

**خواري** (xwārí) ښځ.م. ۱) کسب او کار؛ ۲) ربړ، زحمت؛ ۳) نېستي، مفلسي.

**خواریدل** (xwāredә́l) مص.ل. ۱) غریبېدل، مفلسېدل؛ ۲) ډنګرېدل، ضعیفېدل.

**خواري کښ** (xwārikáṣ) ص.نر.م. زحمتکښ، زیار ایستونکی.

**خواږه** (xwā́ẓә) نر.ج. ۱) د خوږو شیان، طعام، غذا؛ ۲) د غرکې د رنګولو مساله.

**خواږه** (xwā́zә) نر.م. ۱) د خوږو جمع، شیریني؛ ۲) هغه غوړي (وېشلي، شل یې) یا حلوا چې په مړي پسې په اوله شپه پخېږي.

**خواږه ولني** (xwāzәwalә́ni) نر.ج. بادیان.

**خواس** (xwās) نر.م. کبر، غرور، فخر، لویي.

**خواست** (xwāst) نر.م. ۱) ګدایي، غوښتنه؛ ۲) دعا، مناجات؛ ۳) امید، التجا.

**خواستغی** (xwāstáğay) ص.نر.م. وږستر ګی.

**خواستګار** (xwāstgā́r) نر.م. غوښتونکی، روبیار، طلبګار، جرګه والا، ربیار.

**خواشینی** (xwāšínay) ص.نر.م. خپه، متأثر.

**خوابښي** (xwāṣ́ә́) ښځ.م. د پښکي مور، د مېړه مور، د ماندینې مور.

**خوابښي توب** (xwāṣәtób) نر.م. خوابښې والی. د خوابښې ګوزاره او چلند.

**خواص** (xawā́s) نر.ج. ۱) ورنیږدې او مقرب کسان؛ ۲) د خاصیت جمع.

**خواګرځن** (xwāgarǰә́n) ص.نر.م. کرکجن شی، خواګرځېدونکی، قی راوستونکی.

**خواګرځول** (xwāgarǰawә́l) مص.مت. ۱) قی کول، استفراق کول؛ ۲) له نظره بد راتلل.

**خواګرځي** (xwāgarǰí) ښځ.م. ۱) قی، استفراق؛ ۲) نفرت، کرکه، بدلیده، بد راتله.

**خواګی** (xwāgáy) نر.م. ۱) پلوی، پټ کومک کوونکی؛ ۲) د مرد کیو یا غوزانو په لړیه کې هغه غوز چې پټ ایښودل شوی وي.

**خوال** (xwāl) نر.م. و ک؛ خاوال.

**خوالګر** (xwālgár) نر.م. خوالو، خواله ساتی، همراز.

**خوالو** (xwālṓ) ص. نب. همراز، محرم راز.

**خواله** (xwālә́) نر.ج. د زړه راز، همرازي.

**خواله ساتی** (xwālasā́tay) ص.نر.م. راز ساتونکی رازمن، رازساتی.

**خوانچه** (xwānčá) ښځ.م. و ګ. خونچه.

**خواوشا** (xwāwušā́) ق. چارچاپېره، څلور خواوې، شا وخوا، ګرد چاپېره.

**خواه** (xwāh) ور. د نومونو او صفتونو په اخیر کې پوروستاړی دی – نیمه خواه، بدخواه...

**خواهش** (xwāhíš) نر.م. هیله، امید، غوښتنه.

**خواهشمن** (xwāhišmán) ص. نر.م. هیله من، غوښتونکی، خواهشمند، آرزومند.

**خوایخی** (xwāyáxay) نر.م. زړه سېځنه، خوا یخېدنه، خوایخي، زړه یخي.

**خوب** (xub) نـر.م. ۱) ويده کېدنه؛ ۲) رويـا، د بېدېدو په حال کې څه ليدل؛ ۳) تش خيال.

**خوبا** (xubá) ښځ.م. ښېرۍ، معشوقه، محبوبه.

**خوباني** (xubānáy) ښځ.م. زردالو، منډله.

**خوبايي** (xubāyí) ص. نـر. ښـځ.م. ۱) ښـکلا، ښايست؛ ۲) ښه والي، غوره والي.

**خوبجن** (xobján) ص.نر.م. ۱) خـوب نيـولی، خـوب وړتلونکی؛ ۲) ډېر خـوب کوونکی؛ ۳) خوب راوستونکی.

**خوب خندا** (xobxandá) ا. ارامي، هوسـايي، آسوده ګي.

**خوبخونه** (xobxúna) ا.م. خوبګرته.

**خوبروی** (xubrúy) ص. نرم. ښکلی، ښايسته.

**خوبژلی** (xobžálay) ص. م. و ګ. ‹خوبجن.

**خوب کالي** (xobkālí) ا. د خوب کالي يا جامې.

**خوبنکی** (xobánkay) نر.م. يو ډول حشره ده.

**خوب نمري** (xobnmarí) ا. و ګ. خوب کالي.

**خوبـور** (xobawár) ص. خـوبـوونکی، خـوب راوستونکی (درمل).

**خوبوړی** (xobawə́ṛay) ص. و ګ. ‹خوبولی.

**خوبولی** (xobawə́lay) ص. نر.م. ويده، بيده.

**خوبي** (xobí) ص.نب. ډېر خوب کوونکی.

**خوبيوني** (xobīúnay) ص. خـوبګـرځی، خـوب چکری، په ويده ګرځېدونکی.

**خوپ** (x(o,u)p) نر.م. ګرز، غبار، ګرد، لړه.

**خوپره** (xoprá) ښځ.م. سخته ګرمي، ډېره ګرمي.

**خوپن** (xopún) نر.م. ښوکی، ګردباد، ګرده دوره.

**خوټ** (xwaṭ, xuṭ) نر.م. د ايشېدلو اواز، غوړس.

**خوټباد** (xoṭbā́d) نر.م. د خوټو پارسرب.

**خوټ خوټي** (xūṭxūṭáy) نـر.م. د جـوشـېـدو او خوټېدو اواز.

**خوټ خوټي** (xuṭxuṭáy) ښځ.م. وړه تونګۍ، وړې کوزې، هاوکه په مردکېږو څاوېدولېږه.

**خوټ کښ** (xuṭkáṣ) نر.م. څـوټکاښ، ګـوزوي، لوبه چونګښه، چندخ، شېڼځښه.

**خوټکېدل** (xuṭkedə́l) مص. ل. جوشېدل، خوټې کول، خوټېدل.

**خوټ لون** (xoṭlún) نر.م. د خوټو ځای يا کڅوړه.

**خوټنکه** (xūṭunúka) ښځ.م. د ښکلی، وړه کړوړه.

**خوټول** (xūṭawə́l) مص. مت. ايشـول، غړېـول، جوشـول، جوش ورکول، خوټکول.

**خوټه** (xwə́ṭa) ښځ.م. خايه، هګۍ، خصيه.

**خوټهار** (xūṭahā́r) نر.م. د ايشېدو پر له پسې اواز.

**خوټور** (xwaṭawár) ص. نر.م. ۱) د خوټو خاوند ۲) هغه سړی چې خوټې يې تر عادي اندازې غټې وي؛ ۳) مج. شهواني.

**خوټی** (xoṭáy) ص.نر.م. ووړکی، تيتکی.

**خوټېدل** (xūṭedə́l) مص. ل. ايشېدل، جوشـېدل، غړېېدل، خوټکېدل، پېشېدل.

**خوجه** (xwajá, xujá) ص.نر.م. نامرد، ايجړا.

**خوچکی** (xə́čkay) نر.م. د غوښې پولی.

**خوځند** (xwáǰand) فا. نر.م. خوځنده، خوځندی، خوځېدونکی، ښورېدونکی، متحرک.

**خوځندخج** (xwaǰandxáj) اګر. زورخج، متحرک فشار.

**خوځندکه** (xwaǰandáka) ښځ.م. حشره، خزنده.

**خوځـول** (xwaǰawə́l) مـص. مت. ۱) ښـورول؛ ۲) روانول، حرکت ورکول؛ ۳) راپارول.

**خوځه** (xóǰa) ښځ.م. د حيوان د سينې غوښه.

**خوځېدل** (xwaǰedə́l) مـص. ل. ۱) ښـورېدل؛ ۲) په حرکت راوستل کېدل؛ ۳) کوچېدل، تلل؛ ۴) بې ځايه کېدل.

**خوځین** (xwáǰin) نر.م.حرکت کوونکی، متحرک.

**خوځ** (xwac) ص.نر.م ۱) ډک، ډېر ډک، تر خنډو؛ ۲) نر.م.ګڼه، ډېر.

**خوځول** (xwacawə́l) مص.مت ۱) ډکول، ډېر کول؛ ۲) ګڼه ګڼه جوړول، ډېر جوړول.

**خوځ ماخوځ** (xwacmāxwác) نر.م.ګڼه ګڼه، غونښېدنه، پیروبار، ډېر، ډېره ګڼه ګڼه.

**خوځه** (xóca) ښځ.م. ښورځه، غار، سوري، سمڅ.

**خوځېدل** (xwacedə́l) مص.ل. ۱) ډکېدل، چخېدل سرخېدل؛ ۲) غونښېدل؛ ۳) ډېر جوړېدل، څومبېدل.

**خوخی** (xawxáy) نر.م. یو ډول شین بوټی دی.

**خود** (xwad) د. ۱) البته، شاید، پخپله، ممکن؛ ۲) نر.م. سد، واک، اختیار؛ ۳) اد. شکه.

**خوداختیار** (xwadixtyā́r) ص.نر.م.خودمختار آزاد، مستقل، په خپل واک، خپلواک.

**خود په خوده** (xwadpaxwáda) ق. پخپله، بې واسطې، پخپل سر، په خپله.

**خود خواه** (xwadxwā́h) ص.نب. هغه څوک چې ځان تر نورو لوړ ګڼي او یوازې ځان غواړي.

**خود سر** (xwadsár) ص.نر.م. سرایله وبرایله، پخپل سري، خود رایه، خود سري.

**خودښکه** (xwadáṣka) ښځ.م. اې خدایه!، لویه خدایه!.

**خود غرض** (xwadğaráz) صنر.م.خپل چاری، خپل چاروکی، مطلبي، مقصدي،مغرض.

**خودله** (xodulá) ښځ.م. یو ډول نی دی.

**خودمختار** (xwadmoxtā́r) ص.نر.م خپلواک.

**خودمه** (xodmá) مف. نر.م. خپلی، وهلی.

**خودي** (xwadí) ښځ.م. ۱) کبر، غرور؛ ۲) خپل خوالي ۳) ځانګړیتوب؛ ٤) سد، بیداري.

**خور**(۱) (xur) ښځ.م.(ج. خویندې) ۱) د پلار لور، د مور لور؛ ۲) ورور. له نومونو سره د ورسختاري په توګه راځي او صفت ترې جوړوي: لکه: غمخور ۳) د حال فعل د اشکالو بنسټ دی؛ ٤) ص.نر.م. وګ. خپور.

**خور**(۲) (xwar) نر.م. ۱) د پوست اَش؛ ۲) خپسی، پترکی؛ ۳) پوستکی، جلد؛ ٤) اولېنه، ګیاه.

**خورا** (xwarā́) ص.نب. له بېخي زیاتر، لیر، ډېر، بډو صفتو سره د تاکید په ډول راځي.

**خوراره** (xurā́ra) ښځ.م. ۱) خوروونکی(رنځ)، برص، جذام؛ ۲) وګ. پړنګ(۲).

**خورازک** (xwarāzák) نر.م. وګ.خروسک.

**خوراک** (xwarā́k) نر.م.خواړه، غذا، طعام.

**خوراکتوکي** (xwarāktokí) ا. خوراکي توکي، خوراکي مواد، غذايي مواد.

**خوراکخونه** (xwarākxū́na) ا. ډوډۍ خونه، د خوړلو کوټه.

**خوراکونج** (xwarākwánj) ا. د خوړو مېز، خوراکېره، د غذا خوړې مېز.

**خوراکي** (xwarākí) ص.نب. ۱) د خوړلو، د خوراک، خوراک سره تړلی؛ ۲) خوړونکی.

**خورانه** (xurā́na) نر.م. ۱) ناسکوللي، هغه وری چې ورګ یې نه وي سکوول شوی؛ ۲) د مشرۍ خورلقب.

**خوربللې** (xorbalə́le) ښځ.م. خورینګه، خورینه خوارخونده، په خور نیولې.

**خورج** (xoráj) نر.م. لوی کار، سترهوظیفه، مهم کار، د نوم کار، نامي یا غوره کار.

**خورجی** (xorjáy) ښځ.م. ۱) طبراق، د شپنو د ډوډۍ څولی؛ ۲) خورجین.

**خورجین** (x(o,u)rjī́n) نر.م. دمبله، بمبېړدن.

**خورجينه** (xorǰína) ښځ.م. ۱) د غلو خولی، پټه خولی، پښمي خولی؛ ۲) خورجين.

**خورځن** (xorʒán) نر.م. سره خاوره، خورزون، هغه سره منينه خاوره چې تنور ترې جوړوي.

**خورځه** (xorʒá) ښځ.م. د خور لور.

**خورخل** (xwarxál) نر.م. خورخول، د بياتي په خبر لويه اله ده چې پسونه پرې سکولي.

**خورخوتی** (xorxotáy) ښځ.م. و.گ. حباب.

**خورد** (xward) نر.م. چيتاکي، خورد، د پاو څلورمه برخه، ۲٤ مثقاله.

**خورده** (x(u,o)rdá) ښځ.م. خورده، د زيارت يا د سپيڅلي ځای خاوره.

**خورزن** (xurzán) نر.م. شينگلی، يو دول کاني دی چې له سري خاوري سره يو ځای کيږي او تنور او تبی ورڅخه جوړوي.

**خورزون** (xurzún) نر.م. خته، هغه ځانگړي ني چې په ارتي دول په يو ځا کې وي، سرشت.

**خورسک**(۱) (xwarsák) نر.م. خوشالي، قرصک.

**خورسک**(۲) (xursák) نر.م. و.گ. خروسک.

**خورسکتوب** (xursaktób) نر.م. خوښي، خوشحالي، خوشالتيا، خوشحالېدنه.

**خورک** (xwarák) نر.م. خورنه، د خوړلو طريقه.

**خورکوڅی** (xorkawʒáy) ښځ.م. د نجونو يوه لوبه ده.

**خورکه**(۱) (xoráka) ښځ.م. ۱) د خور اسم تصغير؛ ۲) خور يا کوم ښځي ته احترام کليمه.

**خورکه**(۲) (xawraka) ښځ.م. توبی، سپرويی، د اوبه ښبلو خاورين لوښی.

**خورکی** (xorkáy) ښځ.م. ۱) خورکه، د وړې خور لپاره د ناز کليمه؛ ۲) د نجونو يوه لوبه ده.

**خورکی** (xurkáy) نر.م. خرخر، خرېدنه، خورهار.

**خورگ** (xwarg) نر.م. خور، خپو، پترکی، د زخم پر مخ باندې خړوکی يا نري پوستکی.

**خورلنه** (xorlána) ښځ.م. ۱) کومه جيني چې واده شي نو د پلرگني او د پلار د کليوالو خورلنه گڼل کيږي؛ ۲) و.گ. خوربللې.

**خورمايي** (xurmāyí) ص.نسب. ۱) و.گ. خرمايي؛ ۲) يو دول سره توت؛ ۳) تيرمايي زودالو.

**خورمن** (xwarmán) نر.م. اشتها، زياته خوړنه لوږه.

**خورمنځ** (xwarmánǰ) نر.م. ۱) خواهش، ارزو، هيله؛ ۲) په زړه برابر، په طبع موافق.

**خورمني** (xormanáy) نر.م. مغذي او قوي خواړه، اشتهار اوستونکی.

**خورمه** (xormá) ښځ.م. گرمکي، د مخ وريځي؛ ۲) پوست وور، نری باران؛ ۳) نری نری خولې؛ ٤) نوي رسېدلي ويره؛ ۵) کوسه، څيکر، څوکې.

**خورنده** (xwarə́nda) ص.نسب. گېډور، خېټور، خېټو.

**خورندی** (xwarə́nday) نر.م. ۱) هغه څوک چې د نوي رسېدلي باغ ميوه اول ولو وخوري؛ ۲) نوي ميوه، هغه ميوه چې نوي پخ کوي.

**خورنگی** (xurangáy) ښځ.م. و.گ. خرونگی.

**خورنول** (xornawə́l) مص.مت. ۱) پړول، سنول، سکول؛ د پسه د سپېرو اوږل؛ ۲) ختل، پسه په ميږه ختل.

**خورنه** (xwarná) ښځ.م. لوخي، گوشخورده، نوکانو د لاندني پوستکي پورته کېده.

**خورنېدل** (xoranedə́l) مص.ل. پرېدل، سنېدل، سکېدل، ختل (د پسه ختل پر ميږه).

**خوروکی** (xorukáy) نر.م. ۱) خور، خړوکی، خپو، پترکی؛ ۲) پوست، قشر.

**خورول**[1] (xorawə́l) مص.مت. شوک مړول، شه شی په چا خوړل.

**خورول**[2] (xwarawə́l) مص. مت. ۱) ویرول، اولرول؛ ۲) نیتول، نشرول، خپرول.

**خوروور** (xórwor) ص. نر.م. تیت وپرک، خپور وور؛ ۲) نشر.

**خوره** (xūrá) ښځ.م. ۱) تپ، زخم، پرهار.

**خورهار** (xurahā́r) نر.م. خرهار، پرله پسې خرېدنه خور خور کونه، خورهار.

**خوری**[1] (xwā́ray) ص. نر.م. دېرخوره، خوراکي، خورنده، زیات خوره.

**خوری**[2] (xawráy) نر.م. ۱) خوورین، شینکی، کندول؛ ۲) ذات، نسل، خته؛ ۳) گل کته.

**خوري** (xorí) ښځ.م. خوروالی، خورگلوي، خورتوب، خولرخوانده گي.

**خوری**[1] (xoráy) ا. (د روغتون) نرسه، همشیره؛ پرستار.

**خوری**[2] (xawráy) ښځ.م. پتکری، زمچ، پتکری، یو دول دارو دی.

**خوریدل** (xwaredə́l) مص.ل. ۱) خپریدل، تشریدل؛ ۲) ویریدل، اواریدل، پلنیدل.

**خورین** (xawrī́n) ص. نر.م. ج. خاورین لوښی، د خاورو لوښی، خوری.

**خورینگه** (xorī́nga) ښځ.م. خورینگی، خورینه، خولرخوانده، دیني خور، ملگري، سوېلی.

**خوریی** (xoryáy) نر.م. خوریی، د خور زوی.

**خوړ**[1] (xwaṛ) نر.م. شپله، سم، لگي، د سېلاو د اوبو ویج مسیر.

**خوړ**[2] (xūṛ) نر.م. د کانکو آواز، هرق.

**خوړ**[3] (xoṛ) ص. نر.م. تیار، ملاتړلی، چمتو.

**خوړجن** (xwaṛján) ص.نر.م. پلشکله، پلرنگه.

**خوړج** (xwṛac̄) نر.م. نسترن غوندي یو اغزن او بیر غرنی بوټی دی، سرې داني کوي.

**خوړسکه** (xwṛə́ska) ښځ.م. ۱) تریخ لسوگی، غوروسکه، گن دود؛ ۲) بدبويي، مرداربوی.

**خوړکی** (xoṛkáy) نر.م. د کانکو کولو اواز.

**خوړگه** (xwáṛga) ښځ.م. ۱) پسته او نرمه شمکه؛ ۲) زوړ او وروست اسباب؛ ۳) خوړین کالي.

**خوړگی** (xwaṛgáy) ښځ.م. ۱) رنجه، د تورکر زره لته؛ ۲) کوچنی خوړ، هغه تنگ او ژوړ ځای چې د نیز اوبه په کې بهیږي.

**خوړل** (xwaṛə́l) مص.مت. ۱) تغرل، خواره ژوول او کېدي ته تېرول؛ ۲) چیچل؛ ۳) ژوول؛ ۴) غصبول، د چا په مال خپته اچول؛ ۵) لگېدل، په گولی یا تیره لگېدل؛ ۶) کړل؛ ۷) وهل؛ ۸) ځېځېرل؛ ۹) سولول.

**خوړنځی** (xwəṛanǰay) نر.م. هوټل، رستوران، د خوړلو ځای، د خوراک ځای، طعام خوري.

**خوړول** (xwaṛawə́l) مص. مت. و.گ. خورول[1].

**خوړونی** (xwaṛúnay) مف. نر.م. د خوراک شیان.

**خوړه** (xwáṛa) ښځ.م ۱) الگي، ناو، شپله؛ ۲) د ورا یا واده دودی؛ ۳) د واده نه یو دوه ورځ مخکې هغه خوراکي شیان یا جنس چې د زوم له کوره د ناوې کورته وروړل کیږي؛ ۴) د کوژدې مراسم.

**خوړهار** (xuṛahā́r) نر.ج. د خړپرله پسې لواز.

**خوړه مار** (xwaṛamā́r) فا. نر.م. ۱) خوړونکی؛ ۲) رشوت خور، بلې خور؛ ۳) وظیفه خور.

**خوړه مشر** (xwaṛaməšar) نر.م. سرخان، د خوړې مشر، د خوړې تنظیمونکی.

**خوړه وال** (xwaṛawā́l) نر.م. د خوړې وړونکی، د خوړې غړی، په خوړه کې برخه اخیستونکی.

**خوړې** (xuṛé) ښځ.م. یو دول بوټی دی.

**خوږېدل** (xuẓedә́l) مص. ل. ۱) استغراق کېدل؛ ۲) مړېدل؛ ۳) له اوبو اولړ اېستل.

**خوږېدلی** (xuẓedә́lay) مف. نر. م. ۱) لمی شوی؛ ۲) مور شوی؛ ۳) د جذام په ناروغۍ اخته شوی.

**خوږین** (xwẓī́n) ص. نر. م. ج. ۱) د بر پسوخ شوی، خول بل؛ ۲) وروست، شړېدلی؛ ۳) خپه.

**خوږین پرین** (xwẓinpẓín) ص. نر. م. ۱) بېخي پوخ، خول بول؛ ۲) زيات وروست، شړېدلی.

**خوږین توب** (xwẓintób) نر. م. ۱) پخشوب، خوږینتیا، خوږین والی؛ ۲) وروستوالی.

**خوږینول** (xwẓinawә́l) مص. مت. ۱) پخول؛ ۲) وروستول، پوده کول؛ ۳) خپه کول.

**خوږینېدل** (xwẓinedә́l) مص. ل. ۱) پخېدل، زيات پخېدل؛ ۲) وروستېدل؛ ۳) خپه کېدل.

**خوږې وږې** (xwaẓéwaẓé) ص. نب. خوږې تنې، شلورشانګې، شلور لرخه، آرام، بې غمه.

**خوږول** (xwaẓawә́l) مص. مت. و ک. خوږېدل.

**خوږ**[1] (xwaẓ,xuẓ) نر. م. ۱) درد، ناروغي، مرض ۲) ژوبل؛ ۳) زخمي.

**خوږ**[2] (xoẓ) ص. نر. م. ۱) د تریخ ضد، شیرین؛ ۲) خوندور، لذیذ؛ ۳) په زړه پورې، ګران

**خوږ اروا** (xoẓarwā́) ص. خوږې اروا، ورین تندی، خوشحوی.

**خوږ ژبی** (xoẓẓә́bay) ص. نر. م. هغه څوک چي ژبې ټې او خوږې خبرې کوي.

**خوږ ژبي** (xoẓẓәbí) ا. خوږ وراشي، شیرین زباني.

**خوږغاړی** (xoẓġā́ray) ص. خوږ غږی، خوږ اوازی.

**خوږک** (xwaẓúk) نر. م. یو ډول چینجی دی.

**خوږکمبری** (xoẓkambә́ray) نر. م. سنتره.

**خوږلت** (xwaẓlә́t) نر. م. ۱) خوږوالی، شیریني خوندوروالی؛ ۲) خوږې خبرې کونه.

**خوږلماری** (xoẓlmā́ray) نر. م. ازار خاني، خوږ مرې، اونت، پرک پرک، کرنکوتی.

**خوږلن** (xuẓlә́n) نر. م. پوړندی، د سرې پلو، پر ابرو لاندې لور.

**خوږلنی** (xwaẓlә́nay) ص. نر. م. خسوږه لرری، شیرین وزمه، خوږ لوری، شیرین چک.

**خوږم** (xūẓә́m) نر. م. سونی، پلسمن، یو ډول ګل دی چې سپین، شین یا ژېړ رنګ لري.

**خوږمن** (xūẓmә́n) ص. نر. م. ج. ۱) دردمن، دردېدلی، خوږشوی؛ ۲) همدرد، خواخوږی.

**خوږمی** (xūẓmә́y) ښځ. م. یو خوږ لوری بوټی دی.

**خوږنی** (xwaẓanә́y) ا. د خوږې (ګوړې، بورې، قند) لوبې، قندداني.

**خوږوالی** (xoẓwā́lay) نر. م. شیریني.

**خوږوبی** (xwaẓóbay) نر. م. شربت، خوږ شباک.

**خوږوکه** (xwaẓū́ka) ښځ. م ۱) شکه خوند کته نږا؛ ۲) مساله، دنګولي مساله.

**خوږول**[1] (xwaẓawә́l) مص. مت. ۱) شیرینول، خوږه وراچول؛ ۲) خوندور کول.

**خوږول**[2] (xūẓawә́l) مص. مت. ۱) زخمي کول؛ ۲) دردول، ژوبلول، زوبلول.

**خوږه** (xwaẓá) ښځ. م. ۱) شیریني، بوره؛ ۲) مچو، پښکل؛ ۳) د خوږ بنشینه شکل.

**خوږه پلور** (xwaẓaplór) ص. خواږه پلورونکی، شیریني پلور، د خوږو پلورغی.

**خوږه ساز** (xwaẓasā́z) ص. خوږه (شیریني) جوړوونکی، مټهایي جوړونکی، قناد.

**خوږه کاسه** (xwaẓakā́sa) ښځ. م. بوله، پښه‌لرته، پایبولزي، د خسر کره د زوم لومړنی ورتلنه.

**خوږه کی** (xwaẓakay) نر. م. ۱) خوږلن، خوږ لوری، لې خوږ؛ ۲) وروه کي، یو ډول بوټی دی.

خوږه لوري (xwaẓәlóray) ص. نر. م. خوږلن، خوږ وزمه، خوږ شان، خوږ غوندې، شیرین مزه، شرین چک.

خوږه وله (xwaẓawә́la) ښځ. م. خوږه ولې، شیرین بوټه، ددغه بوټي ريښې او بيخ.

خوږېدل^(۱) (xwaẓedә́l) مصد. ل. ۱) شیرینېدل، خوږه په کې حل کېدل؛ ۲) په زړه پورې کېدل، خوندور کېدل.

خوږېدل^(۲) (xūẓedә́l) مصد. ل. زخمي کېدل؛ ۲) ژوبلېدل، دردېدل، زوبلېدل.

خوسا (xosā́) ص. نب. خسا، گنده، بدبويه.

خوساخولی (xosāxwálay) ص. نر. م. هغه شوک چې له خولې نه يې بد بوی ځي.

خوساډنډ (xosāḍánd) نر. م. د بوينو اوبو ډنډ.

خوسا سارمه (xosāsā́rma) ښځ. م. يو ډول خوړلن بوټی دی.

خوسانبی (xosānbáy) ښځ. م. خسانبي، شینتغ، شين توبي، يو ډول مرغه دی.

خوساکانی (xosākā́nay) نر. م. يو ډول کاڼی دی چې لوښي ځني جوړوي.

خوساوزه (xusāwáza) ښځ. م. و گ. خشاوزه.

خوس خوس (xwasxwā́s) نر. م. وری وری، د جواري (قمار) يو ډول لوبه ده.

خوسکی (xosakáy) نر. م. خوسی، سخوندر، کوری، گورکی، سخی، خُسی.

خوسی (xosáy) نر. م. ۱) خوسکی؛ ۲) يو لوبه ده.

خوش (xwaš, xūš) ص. نر. م. ۱) ښه، په زړه پورې؛ ۲) د ځينو مرکبو کلیمو لومړی توکی دی. لکه: خوش اخلاقه...

خوشا تاړي (xošātāṛáy) ص. نر. م. خوشکی، لېر، خوشي، سودر، ایله گرد، خوشتاري.

خوشاتړ (xošāṭár) ص. و گ. : خوشاتاړي.

خوشال (xwašā́l) ص. نر. م. ج. ۱) خوشحال، خوښ، خوشاله؛ ۲) د پښتو ژبې وتلی شاعر.

خوشالول (xwašālawә́l) مصد. مت. خوښول، خوشاله کول، خوشحالول.

خوشالېدل (xwašāledә́l) مصد. ل. خوښېدل، خوشاله کېدل، خوشحالېدل.

خوشاوزه (xošā́wza) ښځ. م. خوساوزه، د لوخي په څېر يو ډول بوټی دی.

خوشایه (xwašā́ya) نر. ج. خوشايي، خوسايي.

خوش خمیره (xušxamíra) ښځ. م. د خمیر شوو اوړو ټکی.

خوشکه^(۱) (xūška) ص. نر. م ۱) ناحق، بې فايدې، چټی؛ ۲) النطي جنگ؛ ۳) شکرېته.

خوشکه^(۲) (xwašká) ښځ. م. ۱) قهر، منت، تهديد ۲) وچه، سرکړه، وچکالي.

خوشکی (xwaškáy) ص. نر. م ۱) و گ. خوشاتاړي ۲) لېر، سوډر، ایله گرد.

خوشکي (xū́ški) د کاغذ باد نازک کاغذ.

خوشلاړي (xwašlā́ṛi) نر. ج. د شاړوې ريخ.

خوشلړ (xwašlár) نر. م. له خوشيو سره گډه شرې خاوره؛ ۲) جنجال، دعوه، دنگله، لانجه، شخړه.

خوشمړي (xwašmáṛi) نر. ج. نغدي پیسې.

خوشې (xwáše) ق. ۱) چټی، عبث؛ ۲) وریا، مفت؛ ۳) خلاص، آزاد؛ ٤) تش، خالي.

خوشی (xošáy) ښځ. م. د ماشي په څېر يو ځزنده ده.

خوښ (xwaṣ̌) ص. نر. م. ج. ۱) راضي، خوشاله، خوشحال؛ ۲) غوره، چوڼ شوی، منتخب.

خوښاړه (xoṣ̌ā́ṛa) ښځ. م. د مېوه يي ونې گل.

**خوښمن** (xwaṣ̌mán) اص. نر.م. ۱) لموره کوونکی، خوښوونکی؛ ۲) خوښ، خوشحال، خوشاله.

**خوښور** (xwaṣ̌wár) ص. د خوښې ور، د رضايت ور.

**خوښول** (xwaṣ̌awə́l) مص.مت. ۱) خوشالول، راضي کول؛ ۲) غوره کول، چانول.

**خوښه** (xwáṣ̌a) ښځ.م. (ج. خوښې) ۱) رضا، ميل، رغبت؛ ۲) انتخاب، غوره کونه.

**خوښي** (xwaṣ̌í) ښځ.م. ۱) خوښښتيا، خوښوالی، خوشالي، اننه؛ ۲) انتخاب، رضا، خوښه.

**خوښی** (xuṣ̌ay) نر.م. د واده لګښت.

**خوښېدل** (xwaṣ̌edə́l) مص. ل. ۱) خوشالېدل، رضا کېدل؛ ۲) انتخابېدل، غوره کېدل.

**خوښينه** (xwaṣ̌ína) ښځ.م. (ج. خوښينې) ښينه، ښکينه، د مانديني خور، د ښځې خور.

**خوف** (xawf) نر.م. ويره، ډار، بېره، بيم.

**خوفناک** (xawfnák) ص. نر.م.ج. بېرووونکی، ويروونکی، ډاروونکی.

**خوګ** (xūg) نر.م. وګ. خنزير.

**خوګلن** (xūglán) نر.م. په ايرو کې پټې سکروټې.

**خول** (xol) نر.م. ۱) د اوسپنې خولی؛ ۲) تلی، پوچک؛ ۳) يو ډول ډېر لرونکي بوټي دی.

**خول بور** (xūlbúr) نر.م. سرپوښ، خول پټی.

**خول بول** (xūlbúl) نر.م. ۱) خورت پت، خول بل؛ ۲) مېده مېده؛ ۳) ستوری ستورمانه.

**خول پټی** (xwalpáṭay) نر.م. ۱) وګ. خول بور؛ ۲) ص. نر.م. خاموش، غلی، چوپ.

**خولخوږي** (xūlxūẓ́i) ښځ.م. يو ډول ناروغي ده.

**خولخوږی** (xūlxūẓáy) ص.نر.م. هغه څوک چې په خولخوږي اخته وي.

**خولخونده** (xūlxwánda) ښځ.م. يو ډول شيره ده.

**خولکی** (xwalákay) نر.م. خلکی، تيله، خاشه.

**خولکۍ** (xūlkáy) ښځ.م. يو ډول ګياه ده.

**خولګنډلی** (xūlganḍə́lay) ص. خولپټی، چپه ترلی، خپ و چپ.

**خولګۍ** (xwalgáy) ښځ.م. ۱) وړه خوله، کوچنی خوله، خولګوټې؛ ۲) مچو، مچکه.

**خولم** (xwalám) ص. نر.م. ۱) لړلی، ککړ، اوند، لېت پېت؛ ۲) اوار؛ ۳) نښتی، منطبق.

**خولمول** (xwalamawə́l) مص.مت. ۱) لسيل لړندول، ککړول؛ ۲) اوارول، پلنول.

**خولن** (xwalán) ص.نر.م. ۱) خولي، تخولي شوی؛ ۲) خولي کوونکی، خولي کېدونکی.

**خولنګ** (xuláng) نر.م. فرياد، ژړا، انګولا.

**خولنګول** (xulangawə́l) مص.مت. په ژړا کول، په فرياد کول، په ماتم، کېښنول.

**خولنۍ** (xwalanə́y) ښځ. م. يو ډول غرنی بوټی دی چې د چنو په اندازه دانې کوي.

**خولوابنۍ** (xwalwā́ṣ̌ay) نر.م. خولند، خولښتي، خرلوندی، خولرنګی، سنی، هغه نری پېزی چې د جوال يا بوجې خوله پرې ترې.

**خولول** (xulawə́l) مص. مت. ۱) وهل، ټکول؛ ۲) منېل، پلنول؛ ۳) خملول؛ ٤) مج. غبېږ په غبېږ کېدل او جنګ کول.

**خولووني** (xulawū́nay) نر.م. يو ډول سپېره او خړ رنګي بوټی دی.

**خولوېش** (xwalwéṣ̌) ا. د پاڅورو (ولوڅانو) او منځ د غلي او نورو موسمي پېرو (محصولاتو) وېش.

**خوله**[1] (xwalá) ښځ.م. ۱) د ژوو په سر کې هغه مجرف چورست چې ژبه او غاښونه په کې پراته وي؛ ۲) د کښوري، بوجی خوله؛ ۳) مخکې، مخه؛ ٤) مچه، بوسه؛ ٥) مج. وعده، ژمنه.

٦)خوله، عرق؛ ٧) پروډول واچـه؛ ٨)خولی، توپي، د سر خولی.

خوله⁽²⁾ (xūla) ښـغ.م. هغه طلاقـه شوې ښـځه چې پخوانی میړه یې بیرته په نکاح کړي.

خوله بند (xwalabánd) ص. نر.م. تردو سوو، او گیر، هغه ناروغي چې له تودوالي څخه وروسته د سـوړوالي پیدا کیږي.

خوله پرې کول (xwalaprekawə́l) مـص.ل. ١)خبره فیصله کول؛ ٢) خبرې کول.

خوله ور (xwalawár) ص. نر.م. ژبور، دچې ژبې خاوند، خبرلوڅ، ویاند.

خولې (xwále) ښغ.م. د ستنې برغ.لی؛ هغه لرگی چې دستنې او پش ترمنځ ا...ر... کیږي.

خولی⁽¹⁾ (xū́lay) نر.م. پروډولـ... وتی دی.

خولی⁽²⁾ (xawláy) نر.م. د غره دلمنې ... بینه خاوره.

خولیدل (xūledə́l) مص.ل. ١)وهل کېدل، تکېدل ٢) پلنېدل؛ ٣) سره رغږېدل؛ ٤) مج. غبې په غبې کېدل.

خوم (xūm) نر.م. خم. مټ، هغه مټ چې رنگـریزان جامې په کې رنگوي.

خومار (xumā́r) نر.م. ١)قمار، جواري؛ ٢) گـرد، غبار، دوړه؛ ٣) جوش، گـرمي؛ ٤)ص. نر.م. چتي، بې فایدې. عبث.

خوماري (xūmārí) ښغ.م. ١)ختوری، شفتالو؛ ٢) نشـه یي.

خومری (xūmrə́y) ښغ.م. جوری، لوغی، کتوه، غوالوشي، خاورین لوښی لکه کتوه.

خومښ (xūməṣ̌) نر.م. توده گردجنه وروغ.

خون (xūn) نر.م. ١) یژنه، قتل؛ ٢) وینه.

خوناب (xūnā́b) نـر.م. سروانی، د ډیرویی، زوره، زروبه، هغه تو چې وینه ورسره یو ځای وي.

خوناړینه (xūnāṛína) ښغ.م. دلرنه، شیرونه.

خون بها (xūnbahā́) ښغ.م. دیت، هغه مالي بدل چې قاتل یې د مقتول وارثانو ته ورکوي.

خونجاره (xūnjā́ra) ښغ.م. ١) زړه لنه، ورسـته توته؛ ٢)زلړه او توکر توکر کالي.

خونچه (xūnčá) ښغ.م. ١) خوانچه، هغه پتنوس چې د ناوې یا زوم کره نکـریزې، کـالي او... په کې وړل کیږي.

خونخوار (xūnxwā́r) ص. نر.م ١) قاتل، خوني ٢)ظالم؛ ٣) وینې شمبونکی.

خوند (xwand) نر.م. مزه، ذایقه، لذت.

خوندور (xwandawár) ص. نر.م. ج. مـزه ناک، مزه لرونکی، مزه دار، مزیدار، خوند لرونکی.

خوندي (xwandí) ص.نب. محفوظ، سـاتل شوی، ځای په ځای شوی، پټ کړی شوی.

خوندیینه (xwandiṭúna) خوندیوالی، خوندیتوب.

خونریزي (xūnrezí) ښغ.م. ١) وینه ضایع کونه، وینه تویېدنه؛ ٢)قتل، وژنه، قتلونه.

خونړی (xūnaṛáy) ص.نـر.م. ١) خـوني، قاتل، وژونکی؛ ٢) وینه تویوونکی.

خونسرد (xūnsárd) ص.نر.م ١)د حوصلې خاوند، آرام، سړو مزاجه؛ ٣) بې پروا، زړه مانی.

خونکار (xūnkā́r) ص.نر.م. خون کوونکی، خوني وژونکی، قاتل.

خونگتی (xūngatáy) نر.م. تاتیه، تمـتـه، ذنه، د جوارو تاتته.

خونول (xūnawə́l) مص.مت. ١) شیندل، نوسنل؛ ٢) مج. قربانول، نثارول، جارول.

خونه (xū́na) ښغ.م. کوټه، اطاق؛ کور، مینه.

خونی (xū́nay) نر.م ١) ښندنه؛ ٢)جارونه نثارونه ٣)هغه سوغات چې شـرواده وروسـته په ناوي

پسې د پلازله کوره لیږل کېږي.

**خوني** (xūní) ص. نر. ښځ.م. ۱) خونړی؛ ۲) قاتل، ادم کش، وینه توېوونکی.

**خونی** (xūnáy) ښځ.م. پېټک، مـخ ورنی، روی دیدني، د ناوې مخ لوڅي، مخ رونی.

**خوهل** (xūhə́l) مص.ل. کیندل، کندل، کنستل.

**خوی**[۱] (xway) نر.م. ۱) اُپارو، راشپېل؛ ۲) ښځ.م. د ونو سنېږي د ونو غوږکه، د ونو وخی؛ یو دول وره حشره ده چې په ونو کې پیدا کېږي.

**خوی**[۲] (xūy) نر.م. عادت، خصلت، خُلق، اخلاق.

**خوي**[۳] (xwi) نر.م. ۱) منګـول، پنجاله، پنجـه؛ ۲) مج. کوښښ، زیار، خېږی؛ ۳) منګـولې لګول او ملې غلې کول.

**خوېښ** (xwéx̌) نر.م. و ګ. خېږی.

**خوېول** (xūyawə́l) مص. مت. سېړول، خـوږېنول، زخم یا دانه شېړول.

**خوېووني** (xūyawúnay) فام.نر.م. شـېړووني، خوږېنووني، هغه دارو چې زخم شېړوي.

**خوېدل** (xūyedə́l) مص.ل. شېږېدل، خوږېـدل؛ د زخم یا دانې شېږېدل.

**خې** (xe) ښځ.م. ۱) د (خ) توری تلفظ؛ ۲) نر.م. ایغ په ګونډو، په ګونډو ناست، خې کېدنه.

**خی** (xay) ص. ښځ. م. چټل، ناولی خیز، کخ.

**خیابان** (xyābā́n) نر.م. واټ، د ښار یا باغ په منځ کې لویه او پراخه لاره.

**خیار** (xiyā́r) نر.م. ۱) انتخاب؛ ۲) اختیار، واک.

**خیاره** (xayā́ra) ښځ.م. دوې توکې، دوه غایه.

**خیاط** (xayā́t) نر.م ۱) درزي، ګنډونکی، د کالیو درښېو او... ګنډونکی.

**خیال** (xyā́l) نـر.م. ۱) فکـر، سوچ، تصـور، پام؛ ۲) ګمان، وهم؛ ۳) ویاړ، فخر، سامانه.

**خیال پال** (xyālpā́l) ص.نـر.م. ۱) انګېرېال، خیال پرست، فکري؛ ۲) د خیال خوځوونکی.

**خیال پلو** (xyālpaláw) نر.م. د چـرت، فکر، د سوچ دنیا، په خیال سره دنیا ابادونه.

**خیالجن** (xyāljə́n) ص. نر.م. ۱) و ګ. خیالمن؛ ۲) خیالور؛ مغرور، د ویاړ او لاپې کوونکی.

**خیالمن** (xyālmán) نر.م. ۱) خیالـجن، د نهضر خاوند، ویاړمن؛ د سېنګار خاوند، دولي.

**خیالو** (xyālo) ص. نب. ۱) دولي ښځه، سینګاري ښځه؛ ۲) ګرانه، محبوبه، شهې.

**خیالوتکی** (xyālūtkay) ص.نـر.م. مغـرور، ویاړمن، خیالجن.

**خیالور** (xyālawár) نر.م. و ګ. خیالمن.

**خیالولی** (xyālawálay) ص. و ګ. خیالمن.

**خیالي** (xyālí) ص. نب. ۱) تصـوري؛ ۲) ویـار کوونکی؛ ۲) دولي، سینګاري.

**خیانت** (xyānát) نر.م. دوکه، درغلنه، غدر.

**خېبی** (xebéy) ښځ.م. خوږی سربېتی دند، یخوږی د لویو یخولو لپاره ژور دند.

**خیت** (xit) ص. نـر.م. ۱) پیست، چیت، چـست پت، خیت پیت؛ ۲) خږ، سپېره، په خاورو لړلی.

**خیتکه** (xítka) ښځ.م. کرښه، خط، لیکه.

**خیتلکه** (xitálka) ښځ.م. جدول.

**خیته** (xíta) ښځ.م. لیکه، خط، کرښه، خیتکه.

**خېته** (xéta) ص. نر.م. هغه دېوال چې د لوېدو وېره یې موجوده وي.

**خیتو** (x(i,e)tú) ص. نب. خېتو، ګېډور، خېټور.

**خېټورتوب** (xetawartób) نـر.م. نـسورتوب، ګېډورتوب.

**خېټه** (xéṭa) ښځ.م. نس، ګېډه.

**خېجی** (xejáy) ښځ.م. جر، زاېر.

خيچن (xičán) ص. نر.م. ج. و گ. خچن.
خيخه (xéca) ښځ.م. ښخشاکه، بهوشباکه، توتکي، توتکري، خشباکه.
خيد (xid) نر.م. خود، خپل، هغه غنم يا اوريشي چي وختي کرل شوي وي.
خيدک (xaydák) نر.م. هرکله چي شپيدي وراني شي او بيا گردی چکي ورڅخه جوړي شي.
خير (xayr) نر.م. ۱) ښېگڼه، نېکي؛ ۲) خيرات.
خير (xir) ص. نر.م. ۱) غوسه ناک؛ ۲) تيار، آماده ۳) شرمنده؛ ۴) سرزوري؛ ۵) مخالف؛ ۶) خير.
خيرات (xayrā́t) نر.م. صدقه، د خدای په نامه څه ورکول.
خيرات‌خور (xayrātxór) ص. نر.م. هغه څوک چي تل خيراتونه خوري.
خيراتول (xayrātawā́l) مص. مت. ۱) صدقه کول، د خدای په نامه څه ورکول.
خيراتي (xayrātí) ص. نب. خدايي، نذري، د خيرات، ثوابي، د خدای په جهات.
خيراتېدل (xayrātedā́l) مص. ل. صدقه کېدل، قربانېدل، د خدای په نامه يو څه ورکول کېدل.
خيرانديش (xayrandéš) ص. نر.م. خيرخواه، خيرغوښتونکی، خواخوږی، نېک نظری.
خيرجتوب (xerajtób) نر.م. خجالتتيا، خيرجتيا خيرڅتوب، خيرجرالي.
خيرجه (xerajá) ص. نب. خيرڅه، خړ، شرمنده.
خيرخواه (xayrxwā́) ص. نب. خواخوږی، نېک نظري، ښکومی، خيرانديش.
خيرڅتوب (xerajtób) نر.م. شرمنده گي.
خيرڅه (xerajá) ص. نب. شرمنده، خړ، خجيل.
خيرسوی (xirsáway) ص. هغه جامي چي له ډېر خيري نه له پاکېدو وتي وي.

خيرن (xirán) ص. نر.م. ۱) ناولي، چټل، گنده؛ ۲) خپه، تور زړه، تور شوی زړه.
خيرنول (xiranawā́l) مص. مت. ناولي کول، چټلول، گنده کول.
خيرنېدل (xiranedā́l) مص. ل. ناولي کېدل، چټلېدل، گنده کېدل.
خيرو (xayró) نر.م. گل خيرو، يو ډول گل دی.
خيرول (xirawā́l) مص. مت. ۱) سرخچول، غصه کول؛ ۲) ترتيبول؛ ۳) شرمول، خجالتول.
خيره (xíra) ښځ.م. ۱) چټلتيا، ناولتوب، ناپاکي؛ ۲) ص. نر.م. تت، خړپړ، د روڼ ضد.
خيريت (xayriyát) نر.م. سلامتيا، کراره کراري.
خيريه (xayriyá) ص. نب. خيررسانده، مرستندويه.
خيز (xez) نر.م. ۱) ټوپ، دانگ؛ ۲) غورځېدنه، ژر وده کونه؛ ۳) ور. د وروستاري په ډول راځي.
خيژول (xežawā́l) مص. مت. ۱) خېژول، پورته کول، لوړول؛ ۲) د ټيټ ځای څخه جگ ځای ته لېږدول، ارزښت جگول، بيه جگول.
خيږ (xiẓ) نر.م. خوږ، پترې، د زخم پېروی.
خيږن (xiẓán) نر.م. خېږلرونکی، پترې لرونکی.
خيږی (xiẓáy) نر.م. د داش توره ايره، د داش گرمه ايره، د پتې توره ايره.
خيسوس (xaysús) نر.م. خړه مرغی ده.
خيشاوه (xešā́wa) ښځ.م. للون، گور، پوچي، له فصل څخه د هرزه بوټو ايسته کول.
خيشت (xišt) ص. نر.م. (ج. خيشته) خوېشت، لوند، خيشت پيشت، خوشت.
خيشتوالی (xištwā́lay) نر.م. خوشتوالی، لوند والي، خيشت پېشت والي.
خيشتول (xištawā́l) مص. مت. خوشتول، لندول، لمدول، خوېشتول.

**ښیشته** (xǐšta) ص. ښځ. م. ۱) د ښیشت ښځینه شکل؛ ۲) ښځ.م. حلزون، کبسی، غواګی.

**ښیشتېدل** (xištedál) مص.ل. خوشتېدل، لندېدل لمدېدل، خړېشتېدل.

**ښېشوم** (xayšúm) نر.م. تېنکی، د پزې هغه سوری چې د داړو ستر ګو تر منځ وي.

**ښېښ** (xeş) ص. نر.م (ج. ښېښان) خوېښ، خپل، رشته دار.

**ښېښه** (xéşa) ښځ.م. ۱) هغه ښځه چې د زوم له کوره د واده په شپه باندي د واده له کالو سره ځي او واده په ورځ له ناوې سره یو ځای راځي؛ ۲) ص. ښځ. م. د ښېښ مؤنث شکل.

**ښېښي** (xeşí) ښځ.م. ښېلوي، ښېلولي، خوېښي.

**ښیګ** (xig) نر.م. شناز، هغه لوی مشک چې له هوا څخه ډکېږي او په لویو سیندونو کې خلک د سیند پلې خواته وریاندي پورې وځي.

**ښیګړی** (xigaráy) نر.م. کوچنی مشک.

**ښېل** (xel) نر.م. ۱) اولاده، توکم. ذات، تپه، پښه، هډوکی، تبر؛ ۲) قسم، ډول، رقم.

**ښېلخانه** (xelxána) ښځ.م. ټبر، کورنی، خاندان.

**ښېله** (xelá) ص.نب. ۱) ابله، ابله ګرد، پوچ، بې مانا؛ ۲) ټوکي، ټوکمار، مسخره چي.

**ښېله خند** (xelaxánd) ص.نر.م. ۱) ټوکي، ټوکمار، مسخره؛ ۲) پوچ، بې مانا، چټي.

**ښیم** (xim) ص. نر.م. ج. ۱) سور شوی، کنګل، شوی، یخ شوی، ښمم؛ ۲) ګڼ.

**ښېمه** (xemá) ښځ.م. وړوکی تامبو، کوچنی تمبو.

**ښېنتی** (xentáy) ښځ.م. ۱) وړوکی کېږ؛ ۲) په ونه باندي داسې پوړ ته کېدل چې سینه په تنه باندي نښتې وي؛ ۳) داوړې شر فصل چې ووښې لا نه وي ایستلي.

**ښینجاړي** (xinjāṛí) ص. نب. ۱) خراب، بې ښې، چټي؛ ۲) ضایع، خرموج، خرمېچ.

**ښینګ** (xing) ص. نر.م. خنګ، خجل، شرمنده.

**ښینګتیا** (xingtyā́) ښځ.م. شرم، خجالت.

**ښینګول** (xingawə́l) مص.مت. شرمول، خجلول، خنګول، شرمنده کول.

**ښیه** (xya) اد. ښه، هو، او کې، ښېه، بلي، سمه.

# د

د[1] (dāl) نر.م. د پښتو الفبې ۱٤ توری چې ابجدي ارزښت يې ٤ دی.

د[2] (dǝ) اد. داضافت توری دی. لکه دګلو ګېډی.

دا (dā) ض. ۱) نږدې اشاري ضمير دی؛ ۲) نر.م. (مو.) د ها، ده، د، په ختيزې علمي موسيقۍ کې د اووه ګونو سرو په لړ کې د شپږم سُر نوم.

داب (dāb) نر.م. د شرخ ميله، د شرخ تير، د ارټ تير.

داباشي (dābāšī) ص.نر.م. د لسو کسو کاريګرو مشر.

داپ (dāp) نر.م. د تسمې د اوبدلو د دولا (کېښت، پ.کت) و منځ ته وايي.

دابه دا (dābedā) اد. له دې امله، په دې سبب.

داټکی (dāṭkáy) پسغ.م. د يوه بوټي نوم دی چې په رنګولو کې کار ور څخه اخلي.

داتوره (dātūrá) پنغ.م. دانتوره، دالتوره، يو ډول نبات دی.

داج (dāj) نر.م. جهيز، جنز، د ناوې د واده کالي.

داچېر (dāčér) نر.م. دارنګه، دا راز، دا ډول.

داخلول (dāxilawə́l) ۱) د ننه کول، ننه ايستل؛ ۲) شاملول؛ ۳) شريکول، ګډول، په کې نيول.

داخله (dāxilá) ص. پنغ.م ۱) شموليت، د داخلېدو، د ننوتو؛ ۲) کورني، وطني، د هېواد د ننه.

داخلي (dāxilī) ص.نر.م. هېوادني، کورني، د ملک.

داخلېدل (dāxiledə́l) مص. ل. ۱) ننوتل، په کې کېدل؛ ۲) شاملېدل؛ ۳) ګډېدل، شريکېدل.

داد (dād) نر.م. ۱) کريږه، کريغه، ناره، فرياد؛ ۲) ورکړه، بښنه، بخشش؛ ۳) ص.نر.م. عدل نياو، انصاف، لور.

دادا (dādā) نر.م. پلار، د پلار لقب.

دادرده (dādurdá) ص. نب. دادردا، دېر سخي.

دادره (dādrá) پنغ.م. ۱) په ختيزې موسيقۍ کې يو ډول وزم دی؛ ۲) د يوه بېژندوي تال نوم دی.

دادري (dādrí) ښځ.م. ژبې لوېدل. تالــولوېدل د کوچنۍ د ستوني لوېدو ناروغي.
دادښت (dādáṣt) اا. داده کېدنه. قایلېده، اعتراف.
داد ک (dādák) نر.م. د پلار لقب، د ابا لقب، د دادا مصغر چې د مينې له امله پلار ته ويل کېږي.
دادکه (ladúka) ښځ.م. ۱) د مور لــقب، د خــور لقب؛ ۲) په ندايي حالت د دادا مصغر شکل.
دادمل (dādmál) ص. نياومن، نياووال، دادګر، عادل.
دادوکار (dādukár) نر.م. خمزوري، شپيانګه، يو ډول بوټی دی چې شيدې ورباندې پرڅه کوي.
داده (dādá) ص. نر.م. اقرار کوونکی، منونکی.
دار (dār) نر.م. ۱) غرغره، زيندۍ، پانسي، سولي؛ ۲) ځای، کور، چاپېريال؛ ۳) مج. تريخ، تنګ؛ ٤) مج. دوني ښاخ.
دارالانشاء (dārulinšá) ښځ.م. د ليکلو ځای. د انشا ء ځای، د ليک يا مکتوب د کښلو ځای.
دارالتاديب (dārultādíb) د ادب ښوولو ځای، د تعليم ځای، روزنځی.
دارالحکومه (dārulhukūmá) ښځ.م. د حاکم د اوسېدو ځای، د حکومت مرکز.
دارالخلافه (dārulxilāfá) ښځ.م. د خلافت ځای، د خليفه د کېناستو ځای، د خلافت مرکز.
دارالسلطنه (dārulsultaná) نر.م. پلازمېنه. پايتخت، د پاچا د استوګنې ځای.
دارالفنون (dārulfunūn) نر.م. ۱) د ډول ډول هنرونو د زده کړې ځای؛ ۲) پوهنتون.
دارالمجانين (dārulmajānín) نر.م. لېونتون، دلېونو ځای، د لېونيانو د ساتنې ځای.
دارالمساکين (dārulmasākín) نر.م. مسرستون، د بېوزلو د اوسېدو ځای.

دارايي (dārāyí) ښځ.م. شتمنه، شتمني، پانګه، مال او دولت.
درباز (dārbáz) نر.م. دالباز، دالبازي، د اکروباټ لوبغاړی، د آکروباټيکې لوبې لوبغاړی.
دارچيني (dārčiní) ښځ.م. و ګ. دالچينې.
دارکش (dārkáš) نر.م. پانسي کــوونکی، په دار خېژوونکی، زندۍ کوونکی.
دارکی (darkáy) نر.م. دارګی، نهال، نيالګی.
دارو (dārú) نر.م. و ګ. درمل.
دارو درمل (dārūdarmál) نر.م. درملنه، علاج کــول، دوادارو، تداوي.
داروغه (dārūğá) نر.م. ۱) ناظر، د غلې ناظــر د غلې څــارونکی؛ ۲) کــوتوال، د زندان آمــر؛ ۳) ولايتي پلټونکی، تفتيش؛ ٤) کښې، کروی ٥) حاکم، حکمران؛ ٦) د ګرمې مشر؛ ۷) د دارې لوی منشي.
داروکار (dārūkár) نر.م. يو ډول غرنی بوټی دی چې ډېر خطرناک زهر لري.
داروګر (dārūgár) نر.م. ۱) معالــج، درملګر، طبيب؛ ۲) باروت جوړوونکی.
دارومدار (dārumadár) نر.م. ۱) نرمي کــول، مهرباني کول؛ ۲) مجلس؛ ۳) تيت و پاس.
داره (dāra) ښځ.م. دلری، تيــرکه، پشکه، دزرد او فشار په واسطه د مايعاتو غورځېدنه.
داري (dārí) ور. د ښينو کليمو په پای کې راځي لو اسمي کليمې ځنې جوړوي لکه: وفاداري.
درياب (dāryāb) نر.م. و ګ. دريبه.
دارين (dāráyn) نر.ج. دنيا او آخرت.
دارک (dārák) ص. نر.م. و ګ. دارو.
دارل (dārál) مص. مت. چيچل، په غاښو نيول، په غاښونو ژوېلول.

**دارلی** (dāṛə́lay) صف. نر.م. چېچلی، خوړلی، په غاښونو ژوبل کړی، خوله وراچولی.

**داړنه** (dāṛə́na) ښځ.م. چیچنه، خوړنه، خوله اچونه، د مېږ او نورو ښېرونکو حیواناتو چک لګونه.

**داړنی** (dāṛanáy) نر.م. داړو، داړک، هغه ښرک چې غاښونه یې اوږده وي.

**داړو** (dāṛú) نر.م. ژ.ګ. داړنی.

**داړور** (dāṛawár) ص. نر.م. غاښور، داړو.

**داړونکی** (dāṛúnkay) فا. نر.م. ۱) چیچونکی ۲) ښېرونکی، خوله اچوونکی، داړوني.

**داړه** (dā́ṛa) ښځ.م. ۱) چاپه، چپاو، داکه، غدی؛ ۲) د غلو ډله، د غلا لپاره د غلو ډله ییز هجوم؛ ۳) مج. د بدو عمل؛ ٤) مختني اوږده غاښ، تېره غاښ، نېش.

**داړه مار** (dāṛamā́r) ص. نر.م. (ج. داړه ماران) داړه اچوونکی، داکو؛ ۲) مج. بدو.

**داستان** (dāstā́n) نر.م. مواسه، نکل، کيسه، قصه، افسانه، رومان.

**داستاني** (dāstānī́) ص. کيسه يي، کيسه ييز.

**داسي** (dā́se) ق. داډول، دارنګه، دغسې.

**داش** (dā́š) نر.م. ۱) داښ، بټی، پچن، پچه، داښت؛ ۲) او.ګ. وش.

**داشت** (dā́št) نر.م. دوام، پايښت، داښت.

**داښي** (dāṣí) ص. نر.م. داشي، د داښ، د داښت.

**داعيه** (dāʿiyá) ښځ.م. ۱) پلمه، علت، سبب، عامل؛ ۲) محرک؛ ۳) حقوقي غوښتنه.

**داغ** (dā́ğ) نر.م. ۱) لکه، خاپ، ټاپ؛ ۲) مج. تور، تومت، الزام.

**داغسر** (dāğsár) ص. نر.م. تور غاړی، چنچڼ.

**داغل** (dāğə́l) مص. مت. ۱) داغول، ايښول، سره کول؛ ۲) داغول، داغ لګول، خاپ لګول، ټپل.

**داغمه** (dāğmá) ص. نب. ۱) زوړ، مستعمل، زوړ شوی، مړلی؛ ۲) داغي؛ ۳) ښځ.م. د داغ نښه.

**داغنه** (dāğə́na) ښځ.م. داغ ور کول، داغ لګونه.

**داغوونکی** (dāğawúnkay) فا. نر.م. داغ ورکوونکی، شرک چې ښاروپو ته داغ ورکوي.

**داغي** (dāğí) ص. نر.م. ۱) داغ لرونکی، لکه لرونکی؛ ۲) تومتي، تهمتي، تورن، بدنامه.

**داغېدل** (dāğedə́l) مص. ل. ۱) لکه کېدل، داغ پیدا کېدل؛ ۲) د غېنو دردونو له امله د انسان او ښاروپو په غړو باندې د کوم سره کړي شي په واسطه داغ ايښودل.

**دافع** (dāfíʿ) ص. نب. دفع کوونکی، مخه نیوونکی، منع کوونکی، ګرځوونکی.

**دال** (dāl) نر.م. ۱) د «د» توري تلفظ؛ ۲) پاتي، پښي؛ ۳) دلالت کوونکی؛ ٤) دلیل، سبب.

**دالان** (dālā́n) نر.م. دېړدی، تونکری، برمک.

**دالتونيزم** (dāltūnízam) نر.م. يو ډول ناروغي ده چې سترګې سور رنګ نه شي پېژندلای.

**دالچيني** (dālčīní) ښځ.م. ج. دارچيني، خوږ لرګی، د يوې ونې د ښاخونو خوشبويه خوږ دی.

**دام** (dām) نر.م. ۱) جام، لومه، ښېښکی؛ ۲) مج. مکر، چل، ټګي؛ ۳) د تنستې د منغ تاړونه؛ ٤) اعلی ژوی ٥) پيسه، د پيسې ٢٤ مه برخه.

**دامان** (dāmā́n) نر.م. غولی، دالان، دښت، سارا، بيابان.

**دامتوره** (dāmtūrá) ښځ.م. و.ګ. داتوره.

**داميار** (dāmyā́r) ص. نر.م. ۱) ارت، پراخ، آزاد؛ ۲) اوږد؛ ۳) ډېر وخت، ډېره موده.

**دانا** (dānā́) ص. نر. ښځ.م. عاقل، پوه، هوښيار.

**دانګ** (dāng) نر.م. ۱) توپ، ټوپ، خيز، ګوپ، کوپ؛ ۲) شپږمه برخه؛ ۳) ګرندي، چټکه.

**دانګل** (dāngál) مص.ل. ټوپ وهل، خېز اچول، ګوپ کول، دنګل.

**دانګوری** (dānguŕay) نر.م. بادرنګ، ترېوزی.

**دانګول** (dāngawál) مص. مت. ۱) پورته پورته غورځول؛ ۲) اچول، دنګول، غورځول.

**دانګی** (dāngáy) نر.م. ۱) ښت، کړایی؛ ۲) یو ډول نبات دی چې په رنګ ورکولو کې ترې کار اخلي؛ ۳) یرغل، برید؛ ٤) غخاسته، ملا.

**دانګې دانګې** (dángedánge) ص. نر.م. ربکي ربکي، ترانګي ترانګي.

**دانګېدل** (dāngedál) مص.ل ۱) دنګل، دانګل، ټوپ وهل، خېز اچول؛ ۲) ځای پر ځای خېز کې یا ټوپونه وهل.

**دانه** (dāná) ښځ.م. ۱) ننګی، نینګ؛ ۲) دهنه، ورخ؛ ۳) دجنس لپاره له عدد سره استعمالیږي.

**دانه خوره** (dānaxóra) ښځ.م ۱) رووده، روودې، اموخته؛ ۲) مج. هغه نجلۍ چې د کوم هلک سره پټه مینه ولري.

**دانه دار** (dānadár) ص. نر.م. ج. ځیږ، لوړ، داني داني، غوټې غوټې.

**دانه دانه** (dānádāná) ص. نر.م. ۱) تیت، تیت ویرک، خواره واره؛ ۲) فره فره، ریچې ریچې، داني واني.

**دانیوب** (dānyúb) نر.م. وګ. دنیوب.

**دانو** (dānū́) نر.م. پورني، ټیکری، ټکری، پروني.

**دانه** (dānā́) ښځ.م. دل، ورغستلي، ګوري، ګور.

**دانې** (dānéy) ښځ.م. پنې، یو ډول ښځینه پسول.

**داو** (dā́w) نر.م. ۱) ځار، قربان، صدقه؛ ۲) بولي، دو، بیه بجګول.

**داوتي ګل** (dāwutígwál) نر.م. شستي ګل، یو ډول ګل دی چې ډول ډول رنګونه لري.

**داوطلب** (dāwtaláb) ص. نر.م. ۱) رضاکار، په خپله خوښه چمتو، کاندید؛ ۲) زیاتوونکی.

**داوطلبي** (dāwtalabí) ښځ.م. ۱) رضاکاري، کاندیدېدنه، په خپله خوښه؛ ۲) بیه جګوند.

**داون** (dāwán) نر.م. پورنی، زروکی، ټکری.

**داونی** (dāwnáy) نر.م. تهرک، د ژرندې تیر.

**داوه دنګله** (dāwadangála) ښځ.م. دعوه دنګله، مناقشه، جګړه، شخړه، لانجه.

**داه** (dāh) ص. نب. وینځه، مینځه، دایه.

**داهیانه** (dāhyāná) ق. په پرده سره، په غیرګي سره، په هوښیاري.

**دای** (dāy) ښځ.م. ۱) د دهوال پخسه، د دهوال موره؛ ۲) هد. وګ. دای.

**دایر** (dāyə́r) ص. نر.م. ج. جاري، پېل، پرانستي.

**دایرة المعارف** (dāyratulmaārif) نر.م. انسایکلوپیډیا؛ هغه کتاب چې ټول انساني معارف پکې راټول او تشریح شوي وي.

**دایروي** (dāyrawí) ص.نب. ګردی، ګرد، ګردی، حلقوي، د دایرې په شېر.

**دایره** (dā́yrá) ښځ.م. ۱) هن. دائره، هغه ګردې کرښې چې له مرکز څخه مساوي فاصله ولري؛ ۲) حق. د څو شعبو اجتماع، دفتر، اداره؛ ۳) مو. وګ. دریه.

**دایک** (dāyák) نر.م. روزنکی، د اوسپنې پتری دی چې پر کالو او خولۍ ټکوهل کېږي.

**دایم** (dāyə́m) ص. نر.م. ج. تل، همېشه، هروخت، هر کله، همېشني، تل تر تله، مدام.

**دایي** (dāyí) ښځ.م ۱) رضاعي مور، د شېدو مور؛ ۲) دایه، قابله.

**دایېرول** (dāyirawál) مص. مت. دایرول، شروع کول، پېلول، جاري کول، پرانیستل، جوړول.

**دب** (dab) نر.م. دب، تکبر، غرور، سامانه، لوبي.

**دباب** (dabā́b) نر.م. ۱) برم، پرتم؛ ۲) دبکه، پتکه، دبابې، برگهل، سترگي،باندې کېدل.

**دبابو** (dabābū́) ص. نر.م. دباب کوونکی، گوابې کوونکی.

**دباغ** (dabā́g) ص. نر.م. څرمن پخوونکی، څرمن رنگوونکی.

**دباغت** (dabāǧát) نر.م. څرمن‌رنگـونه، څرمن پخونه، دباغي.

**دباندې** (dabā́nde) ق. بهر، بېرون، ورچنې.

**دباندېنی** (dabāndenáy) ص. نر.م. بهرنی، خارجي، په بهر پورې تړلی.

**دباو** (dabā́w) نر.م. ۱) وگ. دباب؛ ۲) مج. زور، طاقت، اختيار.

**دبدبه** (dabdabá) ښځ.م. پرتم، شان اوشوکت، برم.

**دبدوب** (dabdū́b) نر.م. ګوروونه، تهديد، تربيخ.

**دبړ** (dabáṛ) ص. نر.م. شورب، چاغ، مزی، قوي.

**دبز** (dabáz) ص.نر.م. دبز، شلند، چاغ، مزی.

**دبزنګ** (dabozáng) نر.م. خنډ، زخه، منلو.

**دبکه** (dabká) ښځ.م. گوابې، دب، پتکه، دپکه.

**دبل** (dabə́l) مص. مت. ډبول، دربل، پلنول.

**دبله** (dablá) ښځ.م ۱) دوربی، ډبله، دبلې، دوکړی ۲) د پېټاتو د کالو او سامان ايږدلو سوندخ.

**دبلی** (dabláy) نر.م. ۱) قطي، دبلی؛ ۲) د لوخې شونډې، د لوخې وری یا گل.

**دبنه** (dabə́na) ښځ.م. ډبونه، تخته کونګ، پلنونه.

**دبه** (dabá) ښځ.م. له کدو يا لومې څـرمـني د پتک په‌څېر يو لوښی چې تېل په‌کې ساتي.

**دبی** (dabáy) نر.م. ۱) شوپلاري، سوتي، د کـالـو پرمنظلو اوږد لرګی؛ ۲) بې فايدې، [illegible] ثمره، بې‌اس، بې گټې.

**دبی** (dabáy) ص. ښځ.م. خامه‌مېوه، هغه مېوه چې په پاڼو يا بوسو کې پخه کړی شي.

**دبېدر** (dubedár) نر.م. يو ښکاري مرغه دی.

**دبی لله** (dabaylalá) ښځ.م. دري کـونجه څمکه، مثلث دوله‌څمکه.

**دپ** (dap) ص.نر.م. بند، ايسار، ولاړ، بې جريانه، هغه بندېز چې له غوږونو يا هوا سره اړه لري.

**دپاره** (dapā́ra) اد. لپاره.

**دپاسه** (dapā́sa) ق. ۱) پرې د پاسه، باندې، علاوه پر هغه، سربېره؛ ۲) له پاسه، له پره.

**دپتيا** (daptyā́) ښځ.م. پندوالی، تريتهنه.

**دپکه** (dapká) ښځ.م. گوابې، دباو، لافه شافه.

**دپه هوا** (dápahawā) ښځ.م. بنده هوا، باد نه چلېدنه، دوپ.

**دتکارل** (datkarə́l) مص.مت. لمسول، پاڅول، لوستول، پارول، آستول، تيريکول.

**د تيږي ګل** (datīzegwā́l) نر.م. د تيږې پټری، د تيږې چارګلي.

**د تي وړور** (datíwror) نر.م. داپي وړور، رضـاعي وړور.

**د تاپي شپه** (datāpišpá) ښځ.م. د ناروغ سخته شپه، د ناروغ د ناروغۍ خطرناکه شپه.

**د تاټ خاوند** (datatxāwánd) (اضافي مرکب) لوی نظری، د شان، پرتم یا دبدبې خاوند.

**دچار** (dučā́r) ص.نر.م. اخته، مبتلا، ککړ.

**دچه** (dačá) ښځ.م. ۱) د پالېز او ترکاري لښتی؛ ۲) ص.ښځ.م. دچه، شان و شوکت، دبدبه.

**د چيغي مير** (dačīgemír) نر.م. دچيغې پر وخت د ولسي لښکرو لاربيوونکی.

**دځوزو ګوری** (dajozogoray) نر.ج. ترنجبين، فلوس، چمبر خيال، يو اغزن بوټی دی.

**دڅلمي** (dacélmi) ق. ۱) د شرمي، تپوله سره، له يوه سره؛ ۲) ص. د قومه، د کورنۍ.

**دخالت** (daxālát) نر.م. لاسوهنه، مداخله، ګډېدنه، د چا په کار کې لاس وهنه.

**دخانيات** (duxānyāt) نر.ج. توتون، يو ډول نېکوټين لرونکی بوټی دی.

**دخل** (dáxal) نر.م. ۱) ګټه، عايد؛ ۲) اړيکي، ارتباط؛ ۳) سيف؛ د پيسو د ساتلو سوندخ.

**دخمه** (daxmá) ښځ.م. ۱) کونج، د پټېدو ځای؛ ۲) قبر، مريستون، اديره.

**دخول** (duxū́l) نر.م. ننوتل، داخلېدل.

**دخيل** (daxī́l) ص. نر.م. ۱) لاس لرونکی، داخل، داخل شوی، شامل، ورګډ؛ ۲) برخه لرونکی، ونډه لرونکی، برخه اخيستونکی؛ ۳) عر. هغه متحرک توری چې د تاسيس د الف او روي تر منځ وي لکه و ه د باور په کليمه کې.

**دد** (dad) نر.م. ځناور، حيوان، شيرورونکی ځناور.

**ددوری** (dadū́ray) نر.م. زوړ او خوار سپی.

**ددوی** (dadū́y) ض. اضافي منفصل ضمير دی چې د نژدې مذکر او مونث دواړو لپاره راځي.

**دده** (dadá) ض. اضافي منفصل ضمير دی چې د نژدې مذکر لپاره استعماليږي.

**ددې** (dadé) ض. اضافي منفصل ضمير دی چې د نژدې مؤنث او مذکر لپاره استعماليږي.

**در(۱)** (dar) ض. ۱) د مخاطب سمتي ضمير دی لکه دربه شم؛ ۲) نر.م. ور. دروازه، دره، تمبه.

**در(۲)** (dur) نر.م. مرغله، مرغلره، مرواريد.

**درازه** (dráza) ښځ.م. ۱) لړېنده، درزنده، تنکی ځای د نوي پيدا شوي ماشوم په سر کې د څښکي او تندي په منځ کې هغه ځای چې هډوکی يې ډېر نرم وي؛ ۲) زلزله، ربږدله.

**دراستول** (darastawə́l) مص.مت.و.ګ. استول.

**دراک** (darā́k) ص.نر.م. درک کوونکی، ځيرک، هوښيار، تېزفهمه، تېز هوښه.

**دراندی** (darāndáy) نر.م. د پسرلنو بوټو ډول ناروغي ده.

**دراوڼ** (drāwáṇ) نر.م. پړونی، زړوکی، ټيکری.

**دراوی** (drāwáy) نر.م. نښه، نښانه، ځای.

**درايي** (darāyí) ښځ.م. قناويز، وريښمين توکر.

**درب** (drab) نر.م ۱) يو ډول ناروغي ده؛ ۳) دربله، يو ډول واښه دي؛ ٤) شان و شوکت، نوم، آوازه؛ ٥) يو ډول بوټی دی.

**دربار** (darbā́r) نر.م. شاهي ماڼۍ، سلطنتي قصر.

**درباري** (darbārí) ښځ.م. ۱) د دربار، دربار ته منسوب؛ ۲) مو. د ختيزې کلاسيکي موسيقۍ يو راګ دی چې پخوا يې ګانړه بلله.

**دربجن** (drabján) نر.م. دوپيا، باسي، خوسا.

**دربچه** (darbačá) ښځ.م. دريڅه، وړه کړکۍ.

**درب درباني** (drabdrabā́nay) نر.م. الاداد، د کوچنيانو يو ډول لوبه ده.

**درب دروب** (drabdrū́b) نر.م. دړ و دوړ، ځرنګ و ځروپ، ګرپ ګروپ.

**درېړ** (drabáṛ) نر.م. ۱) چاغ، مړی، غوټ، شوربه؛ ۲) هغه خوړک چې چست او تېز تللی نه شي.

**دربل(۱)** (drabə́l) مص. مت ۱) تخته کول، ګېښنګل؛ ۲) په پښو يو شی تخته کول.

**دربل(۲)** (durbál) نر.م. ښکېل، د شاروي مخنۍ او وروستنۍ پښه په پړي سره تړنه.

**دربلول** (durbalwə́l) مص.مت. ښکېلول، د شاروي پښې سره تړل.

**دربله(۱)** (drablá) ښځ.م. ۱) پلنه غټه تيږه؛ ۲) د شاروي د پښو لاندې کلکه او چمبې شوې سره؛

۲) سخت شی، کلکې شوې خبرې؛ ۳) بدبوی؛ ٤) مج. خته او بې ورله دروی.

**دربله**[1] (d(u,e)rbalá) ښځ.م. توره تیاره، تورتم.

**دربلی**[1] (durbalay) نر.م. زولانه ببیری، عرلانه د پښو کړی.

**دربلی**[2] (drabélay) ص. نر.م. تخته شوی، کمنډل شوی، سخت او کلک شوی.

**دربلی** (darbaléy) ښځ.م. ۱) دري پښیزه چوکی؛ ۲) د پیو او شلومو دغرکې د غوزندیدو دري پښیزه پایه؛ ۳) دري پښیزه تال؛ ٤) خوشالي، خوښي، د خوشالي تریکې.

**دربلیدل**[1] (darbaledál) مص.ل. ۱) ټکېلیدل، چړیدل، بندیدل؛ ۲) په بده اخته کېدل، غرقېدل.

**دربلیدل**[2] (durbaledál) مص.ل. تړل کېدل، غاړوي په دوو پښو تړل کېدل.

**دربند** (darbánd) ښځ.م. ۱) د غرو په منځ کې تنګه لاره؛ ۲) بند؛ ۳) تاخچه، طاقچه.

**دربنه** (drabéna) ښځ.م. تخته کول، کېمنډنه.

**دربنی** (drabanáy) ښځ.م. خامه څمکه، کاواکه ځمکه، هغه ځمکه چې پرې د ګرځېدو پر مهال دربیږي.

**دربودروب** (drabodrúb) نر.م. ۱) زوروونه، بېرول؛ ۲) د وهلو او ټکولو آواز.

**دربول** (drabawál) مص.مت. ۱) پښې وهل؛ ۲) وهل، ډبول؛ ۳) ځنل؛ ٤) دول وهل.

**دربولل** (darbolál) مص.مت. دربلل، درغوبتل، غانته دربلل، دعرتول.

**دربولی** (drabawúlay) مف.نر.م. وهلی، وهل شوی، ډبولی.

**دربونکی** (drabúnkay) فا.نر.م. تخته کوونکی منډونکی، ټکوونکی، کېمنډونکی.

**دربوونکی** (drabawúnkay) فا.نر.م. ۱) دول وهونکی؛ ۲) وهونکی؛ ۳) تخته کوونکی.

**دربه** (drába) ښځ.م. ۱) تندر، تکه؛ ۲) توره تیاره، توره تروږمی؛ ۳) شور، غوبه؛ ٤) د اتڼ یو دول.

**دربهار** (drabahâr) نر.ج. دربی، دربا، مسلسل آواز، پرله پسې غږ.

**دربي** (drabé) ښځ.ج. غوري، لاپې، باتې، غورتې.

**دربي** (drábedrúbe) ښځ.ج. و.ګ.: دربي.

**دربیدل** (drabedál) مص.ل. ۱) ډبیدل، دبیدل، درزیدل؛ ۲) مج. په قهر کېدل؛ ۳) زوره‌ربیدل.

**دربیله** (darbelá) ښځ.م. توره تیاره، تورتم.

**درپری** (draprây) نر.م. ګرمکی، ورې دانې چې د انسان په بدن را خېږي.

**درپیه** (darpayá) ښځ.م. زینه، اندرپایه، پته.

**درت** (dorút) نر.م. په ختیزې کلاسیکې موسیقۍ کې د تال یو معین سرعت دی چې د بلمت او مد وروسته وي.

**درته** (dérta) ق. ورله، د مخاطب لپاره د قید په دول استعمالیږي او «ستا لپاره» یا «تاته» مانا ورکوي.

**درج**[1] (durj) نر.م. ډبلی، قوطی، هغه سوندخچه چې جواهر او ګانه په کې ایښودل کیږي.

**درج**[2] (darj) نر.م. لیکل، داخلول، ځایول، ثبتول.

**درجن** (darján) نر.م. و.ګ. درځن.

**درجول** (darjawál) مص.مت. ثبتول، داخلول، ځایول، نهول، نغښتل، پېچل.

**درجه** (darajá) ښځ.م. ۱) پوړ، مرتبه، رتبه، مقام؛ ۲) اندازه؛ د اندازې د ښکاره کولو هر هغه شه چې اعداد یا کرښې ولري.

**درجه بندي** (darajabandí) ښځ.م. د درجې ټاکنه، د اندازې ټاکنه، د رتبې ټاکنه.

**درجېدل** (darjedə́l) مص.ل. ثبتېدل، داخلېدل، ځايېدل، نيول کېدل.

**درچل**(۱) (dračə́l) مص.ل. تېل، پرنجېدل، ترنجېدل.

**درچل**(۲) (darčál) ص.نر.م. پرله پسې، جاري، روان، چالان.

**درچلی** (dračálay) نر.م. پرنجېدلی، ترنجېدلی.

**درچنه** (dračána) ښځ.م. پرنجې، تووی، انګی، ترچنه، پرچی، انتوسی.

**درچول** (dračawə́l) مص.مت. ترنجول، پرنزول.

**درځن** (darǰán) ښځ.م. درځنه، درجن، کوری، پنجه، له يوه جنس شخه معمولاً دولس او کله شپږ داني.

**درڅه** (durcá) ښځ.م. دروڅه، موری، کولک، د کوټې په چت کې د رڼا دراتلو لو لوګي وتلو لار.

**درد**(۱) (dard) نر.م. ۱) درد، خوږ، رنځ، ناروغي؛ ۲) قهر، غوسه؛ ۳) شور، کړاو، مصيبت.

**درد**(۲) (durd) نر.م. خټېل، کونوبی، د مايعاتو رسوب.

**دردک** (durdák) ص.نر.م. وراني، تخه، مستر، تخې تخې، وراني شوي مستې او شيدې.

**دردمن**(۱) (dardmán) ص.نر.م. خوږ شوی، خوږمن، دردېدلی، درد وررسېدلی، دردناک.

**دردمن**(۲) (dardamán) ص.نر.م.ج. وشکتي، عصبي، له قهره ډک، خوشک.

**دردول** (dardawə́l) مص.مت. ۱) خوږول، په درد اخته کول؛ ۲) ځورول؛ ۳) په غوسه کول.

**دردېدل** (dardedə́l) مص.ل. ۱) په درد اخته کېدل؛ ۲) ځورېدل؛ ۳) په غوسه کېدل.

**درړ** (draṛ) نر.م. يو دول ګانه ده.

**درز**(۱) (darz) نر.م. ۱) چاود، چاک، سپړی، وت، سوری؛ ۲) مج. اختلاف، ګنډل.

**درز**(۲) (draz) نر.م. ۱) د ټوپک، ډز، د دراتلونکي د غورځېدو اواز؛ ۲) ږول، شهرت، برم، پرتم.

**درزغن** (drazğán) ښځ.م. وګ. درغن.

**درزنده** (drázanda) ښځ.م. ۱) لېونده، لوېونده، درازه؛ د کوچني د سر نرمه برخه؛ ۲) پنګه، پنګی، د غره په سر هوار ځای.

**درزني** (drazanáy) نر.م. پلن او هوار ميدان.

**درزول** (drazawə́l) مص.مت. ډزول، وهل او ټکول، ډبول، ګرزول.

**درزهار** (drazahár) نر.م. درزې، درزا، درزو دروز؛ د ټوپک يا توپ ټکې، تالندې پرله پسې اولزنه او غږونه.

**درزي** (darzí) نر.م. خياط، کالي ګنډونکی.

**درزېدل** (drazedə́l) مص.ل. ۱) درزېدل، وهل کېدل؛ ۲) ګرزېدل، د فشار له امله خوځېدل

**درس** (dars) نر.م ۱) سبق، لوست؛ ۲) مج. عبرت، پند، پانيات.

**درست**(۱) (drast) ص.نر.م.ج. ټول، پوره، ولړ.

**درست**(۲) (drust) ص.نر.م. سم برابر، صحيح.

**درستوالی**(۱) (drastwálay) نر.م. پوره والی.

**درستوالی**(۲) (drustwálay) نر.م. سموالی، برابر والی، صحيح والی، جوړوالی.

**درستول**(۱) (drastawə́l) مص.مت. پوره کول، تامول، سرته رسول، بشپړول.

**درستول**(۲) (drustawə́l) مص.مت. جوړول، روغول، سمول، سېخول.

**درستون** (darastún) نر.م. د مخاطب و خوا ته راګرځېدونکی.

**درسته** (darastá) ښځ.م. ۱) ترکش؛ ۲) وسله.

**درسته والا** (darastwālā́) ص.نسب. وسله وال، وسله والا، د وسلې خاوند.

**درستی** (drastáy) نر.م. رښتینی شاهد، حقیقی شاهد، صادق شاهد.

**درستي** (drastí) ښځ.م. ۱) سموالی، جوړوالی، روغوالی؛ ۲) صداقت، رښتینوالی.

**درستېدل** (drastedə́l) مص.لا. تمامېدل، پای ته رسېدل، پوره کېدل.

**درستیزوال** (drastizwā́l) نر.م. د لرکان رئیس، د نظامي لوړې رتبې خاوند چې د عسکري په تولو شقونو (ارکان) کې معلومات ولري.

**درسي** (darsí) ص. چې تدریس کېږي، د درس، په درس پورې اړوند

**درشته** (daruśtá) ښځ.م. ۱) کوتره؛ ۲) و.ګ. دروشته.

**درشل** (darśál) نر.م. ۱) درشابي، د دروازې چوکاټ؛ ۲) کوټې یا ودانۍ ته د ننوتلو لاره؛ ۳) یو دول سابه دي چې شکل یې ګندنې ته ورته دی، ژېر ګل لري.

**درشول** (darśól) نر.م. یو دول نبات دی.

**درشونډی** (darśunḍáy) نر.م. سونډک، شونډک، دروږ.

**درښتن** (draṣtə́n) نر.م. ښېګڼه، نېکي، مرسته.

**درغل** (darǧál) ص. نر.م. ۱) کرته، ناچله، کلپ، کلپه؛ ۲) منافق، دروغجن؛ ۳) پرېشان، خوار ۴) کلابند، محاصره، بند.

**درغلاند** (darǧalā́nd) نر.م. فرېبکار، دروغجن.

**درغلنه** (darǧaléna) ښځ.م. خیانت، درغلي، منافقت، چل، چلبازي، ټګي.

**درغلول** (darǧalawə́l) مص. مت. ۱) نیول، کلابند کول؛ ۲) ناکراره کول، نارامه کول.

**درغلي** (darǧalí) ښځ.م. و.ګ. درغلنه.

**درغلی**(۱) (darǧaláy) ص.نر.م. منافق، چلباز.

**درغلی**(۲) (darǧláy) قا. نر.م. د مخاطب په لور ورغلی – زلمی همدا اوس درغلی (درغی).

**درغلی**(۳) (dáraǧalay) قا. نر.م. په ماضي کې د مخاطب په لور ورغلی.

**درغلېدل** (darǧaledə́l) مص. ل ۱) نیول کېدل، ګېرېدل، محاصره کېدل؛ ۲) ناکرارېدل.

**درغن** (draǧə́n) ص. نر.م. ۱) درزغن، درغزن؛ ۲) نر.م. درغې، شباخه، دکانې پلنه تخته چې مساله پرې میده کوي؛ ۳) پلنونه، تخته کونګ ۴) پتاري، د مړي پر مخ غلو تخته.

**درغنی** (draǧanáy) نر.م. ۱) ګته ګونه، ببروبار، ازدحام؛ ۲) پایکوب، پایکو.

**درغوړه** (darǧwaṛá) ښځ.م. دربېزې بوټي، هغه بوټي چې ربېځ یا جارو ورڅخه جوړوي.

**درغوږ** (darǧwáẓ) نر.م ۱) و.ګ. دروږ؛ ۲) انذري بسه.

**درغول**(۱) (darǧól) نر.م. ۱) پرچاو، اګل، د لوړو د خرشي کولو ځای؛ ۲) تنګی، تنګه دره.

**درغول**(۲) (darǧwə́l) مص. مت. بهول، نغوتول.

**درغول برغول** (darǧólbarǧól) ص. نر.م. ګډوډ، وران ویجاړ، خراب تراب.

**درغولول** (darǧolawə́l) مص.مت. درغولونه، په درغول (پارچاو) کې د ویالې اوبه خرشې کول.

**درغولېدل** (darǧoledə́l) مص. ل. په درغول کې اوبه ایله کېدل.

**درغونه** (darǧawə́na) ښځ.م. بهیونه، نغوتنه.

**درغی** (daráǧay) نر.م. د مخاطب په لور لاړ تسعا خزانه یې د تلني عمل اجرا کړ.

**درغېدل** (darǧedə́l) مص. ل. بهېدل، نغوتېدل.

**درک**(۱) (drak) نر.م. ۱) د دروازې رپ؛ ۲) د خوټې غولی.

درک(۲) (darák) نر.م ۱) پټه، نیمه، نهانه، څرک، پلمه؛ ۲) د اوبو د داني سوري، د اوبو خوله؛ ۳) وخت، موقع.

درک(۳) (dark) نر.م. فهم، پوهه، قابلیت، ادراک کول، پوهېدنه، حسونه، تمیز.

درکار (darkār) نر.م. یو بوټی دی چې ژېړ گل او سپین بېخ لري.

درکړ (darakár) نر.م. د گاډي د لرابې گردي کړۍ (حلقه).

درکړۍ (darkaṛáy) ښځ.م. غوجل، آغل؛ د څواړانو د درولو او ساتلو ځای او کوټه.

درکول (darkawə́l) مص. مت. ورکول (مخاطب ته)، تاته درکړې د عمل اجرا کونکی.

درکوونکی (darkawūnkay) فا. نر.م. ورکوونکی (مخاطب ته)، تاته د درکولو د عمل اجرا کونکی.

درکی (darkáy) نر.م. لومه، مرغیو او مرغانو د نیولو لومه.

درگ (drag) نر.م. ۱) درب، د زړه حرکت، د زړه درزا؛ ۲) د پښو اواز؛ ۳) ځنگل؛ ٤) ص. نر.م. د ژور ضد؛ ٥) نر.م. پهوار ځای کې لیږه جگه برخه؛ محدب، لوړ ځای؛ ٦) ترینگلی.

درگا(۱) (dragā́) ښځ.ج. درگهار، دربهار، دربی.

درگا(۲) (dargā́) ښځ.م. درشل، دربار، استانه.

درگا(۳) (durgā́) ص. نبه. مو. د بلاول ټاټ یو پنځه سُری (اردو) راگ دی.

درگد (dargád) نر.م. دغنو لره جوړ ونه، غني ایښودنه، افزی ایښودنه، ازغي جگونه.

درگرده (dargárda) ق. پرله پسې، مسلسل، متواتر.

درگړ(۱) (dargáṛ) ص. نر.م. ۱) برجسته، جوت؛ ۲) پرله پسې، یو په بل پسې.

درگړ(۲) (dragáṛ) نر.م. گودره، لاړې، کمکی تیر، وېښه، پښتول.

درگړې درگړې (dargáṛedargáṛe) ص. نر. ۱) توتې توتې، ذرې ذرې؛ ۲) د پر غمجن، پر ستونزمن؛ ۳) تس و نس، گډوډ، وران ویجاړ.

درگوټې (dargū́ṭe) ښځ.م. د لوخو کمکی ځنگل، د کرکو کوچنی ځنگل.

درگه(۱) (dárga) ښځ.م. ۱) غورگه، کرکی، نیچه؛ ۲) د ښېر ځنگل، دورمودل.

درگه(۲) (drága) ښځ.م ۱) د بېری د راښکلو یری؛ ۲) منډه، څغاسته، رگه.

درگهار (dragahā́r) نر.م. دربهار، درگی، درگا.

درگی (dragáy) نر.م. درگهار، د زړه دربی.

درگیې (dargayé) ښځ.م. ۱) د لوبو د ایښودلو الماری؛ ۲) د لوبو ایښودلو کوټه.

درل (dral) مص. ل. و گ. درېدل.

درلل (darlə́l) مص. ل. لرل، درلودل.

درلودل (darlodə́l) مص. مت. و گ. لرل.

درلوول (darlowə́l) مص. مت. و گ. لرل.

درلوونی (darlowū́nay) فا. نر.م. درلودونی، لرونی، درلودونکی، لرونکی.

درله (darlá) ښځ.م. ۱) درلودل، درلوول، لرل؛ ۲) ق. و گ. درته.

درم(۱) (dram) نر.م ۱) د توپ د ډز اواز؛ ۲) د دېوال تکیه، پشتي.

درم(۲) (daram) نر.م. ۱) دهرم، مذهب؛ ۲) مج. دین او ایمان.

درمان (darmā́n) نر.م. درملنه، دارو درمل، دوایي، علاج.

درمانده (darmā́nda) ص. نبه. ۱) بیچاره، اوبېنوا؛ ۲) ستړی ستومان، لوېدلی.

**درمب** (dramb) نر.م. د ډول یا درېي اواز.

**درمبول** (drambawə́l) مص.مت. ۱) ډول وهل درېه وهل؛ ۲) وهل، ټکول، په پښـــو باندې یو شی تخته کول.

**درمبهار** (drambahā́r) نر.م. درمبا، درمبی، د ډول یا درېي پرله پسې اواز.

**درمبېدل** (drambedə́l) مص.ل. ۱) ډول ډېېدل؛ ۲) په پښو کېښدل؛ ۳) دیوه شي د پاسه ټوپونه او ډانګونه وهل.

**درمسال** (daramsā́l) نر.م. دسیکانو عبادتځای.

**درمغول** (daramaǧól) ص. نر.م. ګډوډ، درهم و برهم، درغول برغول.

**درمکښ** (dramkáṣ̌) نر.م. د کښي ګنډلـو ستن.

**درمل**(۱) (durmál) نـر.م. ۱) نیمـه پخـه مېـږه؛ ۲) ځوانکی، زلمـی، ژنکی.

**درمل**(۲) (darmál) نر.م. ۱) دارو، دوا؛ ۲) علاج.

**درملتوب** (darmaltób) نر.م. ډاکتري، طبابت، دارو درمل کول.

**درملتون** (darmaltún) نر.م. دواخانه، د درملـو ځای، درمل ځای، ددوا خرڅولو ځای.

**درملګر** (darmalgár) ص. نـر.م. دواکـوونکی، طبیب، ډاکتر، معالج، تداوي کوونکی، درملی.

**درملور** (darmalwár) نر.م. د علاج ور.

**درمند** (darmánd) نر.م. د فصـل دلی، راټول شوی فصل او غله.

**درمندځای** (darmandjáy) نر.م. د فصل د مېده کولو او پاکولو ځای.

**درمنده** (darmánda) ښـځ.م. درینـده، د شنیـو ځرځنی، د سنیو ټوپکی، د سنیو غوټه.

**درمندی** (darmandáy) نر.م. د درمنـد تلی، هغه لږه غله چې د درمند له ټولولو وروسته په ځمکه باندې پاتې کېږي.

**درموډل** (durmuḍál) نر.م. تېزلر.

**درمولی** (darmuláy) نـر.م. درنګلی، ځوبلرګی، هغـه ډاګـه چې د درمنـد په منځ کې یې ښخـه ښخوي او د غوبل لپاره غوایان ورپسره تړي.

**درمه** (durmá) ښځ.م. ۱) وګ. درومه؛ ۲) ځواني، ونه او ځېره.

**درناوی** (dranāwáy) نـر.م. ۱) درونـدوالی، سنګینی؛ ۲) احترام، درنښت، لمانځنه.

**درنجی** (dranjáy) نر.م. کوچنیان د بار ... ویولو په وخت کې داکلیمه وایي.

**درند** (drand) نر.م. ۱) د درمند ش. پ؛ ۲) د ګیلاس د ونې په څېر یوه غرنۍ ونه ده.

**درند سترګی** (drandstə́rgay) نـر.م. درونـد سترګی، غرندی، بد سترګی.

**درندول** (drandawə́l) مص. مت. وګ. درنول.

**درنده**(۱) (darindá) ص. نر.م. وحشي، شیرونکی.

**درنده**(۲) (duránda) ښځ.م. ورېدونکې وریځ.

**درندی** (drandáy) نر.م. د مېږو د ینې او کـولمو ناروغي.

**درندېدل** (drandedə́l) مص. ل. وګ. درنېدل.

**درنښت** (dranə́ṣ̌t) نر.م. درناوی، درونـدوالی.

**درنګ**(۱) (drang) نـر.م. ۱) وقفـه، ډیـل، ځنـډ؛ ۲) کان، معدن؛ ۳) وچه کلکه او اواره ځمکه.

**درنګ**(۲) (drang) نر.م. شرنګ، تـرنګ؛ د رباب غږ او اواز.

**درنګلی** (drangaláy) نر.م. وګ. درمولی.

**درنګچاری** (drangčā́ray) نر.م. معدنچي.

**درنګول** (drangawə́l) مـص. مـت. ترنګـــول، شرنګول، د موسیقی له آلې نه اواز ایستل.

**درنګه** (drangá) ښځ.م. سخړه، د مردارو حیوان تنه.

**درنګهار** (drangahā́r) نر-م. ترنګهار، شرنګهار.

**درنګېدل** (drangedə́l) مص. ل. ترنګېدل، شرنګېدل، ټنګېدل.

**درنواله** (dranwā́la) ښځ-م. ۱) لويي، لويوالی، مشرتوب؛ ۲) درونډوالي.

**درنول** (dranawə́l) مص. مت. ۱) عزت ورکول، قدر ورکول؛ ۲) وزن زياتول، درونډول.

**درنه** (dranā́) ښځ-م. ۱) د درونډ مؤنث؛ ۲) سخته او شديده ناروغي.

**درنه** (də́rna) ق. درشخه، درغني، درشکه.

**درنه مار** (durnamā́r) ص. نر-م. جلات، جلاد، وژونکی، قتل کوونکی.

**درنېدل** (drandedə́l) مص. ۱) عزت ته رسېدل، عزتمند کېدل؛ ۲) وزن زياتېدل، تول زياتېدل.

**درو** (drow) ښځ-م. (ج. دروي) دوکه، دروه، چل.

**درواز** (darwā́z) ص. نر-م ۱) ترهور، ترور، وارخطا ۲) نسکور، سرچپه، پرمخ.

**دروازګی** (darwāzagáy) ښځ-م. وړه دروازه.

**دروازه** (darwāzá) ښځ-م. دره، تمبه، ور.

**درواغ** (d(a,u)rwā́ğ) ص. نر-م. دروغ، د رښتيا ضد، چپه خبره کول، غلطه خبره کول.

**درواغجن** (darwāğján) ص. نر-م. دروغزن، دروغګو، دروغګوی، وعده خلاف، منافق.

**دروان** (darwā́n) ص. نر-م. دروانچي، څوکيدار.

**دروبڼ** (drubā́ṇ) نر-م. د مېلمه پالنې کړاو، د مهمانداری تکليف او جنجال.

**درويت** (durupát) نر-م. دريت، دهريد، دهريت؛ يو دول لرغوني مشکله سندره ده.

**درود** (durū́d) نر-م. صفت، ستاينه، ثنا او صفت.

**درودګر** (drudgár) نر-م. ژرندګری، زرنده ګری.

**درور** (dror) نر-م. ندرور، د صبره خوړ.

**دروړن** (darwaṛə́n) نر-م. درورنګ، يو دول برتن دی چې جارو ترې جوړوي.

**دروزګر** (drūzgár) ص. نر-م. نجار، ترکاڼ.

**دروزه** (drū́za) ښځ-م. د غنمو يا اوربشو هغه ډنډر چې وروی ترې جلا شوی وي.

**درووړی** (darwáẓay) ص. نر-م. ۱) درو، هغه غواوې چې د ننر لسپاره تاکلې شوې وي.

**دروښته** (druṣ̌tá) ښځ-م. د شنو وښو او بوسو ګډه، د شنو او وچو وښو ګډه د شارويو خواړه.

**دروګر** (drūgár) نر-م. خواخوږی.

**دروګه** (drūgá) ښځ-م. ۱) ديدبه، پرتم، برم؛ ۲) غمخواري، بندوبست.

**درول** (darawə́l) مص. مت. ۱) ولاړول، جګول؛ ۲) تمول، ځنډول، متوقف کول؛ ۳) بندول؛ ٤) کانديدول؛ ٥) مؤظفول، مقررول.

**دروم** (drum) نر-م. ۱) د توپ آواز؛ ۲) د مارش قوماندې، درومها مرش!

**درومل** (drūmə́l) مص. ل. تلل.

**درومنه** (drūmə́na) ښځ-م. تلنه.

**درون** (darwā́n) نر-م. نيزار، دورموډل.

**دروند** (drūnd) ص. نر-م. (ج. درانه) ۱) درون، زيات وزن لرونکی؛ ۲) باعزته، باوقاره.

**دروند بار** (drūndbā́r) نر-م. ګران بار، هغه غير ضروري سامان چې محکې يې لېږي.

**دروند باری** (drūndbā́ray) نر-م. هغه وسيله چې بارووړي؛ د دروند بار وړونکی.

**دروند والی** (drūndwā́lay) نر-م. ۱) د وزن زياتوالی؛ ۲) درنښت، سنګيني، امجازاً عزت.

**دروندول** (drūndawə́l) مص. مت. و ګ. درنول.

**درونه** (darawə́na) ښځ-م. ۱) ودرونه، جګونه؛ ۲) تمونه، ځنډونه؛ ۳) کانديدونه؛ ٤) موظفونه.

**درون** (darwán) نر.م. درونی، نیزار، د دورمو ځنګل.

**دروه** (daráwa) ق. فوراً، سمدستي، بې ځنډه.

**دروه** (droh) ښځ.م. ۱) تګي، چل، دوکه، غولونه؛ ۲) اندېښنه، چورت، وېره، ډار.

**دروهل** (drohál) مص. مت. ۱) له چا سره تګي کول، غولول؛ ۲) ځورول، په عذابول.

**دروهلی** (drohálay) ص.نر.م. خاین، درغل.

**دروهنه** (drohéna) ښځ.م. تګي او برګي کول.

**دروهونکی** (drohúnkay) نر.م. چمبازه، چلي، تګ.

**دروهه** (dróha) ص. نر.م. دوکه باز، چلباز.

**دروهېدل** (drohedál) مص.ل. ۱) غولېدل، تېر وتل؛ ۲) اندېښمنېدل، وېرېدل.

**دروی** (dárway) نر.م.وګ. دورمه.

**درویزګر** (darwezgár) ص. نر.م. فقیر، سوالګر.

**درویزه** (darwezá) ښځ.م. ګدایي، سوالګري.

**درویش** (darwéš) ص.نر.م. فقیر، قلندر، ملنګ، نیستمن، غریب.

**دروی والا** (darwaywālá) نر.م. درمه والا، دورمې خرڅوونکی، د دورمو خاوند.

**دره**(۱) (dará) ښځ.م. تنګی، ناره، ناو، وت، تاله؛ دوو غرونو په منځ کې وادي.

**دره**(۲) (durá) ښځ.م ۱) تازیانه، متروکه، قمچینه؛ ۲) کاکوره.

**درهدکي** (darhádke) ند. بسم الله، خیر غوندي یو کلیمه ده چې د کومې پېښې په مقابل کې عاطفي حالت ښکاره کوي.

**درهم وبرهم** (darhámubarhám) ص. نر.م. ج. ګډوډ، تېت و پرک، وران وېجاړ، بې ترتیبه.

**درهه** (darhá) ښځ.م. پارو، جادو.

**دری** (daráy) ښځ.م. سترنجي، شترنجي.

**دریاب** (daryấb) نر.م. دریا، بحر، سمندر، رود، سیند.

**دریابي** (daryābí) ص. نسب. ۱) د دریاب، دریاب ته منسوب؛ ۲) مج. لوی، پراخ، تبحر؛ ۳) مج. سخي، د خلاص نیت څښتن.

**درې اړخيز** (dreaṛxíz) ص. نر.م. ج. درې ښنګیز، درې خوا[illegible]نکی، درې ښندی، مثلث.

**درې ایکیځه** (dreekíja) ښځ.م. درې ایکیزه، پنځه پولي.

**درې بوجه** (dréboja) نر.ج. پ. ک. کله چې په یوه ټاکلې قضیه کې مرکه چیان وټاکل شي او کله کله بیا طرفین د مسابقې په ډول دغه شمېر درې چنده کوي، دې ته درې بوجه وايي.

**درې پښيز** (drepṣíz) ص.نر.م. درېو پښو والا، هر هغه څه چې درې پښې ولري.

**درې پلی** (drepaláy) نر.م. د ښځې یوه لوبه ده.

**دریځ** (daríj) نر.م. ۱) د درېدلو ځای، منبر، لوړ ځای؛ ۲) موقف، استقامت.

**دریځه** (daríca) ښځ.م. دروځه، کړکۍ، وړه کړکۍ.

**درېدل** (daredál) مص. ل. ۱) ولاړېدل، جګېدل، لګېدل؛ ۲) تمېدل، ځنډېدل؛ ۳) ټاکل کېدل.

**درېدنځی** (dredánjáy) نر.م. تم ځای، درېدنځی.

**درېږ** (drez) امر. ۱) ودرېږه، درېش؛ ۲) عس. د درېدلو یا د حرکت د توقف لپاره عسکري امر یا قوماندە؛ ۳) د درېدل د حال د فعل بڼه.

**درېسکلی** (dreskálay) نر.م. درې کلن اوښ.

**درېش** (dreš) امر. ۱) وګ. درېږه؛ ۲) د سر او وېښتو جوړول؛ ۳) د ځمکې لوړه او ژوره سمول.

**درېشي** (drešī) ښځ. م. کرتي او پتلون.

**درې شېرلی** (drešerláy) ص. نر.م. څلور کلن پسه، یا وزګری.

**دري ښاخي** (dreṣ̌āxáy) ښځ.م. دري ښاخي، دري غاښي سکو، ښاخي.

**دريښکی** (dreṣ̌káy) نر.م. جلب، واګه، کيزه.

**دريغ** (dreğ) نر.م. ۱) وش، آه، د افسوس او ارمان کلمه! ۲) سپما، ساتنه، صرفه، اسره.

**دريغول** (dreğawə́l) مص.مت. نه ورکول، سپمول.

**دريګټ** (dregáṭ) نر.م. يو ډول لوبه ده.

**دريګون** (dergún) عد. ص. له دريو څخه جوړ، د درو، دري واره، دري چنده، د دريو مجموعه.

**دريګی** (dregáy) نر.م. د جوارې يو ډول لوبه ده.

**دريمان** (dreymā́n) نر.ج. ب. ک. هغه بې طرفه منځګړي دي چې دروغي لپاره ټاکل کېږي.

**دريم بريدمن** (dreyámbredmán) نر.م. د عسکري صاحب منصبانو تر ټولو ټيټه رتبه ده چې له ملکي لسمې رتبې سره معادله ده.

**دريم څارن** (dreyámcārán) نر.م. د پوليسو په تشکيل کې يوه رتبه ده چې په عسکري تشکيل کې د دريم بريدمن له رتبې سره او په ملکي تشکيل کې له لسمې رتبې سره برابره ده.

**دري مخی** (dreməxay) ص. نر.م. دري خوايز، دري خواوې لرونکی، دري ارخه لرونکی.

**دريمګړی** (dreamgáṛay) ص. نر.م. منځګړی، دريمان، منصف ثالث؛ و ګ. دريمان.

**دريمه کچه** (dreyámakača) ص. نر.م. شپېـ غاښي، هغه غوښي چې عمر يې څلور کاله وي.

**درينده** (drindá) ښځ.م. (ج. درندې) سنې، د سنيو کلاوه، د سنيو کارې، د سنيو لرې.

**دريندی** (dríndáy) نر.م. درينځی، درندی، د ميرو لو پسونو يو ډول ناروغي ده.

**درينګ** (dring) نر.م. ۱) کلک، کلکه ځمکه؛ ۲) د ونو ځنګل، د ونو باغ.

**درينګل** (dringə́l) مص. مت. کېمتل، سختول، خوړول، په يوه شي کې په زوره منډل.

**درينګول** (dringawə́l) مص. مت. ۱) ټينګول، تخته کول؛ ۲) کښول (د رسی يا پړي).

**درينګه** (dríngá) ښځ.م. کلک او سخت.

**درينګی** (dringáy) نر.م. ۱) يو ډول ناروغي ده؛ ۲) کلکه ځمکه، سخته ځمکه، کرځمکه.

**درينګېدل** (dringedə́l) مص. ل. ۱) ټينګېدل، تخته کېدل؛ ۲) کښېدل؛ ۳) د يوه شي د پاسه ګرځېدل يا ټوپونه وهل.

**دريني** (dríṇay) نر.م. سپينګه، تمزی، سورمه.

**دري نيم سره** (drenímsara) ب. ک. کله چې څوک د يوې نجلۍ تر ورکولو وروسته منکر شي نو د هغې له خپلوانو څخه دريو نارينه او يوې ښځې ته قسم ورکوي چې دې ته دري نيم سره وايي.

**دري ورګی** (drewárgay) ص.نر.م. دري سکلی، دري کلن اوبن.

**دريه** (daryá) ښځ.م. داريا، داريال، چمبه، تمبل، دريا، درياګی، دايره.

**دړ** (daṛ) نر.م. ۱) پانګ، پارسنګ، د دواړو تلو د برابرولو لپاره يو اضافي شيز؛ ۲) لويه تله، کپان؛ ۳) قد، قواره، بنه؛ ٤) اوچته ځمکه؛ ۵) د غره اوچته څوکه، دره.

**دړد** (dard) نر.م. و ګ.؛ درد.

**دړدړ** (daṛdáṛ) ص.نر.م. ج. ذره ذره، ټوټه ټوټه.

**دړدړی** (daṛdaṛáy) نر.م. د پښې پايکو، يو لښګه پايکوب.

**دړدنګ** (daṛdáng) نر.م ۱) دوړدنګ، دړيدنګ، په ترېکو، په يوه منډه، سمدلاسه؛ ۲) شپېه؛ ۳) په غږ انګوژرا؛ ۵) ګډوډه سندره، بې خونده او بې مزې سندره.

**دړدوړه** (dardúṛa) ښځ.م. په‌شور و ځسور، په غوره کې، جوړې و خروښ.

**دړدوړ** (dardúṛ) ص. نر.م. مات ګوډ، میده میده.

**دړز**[۱] (draz) نر.م. د توپک د ډز اواز.

**دړز**[۲] (darz) نر.م. درز، چاک، چاود، درځ.

**دړکه** (daraká) ښځ.م. دپ، پتکه، تهدیدونه.

**دړکېدل** (drakedál) مص.ل. درزېدل، ګرېږدل، ورتل، تکان یا غورځېدنه، زړه دړکېدل.

**دړوایي** (darwāyí) ص. نر.م. تولګر، تلونکی.

**دړوکې** (daṛūke) ښځ.م. ۱) تخته او د لرګي وړه ټوټه؛ ۲) یژي، شونتۍ؛ ۳) د جنغوزي د ونې وړوکی لرګی چې د ډېوې پرځای یې بلوي.

**دړه** (daṛa) ښځ.م. ۱) له لرګي یا هډوکي نه بېله شوې ټوټه؛ ۲) ور؛ ۳) د لرګي چاود؛ ٤) د ختیکي ترازه ٦) ونه، قد؛ ۷) او چته ځمکه؛ ۸) د غره اوچته څوکه؛ ۹) د تش لوښي تلل.

**دړه دړه** (dáṛadáṛa) ښځ.م. دړې دړې، ټوټې ټوټې.

**دړه دوړه** (daṛadúṛa) ښځ.م. شور ماشور.

**دړه ماکو** (daṛamākū́) نر.م. شمخه، یو ډول بوټی دی چې په شړلو کې کېږي.

**دړی** (daṛáy) نر.م. ۱) څاڅکی، قطره، ذره؛ ۲) هغه لوښی چې مایع یا غوړ وربانديې اندازه کېږي.

**دړې** (dáṛe) ښځ.م. ج. ۱) کړکی؛ ۲) د لرګي ټوټې.

**دړۍ** (daṛə́y) ښځ.م. ۱) اله پنځو کیلو برابر وزن؛ ۲) د زړو یو ډول ګانه ده چې ښځې یې په تنده توږمی یا غړوي؛ ۳) د لوښو او خوراکي شیانو د ایښودلو الماری.

**دړې دړې** (daṛedaṛe) ښځ.م. ټوټې ټوټې.

**دړېږ** (daṛéẓ) نر.م. د لاندې بوره غټه او ګرده ټوټه غوښه چې پولزې او جلا څړونده وي.

**دړې وړې** (daṛeware) ښځ.م. ۱) ټوټې ټوټې، ذرې ذرې؛ ۲) مج. ګډوډ، تس نس.

**دزار** (dozā́r) نر.م. جوار، جوارې، د جوارو غله.

**دزارينه** (dozārína) ښځ.م. جواري، بسوکړک، ګدلی، سورسک، پیاځه، د جوارو ډوډۍ.

**دزره له کومي** (dazṛalakū́mi) په‌رازکومي، د زړه له تله، په‌تول‌ه مینه، په ډېره مینه.

**د زنګانه سترګه** (dazangānastárga) ښځ.م. ټنځی، ټټکی، د زنګانه سر، زنګون.

**د ژواک بندګان** (dažwā́kbandagā́n) هغه مریان چې د خرڅلاو او سوداګرۍ لپاره نه، بلکې د خدمت لپاره وي..

**دساري په توګه** (dasā́ripatóga) ال. د بېلګې یا مثال په‌ډول/ توګه.

**دسپنه** (daspaná) ښځ.م. هغه او سپنیزه آله ده چې ختیګران خټه یا مساله پرې هوارووي؛ ۲) کړه، کړۍ، حلقه، د توپک ماشه.

**دست** (dast) نر.م. ۱) د اسهال په‌وخت د عمل شمېر؛ ۲) اسهال، له‌نسه کېدن، نس ناسته.

**دستار** (dastā́r) نر.م. (ج. دستارونه) لنګوټه، لنګوټی، پټکی، پګړی، لونګی.

**دستاوېز** (dastāwéz) نر.م. ۱) دلیل، مدرک، سند؛ ۲) لاسوند؛ ۳) وسیله، بهانه، پلمه.

**دست بازي** (dastbāzí) ښځ.م. لاس وهنه، خیانت، ناوړه استفاده، ناروا ګټه.

**دستخط** (dastxát) نر.م. لاسلیک، امضاء.

**دسترس** (dastrás) ق. مهارت، لاس لرنه.

**دسترګوتور** (dastárgotór) نر.م. مج. ۱) زړی ۲) د پېرګران، محبوب.

**دستک** (dastúk) نر.م. ۱) لاړی، داګه، د خوني د پرېښنې لرګي؛ ۲) د موا صلاتو دوسیه؛ ۳) پرلوبو

لارو له مسافرانو شخه د مالیې اخیستنه؛ ٤) اجازه لیک، پاسپورټ؛ ٥) د سملاسي حساب کتابچه.

**دسکښه** (daskáṣa) ښـ.غ.م. دسکله، لاسکله، دست کش، لاس ماغو، لاس ویلي.

**دستکول** (dastkáwal) نـر.م. د ځان جوړولو د سامانو، روپیو او... د ساتلو یوه وسیله ده چې ښځې یې له ځانه سره ګرځوي.

**دستکی** (dastakáy) نر.م. ۱) برګـه، نیم لـړی، بهاري، تیر، لند دستک؛ ۲) د کټې دواړو خواوو ته د نیم متر هومره واړه لرګي.

**دستکی** (dastakáy) ښځ.م. ج. د لاس درودی.

**دستګاه** (dastgấh) ښـځ.م. (ج. دستګاوي) ۱) کارخانه، فابریکه؛ د لاسي صنایعو د تولید ځای؛ ۲) توان، قدرت؛ ۳) پرتم؛ ٤) پانګـه.

**دستمایه** (dastmāyá) ښځ.م. (ج. دستمایې) د دال او سپر د لاس نیولو ځای او تسمه.

**دستمبول** (dastamból) نر.م. پرپنو، استمبول، مشنګه، د ورکوټي خټکي په شمېر یوه خوږبویه میوه ده.

**دستور** (dastū́r) نـر.م. (ج. دستورونه) ۱) دود، رسم، رواج؛ ۲) قانون، قاعده، طریقه، فرمان، امر؛ ۳)) اق. و.ګ. اډر؛ ٤) و.ګ. اماله.

**دستورالعمل** (dastūrulamál) نر.م. ۱) هدایت، لارښوونه، کړنښود، د عمل لارښود؛ ۲) مراسم.

**دستوري** (dastū́rī) ص.نب. د دستور، په دستور پوري اړوند، د وظیفې له مخې، ګومارلی.

**دسته** (dastá) ښځ.م ۱) لاستی، لاسکی؛ ۲) ګلدسته ګېډی، بنډل؛ ۳) ټیم، ملډار؛ ٤) ټولی، ډله.

**دسته بندي** (dastábandí) ښـځ.م. پر ګـروپ ګروپ یا ډلو ډلو ویشنه، ډله ډله کونګ.

**دستي** (dastí) ق. اوس، همدا اوس، سمدلاسه، سملاسي.

**دسره** (dasára) ق. ۱) بالکل، له سره، ګردسره، ښځي، کورټ هېڅ، هډو؛ ۲) ختم، پای، لنډ.

**دسلاپ** (daslā́p) نر.م. یوني د لومړني خرڅلاو پیسې.

**دسمال** (dasmā́l) نر.م. رومال، رومیال، څپونی، څپونی.

**دسماله** (dusmā́la) ښځ.م. و.ګ. خاملتې.

**دسوی ختکی** (dasóyxaṭakáy) نـر.م. ۱) یو ډېټي جلغ لرونکي بوټی دی.

**د سهار سترګه** (dasā́harstórga) ښـځ.م. زنه سترګه، د سهار ستوری، د سبا سترګه.

**د سیسه** (dasisá) ښځ.م. توطیه، لاتجه، حیله.

**دشپي نوم** (dašpenū́m) (. پوړغی او استخبار نومونه، چې په بندیزي (ممنوعه) سیمو کې له ګرځېدونکیو غوښتل کېږي.

**دشت** (dášt) نر.م. و.ګ. دښت.

**دشکانه سترګه** (daškānastórga) ښـځ.م. د سهار یوه روڼ ستوري دی.

**دشلمه** (dašlamá) ښـځ.م. تشلمه، لـه چاپوسره خوړل کېدونکی خوړه.

**د شودومور** (dašudomór) ښځ.م. رضاعي مور.

**دشومه دم انګازي** (dašumadamangāzé) شپېنۍ هنګامي یا انګازې.

**دښت** (dašt) نر.م. دښته، سارا، صحرا، میره، ډاګ، بیابان، بېدیا.

**دښکو** (daskū́) نر.م. د شېخلوټه په ډول یو مرغی دی.

**دښمن** (dosmán) نـر.م. دېن، دښمن، مېرځی، دېښو، غلیم، دېښه، بدخواه، خصم.

**دښمنانه** (dośmanāná) ص. مېرځي، په دښمنۍ، غليمانه.

**دښمني** (dośmaní) ښځ.م. بدي، غليمي، رټي.

**دښمنېدل** (dośmanedә́l) مصص. ل. مخالف کېدل، رټېدل، غليم کېدل، بدېدل، ورانېدل.

**دښې وتل** (daśéwatә́l) مص. ل. له کاره وتل، خرابېدل، په بدرد نه خوړل.

**دعا** (duā́) ښځ.م. (ج. دعاګاني) ۱) غوښتنه، درخواست، خواست، سوال، حاجت.

**دعوا** (daawā́) ښځ.م. وګ. دعوه.

**دعوت** (daawát) نر.م. ۱) بلنه، راغوښتنه، رابلنه؛ ۲) مېلمستيا.

**دعوتنامه** (daawatnāmá) ښځ.م. بلن لیک، د بلنې پاڼه، د بلنې رقعه، د بلنې کارډ.

**دعوه** (daawā́) ښځ.م. دعوا، دنګله، لانجه، شخړه، جګړه، ادعا، د حاکم په وړاندې له يوه سړي شخه د بل سړي حق غوښتل؛

**دغا** (dağā́) ښځ.م. ټګي، چل، چم، دروهه، مکر.

**دغځی** (dağžáy) نر.م. رچ لاس، غلج لاس.

**دغدغه** (dağdağá) ښځ.م. ۱) وېره، ډار، ترارة؛ ۲) هنګامه، آوازه، انګازه؛ ۳) تخنونه، تخنی؛ ۴) تخت، پلاز، ګدی.

**دغدغی** (dağdağáy) ص.نر.م. دوکه مار، ټګ برګ، ټګمار، چمباز.

**دغدوغ** (dağdū́ğ) نر.م. دوکه، چل ول، فرېب، ټګي.

**دغدوور** (dağdawū́r) نر.م. يوه مرغۍ ده چې شونګه (پېک، کاکل) لري.

**دغدوغی** (dağdūğáy) ص.نر.م. ټګمار، چمباز.

**دغدغی** (dağdağáy) نر.م. ۱) د لمر ورانګه؛ ۲) هغه باران چې ځت ځت څاڅکي ولري.

**دغره تماکو** (dağratamākū́) نر.م. غرنی بوټی دی چې په چلم کې څکل کېږي.

**د غره چای** (dağračā́y) نر.ج. خړ رنګه غرنی بوټی دی چې د چايو کار ترې اخيستل کېږي.

**د غره مېږ** (dağramḗž) نر.م. غرنی پسه.

**دغسي** (dáğasi) ض. ۱) داسې، داړې، دا ډول؛ همدا رنګه، همدا ډول؛ ۲) د نر غوندې.

**دغل** (dağál) ص. نر.م ۱) درغل، کرپه؛ ۲) مکار، منافق، ټګ.

**دغلته** (dáğalta) ق. په دغه ځای، دلته، په دې ځای کې، په دغه ځای کې.

**دغوا غولانځه** (dağwāğulā́nja) ښځ.م. د غوا غلاڅه، يو ډول واښه دي.

**د غوايي ژبې** (dağwāyižabáy) ښځ.م. ګاوزبان، يو ډول طبي بوټی دی.

**د غوايي سترګه** (dağwāyistә́rga) ښځ.م. ۱) ساعت، ګړی؛ ۲) يو رلز ساړايي ګل دی.

**دغومره** (dağúmra) ص. دومره، دغه هومره، په دې اندازه، دومره قدري، دغونه.

**دغه** (dáğa) ض. ۱) دا، نېږدې اشاري ضمير دی؛ ۲) ض. همدا، همدغه.

**د غنيږي روغبړ** (dağәzeroğbár) نر.م. يوه ګره، يرګندي، ترخار ورتل، معانقه.

**دف** (daf) نر.م. وګ. دريه.

**دفاع** (difā́ʔ) ښځ.م. مدافعه، مخه نیونه، ساتنه، ژغورنه، حمايت.

**دفاعي** (difāʔí) ص.نب. د دفاع، د مدافعې، دفاع ته منسوب.

**دفتانګ** (daftáng) نر.م. وګ. دېنګانګ.

**دفتر** (daftár) نر.م. دولتي اداره، اداري څانګه، د يوې ادارې د اسنادو د ثبتولو کتاب.

**دفتري** (daftarí) ص. نسب. ۱) دد فتر، دفتر ته اړوند؛ ۲) د شمسي، دفتري لیک، په ډول لیک دی.

**دفع** (dafʿá) ښځ.م ۱) ایسته کونګ، شړنه، تمبونه، ردونه، لیري کونه؛ ۲) کراړونه، کینونه.

**دفعتاً** (dafatán) ق. لهواره، ناببره، ناڅاپه، یو په یو، په یوه وار، وار له وړاره.

**دفعه** (dafʿá) ښځ.م. وار، پلا، ځل، نوبت.

**دقت** (diqát) نر.م. غور، توجه، ځیرېدنه، پام.

**دقیق** (daqíq) ص. نر.م. ص. نر.م. ځیر، متوجه، پام کوونکی، باریک بین، کره، شک، حساس.

**دک** (dak) نر.م. ۱) علت، بانه؛ ۲) اریانتیا.

**دکارګه تکی** (dakārgatakáy) ښځ.م. تکلی، پښرک، یو ډول بوټی دی چې سابه ترې پخوي.

**دکارګه تونګه** (dakārgatūngá) ښځ.م. د غاټول ګل له کورنۍ څخه یو ښین ګل دی.

**دکازی** (dakā́zay) نر.م. دوګازه، تور، د مرزانو د نیولو یو ډول جال دی.

**دکولمو شوله** (dakulmóšwala) ښځ.م. پیچ، نس خوږی؛ کولمه خوږی، پېچش.

**دکی** (dakáy) ښځ.م. لوغی، غوا لوشه، خاورین لوښی دی چې غوا په کې لوشي.

**دګ** (dag) نر.م. ۱) دګی، ګونده؛ ۲) بې وفایي؛ ۳) د زړه پټه خبره؛ ٤) خرېدلی سر؛ ٥) یو ډول ګانه ده؛ ٦) لړم، تمبه.

**دګدګلی** (dagadagaláy) نر.م. دګولی، د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

**دګل** (dagíl) مص. مت. ۱) ترټل، دسل، غندل، رټل، کېل، منت کول؛ ۲) نر.م. تیر، لاری.

**دګل مری** (dagwálmaráy) ښځ.م. هندوانه، ختکی، بادرنګ چې نوي له ګله وتلي وي.

**دګلی** (dagaláy) صف. نر.م. رټلی، دسلی، رټل شوی، غندلی، ترټل شوی.

**دګلي** (dagalí) ښځ.م. منت باري، منت، احسان.

**دګوتو په شمېر** (dagwatopəšmér) م.ص. لږ شمېر، یو څو، خال خال.

**دګوتو ستوری** (dag(wá,u)tostóray) نر.م. دګوتواوری، دګوتو لوبې.

**دګه دګه تي** (dágadágatí) ښځ.م. د جنګي پسونو د جنګولو په وخت کې ویل کېږي.

**دګیدړ واده** (dagi daṛwāda) نر.م. ۱) په شنه آسمان باران اوریدل؛ ۲) د سیلۍ چورلېدونکې پړبوکی.

**دل** (dal) نر.م. ۱) ورغستلي، ګور، ګوري، دلند؛ ۲) میده شوي شاخل چې خاورو ته ورګول کېږي؛ ۳) ص. نر.م. ج. خوشي، بېځایه.

**دلاسه** (dalā́sa) ص. نب. ۱) دلاسا، راضي، رضا؛ ۲) ښځ.م. تسلي، داد ګیرنه.

**دلاسه لا** (dalāsalā́) ق. نورهم، سربېره پردې.

**دلاک** (dalā́k) نر.م. سلماني، نایي، دم، ګلابي.

**دلال** (dalā́l) ص. نر.م. (ج. دلالان) ۱) هغه څوک چې د پلورونکي او پېرودونکي ترمنځ جوړه راولي؛ ۲) ګومارلی کس؛ ٤) رویبار، رېبار.

**دلالت** (dalālát) نر.م. ۱) یوميا ګلوي؛ ۲) برهان، دلیل، پوهونه، لارښوونه، اطلاق، شاهدي.

**دلاور** (delāwár) ص. نر.م. زړور، زمری، شجاع.

**دلبر** (delbár) فا. نر.م. (ج. دلبران) زړه وړونکی، ښکلی، معشوق، محبوب، مطلوب.

**دلبري** (delbarí) ښځ.م. ۱) زړه راکښنه، زړه وړونه؛ ۲) ناز، ادا، خرام، عشوه، نخره.

**دلبند** (delbánd) نر.م. ۱) لېرمون؛ ۲) زړه پورې، په زړه پورې؛ ۳) د سترګو تور، د زړه ټوټه.

**دلبه** (dalbá) ښځ.م. طعمه، د ښکاري مارغانو د رابللو لپاره د غوښې يوه ټوټه نيول.

**دلپل** (dalpál) ص.نر.م. چوڼلی، چملوک، ګونجې شوی.

**دلتنګ** (deltáng) ص.نر.م. زړه تنګی، خوابدی، غمګين، خپه، خواشينی، زړه نيولی.

**دلته** (dálta) ق. دلې، دېلې، دې ځای ته، دېخواته.

**دلجويي** (deljūyí) ښځ.م. شفقت، مهرباني، دادګيرنه، تسل، دلاسايي.

**دلچسپ** (delčasp) ص. نر.م. په زړه پورې، په طبعه برابر، خوږ، صميمي.

**دلخواه** (delxwāh) ص. نر.م. زړه غوښتونکی، مطلوب، منلی، خپله خوښه.

**دلداده** (deldādá) ص. نب. مين، عاشق، زړه بايللی.

**دلدار** (deldār) ص. نر.م. محبوب، معشوق، خوږ.

**دلداري** (deldārí) ښځ.م. دادګيرنه، تسل.

**دلدل** (daldál) نر.م. مرغه، جبه، جبه زار، پلندې، چرچوړنه ځمکه، دلن، مړه او بيزه ځمکه.

**دلده** (daldá) ښځ.م. ګور، اوګره، ورغستلي، دل.

**دلربا** (delrubā) ښځ.م. ۱) زړه وړونکې، معشوقه، مينه؛ ۲) مو. د سرينديو غوندې يوه آله ده.

**دلسرد** (delsárd) ص. نر.م. نا اميده، مايوسه.

**دلسوز** (delsóz) ص. نر.م. زړه سواندی، مهربان.

**دلګی** (dalgáy) ا. دلګی، لس کيزه پوځي دله.

**دلګير** (delgír) ص. نر.م. خپه، زړه نيولی.

**دلګی مشر** (dalgaymašár) ا. د لس کيزې پوځي دلې مشر.

**دلل** (dalál) نر.م. ح ۱) ستر تيا، ستريا، زله توب؛ ۲) حوارې، فلاکت.

**دلمرتله** (dalmartála) ښځ.م. د ستورو د لوړوالي د معلومولو آله.

**د لمر سترګه** (dalmárstə́rga) ښځ.م. لمر، غارمه، د لمر ټيکلی، د لمر تبې، د لمر ټکی.

**دلنى** (dalanáy) نر.م. لوارږ، دلده چې ميده اوره ترينه بهل شوي وي.

**دلو** (dálwa) ښځ.م. ۱) سلواغه، بوکه، سطل، دولچه؛ ۲) دلمريز کال يوولسمه مياشت.

**دلول** (dalawál) مص.مت. ۱) دل کول، ميده کول؛ ۲) مج. پرتې ويل، چټيات ويل.

**دلون** (dalūn) نر.م. سپارکه، شمخه، يو دول زيانمن واښه دي.

**دله** (dalá) ص.نر.م. پروه، دووس، بې غيرته.

**دله خپک** (dalaxapák) نر.م. خپک، دله ګک، د پيشو هومره يو حيوان دی.

**دلې** (dalé) ق. دلته، دېلې، دغلته.

**دلى** (daláy) ښځ.م. ۱) کوټه، امبار؛ ۲) ص. نب. (مج.) زبت ډېر، بېخي زيات، پرېمانه.

**دلېدل** (daledál) مص.ل. دل کېدل، دلده کېدل، اوګره کېدل، ميده کېدل.

**دلېګه** (dlegá) ښځ.م. دګره، شاړه ځمکه.

**دليل** (dalíl) نر.م. ۱) ثبوت، برهان، حجت؛ ۲) ل.م. لارښوونکی؛ ۳) نخښه، علامه.

**دليلي** (dalilí) ص.نب. ۱) د دليل، د برهان، د حجت، په دليل برابر؛ ۲) يقيني، مقنع، ثابت.

**دلېوه اور** (dalewaór) نر.م. يو ډول بوټی دی.

**دم** (dam) نر.م. ۱) نفس، ساه؛ ۲) ص.نر.م. چوپ، غلی؛ ۳) نر.م. چف، دعا؛ ٤) شېبه، لحظه؛ ٥) ناخاپه، ٤) پنې، د اهنګر پنې؛ ٦) پخېدنه؛ ٧) پراس، بخار.

**دما** (۱) (dimá) ض. وګ. زما.

**دما** (۲) (dáma) نر.م. درمبهار، د توتيو د ډزو پرله پسې اوازونه.

**دمار** (dámmār) نر.م. دهمار، له ۱٤ ماترو څخه جوړشوی تال دی، دري ضربه اودري خالي لري.

**دمار ژبی** (damāržəbáy) ښځ.م. یو ډول نبات دی چې له سر نه تر بېخه پوري پاڼې لري.

**د مابنام ستر ګه** (damāsāmstárga) ښځ.م. د مېلمانه سترګه، زهره، د مابنام ستورى.

**دماغ** (damā́ğ) نر.م. ۱) ماغزه، مغز، د سر ماغزه؛ ۲) لويي، تکبر، غرور، کبر.

**دماغجن** (damāğján) ص. نر.م. ج. دماغژن، کبرجن، مغرور، د لويي او کبر خاوند، متکبر.

**دماغکی** (d(i,a)māğgáy) سېږي بېلم، مخيخ، د دماغ د شا په بېکته خواکې د يوې دماغي برخې نوم دی.

**دماغه** (d(a,i)māğá) ښځ.م. ورسک، د پوزې په څېر وتلې ځای لکه د غره دماغه.

**دماغي ځواک** (demāğijwák) ا. دماغي قوه يا قرت، فکري ورتيا.

**دمامه** (damāmá) ښځ.م. ۱) فضا؛ ۲) دمامه، نغاره، ډنډوره.

**دمباله** (dombālá) ښځ.م ۱) آخر، وروسته، پای؛ ۲) دمبېله، د کوچيانو هغې خورجينې چې ليمڅې شهان په کې ساتي.

**دمبوره** (dambūrá) ښځ.م. ورګ. تمبوره.

**دمبول** (dambawə́l) مص. مت. خوځول، حرکت ورکول، ښورول.

**دمبولا** (dambūlā) نر.م. د کوچيانو يو ډول خاصه خورجينه ده.

**دمپخت** (dampóxt) نر.م. ج. په دم پوخ شوى، په بېراس يا بخار پوخ شوى.

**دم په دستي** (dámpadastí) ق. فوري، في الحاله، ژر ترژره، له واره، سملاسي.

**دم په دم** (dámpadám) ق. ۱) شېبه په شېبه، وخت په وخت؛ ۲) پرله پسې، بې وقفې.

**دمت شیطان** (daméṭšaytán) نر.م. د خاررو شيطان، د شګي شيطان، کولولو: يو ډول حشره ده چې تر خاورو لاندې ژوند کوي، شيطانکه.

**دمچي** (dumčí) ښځ.م. هغې تن چې داس تر لکي لاندې تېره شوي.

**دمخنی** (damaxanáy) ص. نـر.م. پخـوانی، لومړنی، لرغونی، د دمخه، مخنی، مخکينی.

**دمخه** (damáxa) ق. ۱) مخکې، وړاندې، پرومبی؛ ۲) پخوا، ختنن؛ ۳) په وس، په طاقت کې.

**دمخه والی** (damaxawə́lay) نـر.م. د مخه توب، مخکي والی، وړاندې توب، څنګتوب.

**دمدار** (damdā́r) ص. نر.م. ۱) په کراره، په دمه؛ ۲) ساکين؛ ۳) دم لرونکی، مشهونکی.

**دم درحاله** (dámdarhā́la) ق. ۱) فوري، في الحاله، سملاسه؛ ۲) همدا اوس، اوس.

**دمدړه** (damdára) ښځ.م. څنګرې، هغه آله چې د تنسجي تارونه پکښه پورته کوي.

**دمدمال** (damdamā́l) نـر.م. يو ډول رش دي چې ښځې پرې غاړونه ګمنځي يا شـونډې وربانديې سري کوي.

**دمدمه** (damdamá) ښځ.م. ۱) بدايي؛ ۲) افخر، کبر، غرور؛ ۳) ډېرې، کوټه، دلی، انبار.

**دمرداري موږی** (damurdārimawzáy) نـر.م. پيلاتې، شراچورونکی او پخنه سېری.

**دمرده** (damrada) ښـځ.م. د ژړندي اوم.

**د مرغې کنی** (damurğaykanáy) نـر.م. يو ډول واښه دي چې پر شونډلو پاندې راتاوېږي.

**دمړی** (dampáy) ښځ.م ۱) دملي، د دام اتمه برخه؛ ۲) مچ، کمښي، لږ شېز، لږي په سپ.

**دمساز** (damsâz) ص. ملګری، همدم، همراز.

**دمک** (damák) نر.م. ۱) شېبه، لحظه، لږ وخت؛ ۲) دمه، آرام، سباله؛ ۳) ټپک، د لوښي هغه آله چې خاوره پرې تخته کېږي.

**دمګر** (damgár) ص. نـر.م. ۱) اوده کـوونکی؛ ۲) هغه څرک چې د پښې پښې وهي.

**دمګی** (damagáy) ښـځ.م. چغي، جـز بازي، د ماشومانو یو دول لوبه ده.

**دمل** (dumál) نر.م. سنجه، ښنځه، دنبـل، یو دول دانه ده چې پر وجود باندې راخېژي.

**دملاغاښی** (damlāğāṇay) نـر.م. د مـلا د تېر بند، د ملا هډوکی، د ملا غوړکی، د ملا مري.

**دملی** (damláy) ښځ.م. و ګ. دمري.

**دمو** (damú) نر.م. د دوو سـیندونو د یو ځـای کېدو ځای.

**دمول** (damawúl) مص. مت. ۱) اوده کول، چـف کول، دم کول؛ ۲) وریجو ته دم ورکول؛ ۳) مج. تر تاثیر لاندې واقع کول.

**دموي** (damawí) ص. نب. د وینې، خوني.

**دمه** (dáma) ښځ.م. ۱) سـباله، ارام، سـاسازونه؛ ۲) سا، نفس؛ ۳) ښځ.م. لږه پږې پدهدنه، هاضـمه خرابېدنه؛ ٤) بخار، لړه.

**دمهار** (damahâr) نر.م. غړومبهار، دړومبهار.

**دمه ځای** (damaǰây) نر.م. دسبالې ځای، د دمې ځای، د استراحت ځای.

**دمه ګیر** (damagír) ص.نر.م.ج. دمه کوونکی، سباله کوونکی، د دمې خاوند.

**دمه لوی** (damalóy) ص. نـر.م.هوسا، ارام.

**دمېدل** (damedél) مص. مت. ۱) ارامېدل، غلی کېدل، مستریح کېدل؛ ۲) دم کېدل، د دم لاندې کېدل؛ ۳) دم خوړل (پلو، چای...) پخېدل.

**دمیرې زوی** (damayrezóy) نر.م. د میرې مور زوی، ناسکه ورور، میرنی (مورنی) ورور.

**د مېلمانه سترګه** (damelmānastárga) ښځ.م. د ماښام ستوري، د ماښام سترګه، زهره.

**دن** (dan) نر.م. مټ، متی، خُم، چاټی، ماټی.

**دنامه غوټه** (danāmağúta) ښځ.م. د نامه ګنډه، د نامه غوټی، د نوم سر، د نامه سر.

**دناو** (danáw) نر.م. داناو، هغه اوبه چې غنمو ته په وروستي وخت کې ورکول کېږي.

**دنبوره** (danbūrá) ښځ.م. و ګ. تمبوره.

**دنبی** (danbáy) ښځ.م. چغي، چیتي، د ماشومانو یو دول لوبه ده.

**دندارو** (dandārú) نـر.م. یو دول دانـه ده چې د ماشومانو په سر کې راخېژي.

**دنداسه** (dandāsá) ښځ.م. د غـوز د ونې پوست، ښځې د دنداسې څخه د لبسرین او د غـاښو د کریم کار اخلي.

**دندانه** (dandāná) ښـځ.م. (ج. دندانې) ۱) اره، مورګه، غاښی؛ ۲) هغه سـتنې چې د انګـورو تاکـونو ته ورکـول کـېږي؛ ٤) پاتکی، زینه، پوړۍ؛ ٥) څرویی.

**دندکند** (dandkánd) نر.م. د پیل هډوکی.

**دندوره** (dandúra) ښځ.م. نیني شوي جېنجر.

**دندوکار** (dandūkár) نـر.م. ۱) تیاره، تـورتم؛ ۲) د دړو د که وریځ؛ ۳) دړب، دړبهار.

**دنده** (dandá) ښځ.م ۱) ساعت تېرول؛ ۲) وظیفه، پېشه، کار؛ ۳) عیش، ښه ژوند تېرونه.

**دنده یي** (dandayí) ص. دنده پېز، ورځنيز، کسبي، وظیفوي، مسلکي، حرفه یي.

**د نس برځی** (danasbrāǰé) ښځ.م. د نس پړیم، پرین، د نس پردې.

**د نس بني** (danásbanáy) ښـځ.م. د تنسـتې د اوبدلو تارونه، د کنې د اودلو تارونه.

**د نس ترخوله ايله** (danástarxwlailá) ص. ۱) نس پسټی، چيرن، سيرن؛ ۲) اروی بد.

**د نس ناسته** (danasnasta) ښـځ.م. لـه نـسه بهېدنه، دست، اسهال، له نسه کېدنه.

**دنکريزو شپه** (danakrizūšpá) ښځ.م. له واده څخه يوه شپه مخکې هغه رسم چې د هلک او جينۍ په لاسونو نکريزې ايښودل کېږي.

**دنګ** (dang) ص. نر.م. ج. ۱) الوړ، جګ، د لوړې ونې خاوند؛ ۲) مست، نشه؛ ۳) نر.م. د شولو د پاکولو پايکو.

**دنګ دنګ** (dángdáng) نر.ج. رېږدنه، لړزېدنه، دګېدنه، رپېدېدنه، له سړو او يخنۍ ترېدنه.

**دنګرا** (dangrá) ښځ.م. د نـرګس په شېر يو ډول بوټی دی چې په اوبو کې شين کېږي.

**دنګ غاړی** (danggāray) ص. نـر.م. د جګې او لوړې غاړې خاوند.

**دنګل** (dangál) مص. ل. دانګل، ورټل، خېزوهل.

**دنګله** (dangulá) ښځ.م. (ج. دنګلې) ۱) دعوه، مناقشه، شخړه؛ ۲) غورې پرې.

**دنګو** (dangū) نـر.م. بې لـه سـرو کـولـو څخه د حبوباتو پخول.

**دنګوچی** (dangucáy) ښځ.م. نګوښنده، ګـوډ ګوډ تلنه، د ګوډ سړي تګ.

**دنګول** (dangawál) مص.مت. ۱) دانګول، پورته پورته غورځول؛ ۲) دماشومانو نازول؛ ۳) مج. غورځول، لېرې کـول، ايسته کـول، له مقامـه لېرې کول.

**دنګه** (dánga) ښځ.م. ۱) ګڼه ګونه، ازدحـام، جـم و جوش؛ ۲) د مېزرو بوټی؛ ۳) شخړه، لانجه.

**دنګه دنګه چي** (dángadángačí) ښځ.م. د ماشوم دنګونه، د ماشوم پکښه پورته غورځونه

**دنګېدل** (dangedál) مص.ل. ۱) پورته پورته غورځېدل؛ ۲) مج. غورځېدل، له مقامه ايسته کېدل.

**دننوال** (dananwāl) ص. دننپال، درونګرا، تلوني.

**دننوالهٔ** (dananwālá) ا. دننپاله، دننپالنه.

**دننه** (danə́na) ص.نب. ۱) داخـل، په کې، د بهر ضد؛ ۲) ننوتی، ورکې.

**دننی** (danə́nay) ص. نر.م. ۱) داخلي، اندروني، د دننه؛ ۲) دنن ورغي، ورغلی، په ننن مربوط.

**دنه** (daná) ښځ.م. ۱) اصل، طوق، غـاړه کې؛ د ښځې د غاړې يو ډول ګاڼه؛ ۲). و.ګ. دانه.

**دني** (daní) ص. نب. دون، پست، بې کفايت.

**دنيا** (dunyā́) ښځ.م. ۱) نړۍ، جهـان؛ ۲) دارايي شته، شتمني.

**دنياپرست** (dunyāparást) ص.نر.م. هغه څوک چې له پيسو او مال سره زياته مينه لري.

**دنيا دار** (dunyādā́r) ص. نر.م. شتمن، دولتمند، دشتو خاوند، ثروتمند، پيسه دار، موړ، بډای.

**دنياوال** (dunyāwā́l) ص. نر.م. ج. ۱) نړيوال؛ ۲) جهاني، د دنيا.

**دنياوي** (dunyāwí) ص.نب. دنيـوي، د دنيا، د نړۍ، د جهان، په دنيا پورې اړوند.

**دن دن** (dándan) نر.م. چوغکه، کوتواله، چرچنه.

**دنکار** (dankā́r) نر.م. تناکار، يـو ډول تريخ بوټی دی چې د زخمو لپاره دوا ده.

**دنيا** (danyā́) ښځ.م. دنيه، کروښه، ګشنيز.

**دو** [1] (daw) ۱) داو، زياتونه، جګونه، داوطلبي؛ ۲) خې، خجل، شرمنده؛ ۳) منده، څغاسته.

**دو** [2] (du) ښځ.م. ځوروونه، کړونه، دو کول.

دو[3] (do) ښځ.م. دوګی، د سپېڅلو يو ډول لوبه ده.

دوآب (duāb) نر.م. ددوو دريابونو ترمنځ ځای.

دوا (dawā́) ښځ.م. (ج. دواګانې، دواوې) دارو، درمل، دوايي.

دواپړ (dawāpár) ص. نر.م. ۱) دعاکوونکی، دعاګوی؛ ۲) فاتحه وركوونكي.

دوات (diwā́t) نر.م. مشواني، هغه بوتل چې دقلم، دروې نوکاينې رنګ په کې وي.

دواره (dawā́ra) ق. له تکه، ناڅاپه، سمدلاسه، فی الحاله، واره و واره، ولړ له واره، فوراً.

دواړه (dwā́ṛa) ص. نب. غبرګ، جفت، جوړه.

دواله (dwā́la) ا. دوه واله، دووالة.

دوام (dawā́m) نر.م. پايښت، ادامه، ثبات.

دوامداره (dawāmdā́ra) ص. نب. پايداره، پايښت لرونکی، ټينګ، کلک، محکم.

دواوري چينجی (dawāwrečinjáy) نر.م. زنګاله، يو ډول چينجی دی چې په زړه وواوره کې پيدا کيږي.

دوايي (dawāyí) ښځ.م. دوا، درمل، دارو.

دوب (dub) نر.م. دوپ، د په هوا، بخار، ګرمي.

دوباجه (dūbājá) ص.نب. دوه چنده، دوه ځلي.

دوباره (dubārá) ق. ۱) بيا، دوهم ځل، دوه ځلي؛ ۲) ص. خسکي چرګ يا چرګوری.

دوباړی (dubā́ṛay) نر.م. خوباړی، دبی، د کالو مينځلو لپاره پلن لرګی.

دوبته (dubatá) ښځ.م. جوبته، دوبته، څادر، هغه څادر چې نارينه يې پر اوږو اچوي.

دوبجن (dūbjún) ص.نر.م. ۱) دربجن، دوبجن، بلبويه هغه خواړه چې خراب شي؛ ۲) بند، دپ.

دوبره (dubará) ص.نب. لسوی برې، دوه سوري توکر.

ډوبګنی (dobganáy) ص. نر.م. د دوبي، د اوري.

دوبګوری (dūbgóray) نر.م. بانړه، اهلېند، ايلاق.

دوبله (doblá,e) ص. نب. (هن.) دب، دبېن، دوبله، د متحرک فلم له اولنۍ سره هممهاله د اصلي ژبې پر ځای د بلې ژبې د ترجمې شاملونه.

دوبندي (dubandí) ښځ.م. ۱) بند، پيوند؛ ۲) طرق، اصل.

دوبنی (dobanáy) ص.نر.م. د دوبي، د اوري.

دوبنه (dobána) ښځ.م. دوبي، د دوبي ښځه.

دوبول (doból) نر.م. دوه بول، دوه پېښې لرونکی.

دوبی (dóbay) نر.م. و.ګ. اوری.

دوبي (dubí) نر.م. (ج. دوبيان) کالي مينځونکی.

دوبياري (dubyā́ray) نر.م. يو ډول باپه ده.

دوبي خانه (dūbixānā́) ښځ.م. هغه ځای چې دوبيان کالي په کې مينځي.

دوبيتي (dubaytí) ښځ.م. (اد.) يو ډول نظم دی چې دوه بيته يا څلور مسرې لري.

دوبېل (dubél) نر.م. ۱) وره بېله، وروکی تساپړ؛ ۲) د دوو سينډونو د يو ځای کېدو ځای.

دوپ (dup) نر.م. ۱) دوب، دپ، د په هوا.

دوپال (dupā́l) نر.م. هغه لسوی کمر چې چينه تري راوتلي وي.

دوپټی (dūpaṭáy) ښځ.م. مقوا، دپټی، وقايه، د کتاب کلکه او نرۍ پښتي.

دوپټ (dūpát) ص.نر.م. دوه چنده، دوه برابره.

دوپټه (dūpaṭá) ښځ.م. ۱) و.ګ. دوپټه؛ ۲) ص. دوه پاټکيزه، دوه پله پيزه پوړی.

دوپړ (dūpár) نر.م. ۱) کړاک، مصيبت، پريشاني؛ ۲) ستړيا؛ ۳) ص. نر.م. دروهلی، تګ، چلباز.

دوپړه (dū́pra) ښځ.م. دوکړه، دوړی، تبله، طبله، تبلې د موسيقۍ يوه ضربي آله ده.

**دوپړی** (dūpṛóy) ښځ.م. و گ. دوکړه او تېله.

**دوپړي** (dūpṛí) ښځ.م. پرېشاني، خواري.

**دوپن** (dūpán) نر.م. څېټي، چوټي، چونې.

**دوپوره** (dūpūrá) ص. نسب. ۱) دوه پوړيز، دوه منزله؛ ۲) دوه محله، دوه واره.

**دوپه** (dopá) ص. نسب. ۱) دوپسه، دروهلی، ټګ؛ ۲) بېوسه، غريب، سرېداګه، بې اعتباره.

**دوپه دوپيا** (dūpadupyā́) ښځ.م. دوپ، دپه هوا، بنده هوا.

**دوپيازه** (dūpyāzá) نر.م. يو ډول خواړه دي.

**دوتاره** (dutārá) ښځ.م. (مو.) د موسيقۍ يوه آله ده چې تنبورته زياته ورته ده.

**دوترتوکي** (dáwtartóki) ا. ليکتوکي، ليک اوزار، دفتري ارتياوې، قرطاسيه.

**دوترواکي** (dawtarwáki) ا. دفترداري، اداره، بيروکراسي.

**دوتنه** (dawtána) ښځ.م. پوښ، جلد (د کتاب)، وقايه، دوسيه.

**دوتنيار** (dawtanyā́r) نر.م. صحاف، هغه څوک چې کتابونه ګنډي، پوښونه ورکوي.

**دوتنيز** (dawtaníz) ص. پوښل شوی، پوښلی، پوښ ورکړی، مجلد.

**دوجاله** (dujā́la) ص. نسب. دوه زړی، دودلی، فکرجن، مشوش متردد.

**دوچار** (dučā́r) ص. نر. م. ج. اخته، لګيا، بوخت.

**دوچه** (dúča) ښځ.م ۱) ورکوټی ډنډ، وړوکی حوض ۲) ډبچه، دوبچه، جوبه، لښتی.

**دوڅار** (ducā́r) ص.نر.م. ج. ۱) څرګند، ښکاره، جوت؛ ۲) متوجه، څارونکی، تعقيبوونکی.

**دوڅرخه** (ducarxá) ا. لاړيس، پېره کی، بکی، سايکل.

**دوختنی** (dawaxtanáy) نر.م. پخوا، د پخوا وراندې، لرغون، پرومبی، مخکې.

**دوخته** (dawáxta) ق. پرومبی، وخته، پخوا، د مخه.

**دوخړه** (dūxáṛa) ښځ.م. لوخړه، لوګی، دود.

**دود** [۱] (dūd) نر.م ۱) دوګ، لوګی؛ ۲) چاړ، قربان.

**دود** [۲] (dod) نر.م. (ج. دودونه) ۱) رواج، رسم، دستور؛ ۲) هڅوب، کلتور، کلچر؛ ۳) ق. په دول، په څېر، په شان، غوندې.

**دودبايده** (dudbāydá) نر.م. سيالي، رواج، د خپبې مناسبات، د دوستی لړيکې.

**دودتيا** (dodtyā́) ا. دودوالی، رواجېدل.

**دودجن** (dudján) ص.نر.م. دودبويه، هغه څه چې د لوګي خوند يې اخيستی وي.

**دودکادود** (dūdkādúd) نر.م. لوخړه، ګڼ دود، خورسکه، غروسکه.

**دودکښ** (dūdkáṣ) نر.م. دود کش، د لوګي د وتلو موری.

**دودکه** (dūdáka) ښځ.م. يو ډول نبات دی.

**دودل** (dudál) نر.م. دل شوی، تکول شوی.

**دودو** (dawdáw) ق. ۱) په منډه منډه، تېز تېز، په غفاسته؛ ۲) مج. خجالت، خړپړ.

**دودوال** (dodwā́l) ص. دودپال، عنعنه پال.

**دودواله** (dodwālá) ا. و ګ. دودتيا.

**دودودوی** (dod-o-dóy) ا. دود او قانون، قاعده او قانون، عرف او قانون.

**دودول** [۱] (dodawál) مص. مت. رواجول، عامول.

**دودول** [۲] (dūdawál) مص.مت. ۱) لوګی کول، لوګی ترې ايستل، سوځل؛ ۲) مج. قربانول، چارول، ځارول، صدقه کول.

**دودولی** (dodawálay) نر.م. ۱) غوسولی؛ ۲) عصبي کړی، په عذاب کړی، تهرولی.

**دوده** (dūdá) ښځ.م. ۱) تهمت، هغه تاوېز چې ناروغ ته لوګی کېږي؛ ۲) هغه لـرګی چې لمبه نه کوي او نرۍ نرۍ دود ورنه پورته کېږي.

**دودي**[1] (dūdí) ښځ.م. بان، اړوب، هغـه اوره چې لـومړی په اوبو کې حلېږي او بیا د ښـورروا د ښنګولو لپاره ښوروا ته وراچول کېږي.

**دودي**[2] (dawdí) ص.نب. ۱) ګـټـور، مـفيـد، د کټې ور؛ ۲) کټه خوړورنکی یا غوښتونکی.

**دوديال** (dodyāl) ص. و ګ. دوديالی.

**دوديالتوب** (dodyāltób) ا. فـرهنګيالـتـوب، دوديالی.

**دوديالی** (dodyāláy) ص.نر.م. په دود او دستور پوه، درونخریه، فرهنګيال.

**دودېدل**[1] (dodedál) مص.ل. رواجېدل، عامېدل، عام کېدل، تعميم موندل.

**دودېدل**[2] (dudedál) مص.ل. ۱) لـوګی کـېدل، سوځېدل؛ ۲) مج. صدقه کېدل، ځارېدل.

**دودېرشيزه** (duderšizá) ص. ښـځ.م. (مو.) د لوېديزې موسيقۍ په نوليشن کې يوه نښه ده.

**دوديز** (dodíz) ا.ص. دود شـوی، مروج، عنعنوي.

**دور**[1] (dur) ص. نر.م. و ګ. دوړ.

**دور**[2] (dáwar) نر.م. ۱) دوران، حرکت، څرخېدنه؛ ۲) وخت، دبدبه، پرتم؛ ۳) د کـوهي يو ډېـوال؛ ٤) عصر، زمان؛ ٥) سپ. وار، نوبت.

**دوران** (dawrān) نر.م. ۱) ګردش، څرخېدنه، دور؛ ۲) جريان؛ ۳) وخت، مـوقـع، عصـر؛ ٤) مج. قدرت، عزت، پرتم.

**دوراندېش** (dūrandéš) ص. نـر.م. پېش بين، پای ربن، پای ويني، عاقبت انديش، محتاط.

**دوراني** (dawrāní) ص. نب. متحـرک، په حرکت کې، په جريان کې، د دوران.

**دورايي** (durāyí) ښځ.م. ۱) دوراهي، دوه لارې؛ ۲) ق. دوه چاله، دوه زړی.

**دوربه** (dūrbá) ښځ.م. ۱) باراني هفته؛ ۲) دربه، د ژمي د ورځو چې آسمان په وريځو پټ وي.

**دوربين** (dūrbín) نـر.م. ۱) ليرې ليدونکی آله؛ ۲) ص. نر.م. ۱) دوراندېشه، عاقبت انديشه.

**دوردمه** (dūrdáma) ص. نر.م ۱) قوي، غښتلی؛ ۲) دمه، هوسا.

**دورسي** (dūrisí) ښځ.م. تمبه، تمبه، تماچو، ارم.

**دورګه** (dúragá) ص. نب. کم اصل، کچه، بدل.

**دورمال** (dūrmál) نر.م. هغـه کلک لـرګي چې د هغه په وسيله موچنه ښوی کېږي.

**دورمټ** (dūrmat) نر.م. کلکه او درنه آلـه ده چې اومه خمکه يا سرک پرې کېمنډي يا يې پرې مته کوي، ګرمټ.

**دورمه** (dūrmá) ښځ.م (ج.دورمې) نل، نی، درمه، نلی، نيچه، کړکی.

**دورنګي** (dūrangí) ښځ.م. دوه مخي، منافقت.

**دورويه** (duroyá) ص. نب. دوه مخی، منافقه.

**دوره** (dawrá) ښځ.م. (ج. دورې) ۱) پېر، ګردش، دور، دوران، ګرځونه؛ ۲) وخت، زمان، عصر؛ ۳) مرحله، پړاو؛ ٤) ژی، څنډه.

**دورې**[1] (doré) ق. هلته، هاخواته، هورې.

**دورې**[2] (dúre) ق. ۱دې خواته، دېلې، دېخوا.

**دورينه** (dūrína) ښـځ.م. وادي، وت، دره، د دوو غرونو ترمنځ سيمه، ناره، شېله، خوړ.

**دورينه خت** (dūrínaxát) نر.م. دکار کوونکو لوبه، د هلکانو او ځوانانو يو دول لوبه ده.

**دورينه شمال** (dūrinašamál) نر.م. يوه لوبه ده.

**دوړ** (dūr) ص.نر.م ۱) جولا، اوبدونکی، تغراوبدانند؛ ۲) ګرد، ذره، دوړه، لږ شی؛ ۳) دوړن، لاپو.

**دوراوو** (dūrawū́) نر.م. ۱) خوځانګه، هغه پاخه سابه چې بې غوړو له مالګې سره خوړل کېږي؛ ۲) ص. نب. دورن، لاپو.

**دوردورکه** (dūrdūrāka) ښځ.م. بوربوکی، بربکی، بوربرکی، ګردباد، ګردله.

**دورن** (dūrán) ص. نر.م. دوراوو، لاپودرواغجن.

**دورول** (dūrawә́l) مص.مت. دمیده شي شندل، رش(پودر) شیندل، پاشل..

**دوره**[1] (dū́ra) ښځ.م. ۱) ګرد، غبار؛ ۲) درواغ؛ ۳) لاپه؛ ٤) اوره؛ ٤) کیسی، لغز، چیستان؛ ٥) آشورګ، د غابو او ستوني یوه دوا.

**دوره**[2] (dorá) ښځ.م. توکه، مسخره، وشته.

**دوره مار** (dor-mā́r) ص. نر.م. (ج. دوره ماران) مسخره چي، توکي، ملنډي.

**دوری**[1] (dawrә́y) ښځ.م. پیسه، سکه، دینار.

**دوری**[2] (dūrә́y) ښځ.م. هغه دوډی چې د پخې او لې(تنول) دوډی پر ځای تېل کېږي.

**دورت** (dūrit) نر.م. بېځایه ګرځېدنه، لولنګري.

**دورېدل** (dūredә́l) مص.ل ۱) پودر شیندل کېدل، پاشل کېدل؛ ۲) توېېدل، تکېدل؛ ۳) له زړېښته شو کېدل(لکه جامې).

**دوزخ** (dozáx) نر.م. دوژخ، جهنم، دوږخ.

**دوژور** (dožór) نر.م(حق.) پېژندنه، پېژندګلوي؛ قانوني، قانوني حق، مشروع، دیجوري.

**دوسپنه** (dospaná) ښځ.م. زولانه، زنځیر.

**دوست** (dost) ص. نر.م ۱) ملګری، اشنا، اندیوال ۲) خپل، خپلوان.

**دوستانه** (dostānә́) ص.نب. ۱) د دوستی، د صمیمیت؛ ۲) د اشنایی، د خپلوی، د خښبی.

**دوسخانه** (dūsxānә́) ښځ.م. خمبه، کندو، د غلې ساتنځی، امبارخانه.

**دوسکونه** (dwaskū́na) ص. نب. دوه چاکه، دوه درزه، دوه ترکه.

**دوسه** (dósa) ښځ.م. زورزیاتی، جبر، ظلم.

**دوسی** (dosáy) ښځ.م. ۱) چاته مصلحت ورکونه د بل پر ضد سره یو کېدل؛ ۲) مج. منافقت.

**دوسیه** (dosiyá) ښځ.م. (ج. دوسیې) ۱) الس قطعه یې شیز چې پانې ساتل کېږي(دوتنه)؛ ۲) اتهام، تور، کیفیت؛ ۳) ټول هغه اسناد چې د یوې موضوع یا کوم سړي په اړه راغونډ شوي وي.

**دوشاله** (dušālá) ښځ.م. شال، دوپټه شال، دوره شال، کشمیري شال، ښځینه شال.

**دوشېرلی** (dušerlә́y) نر.م. سېرلی، ښشېرلی، دوه کلن پسه، دوه کلن وز.

**دوښا** (doṣā́) ښځ.م. شربه، دوشاب، څرښا؛ انګورو اوبه.

**دوښاخه** (duṣāxá) ښځ.م. ۱) ښاخې، شاخې، سکو؛ ۲) د لیندی کښې، د غولکې لاستی.

**دوښخي** (dūṣaxé) ښځ.ج. لینګټي، د انسان دوا لینګټی، د انسان ښنې.

**دوطرفه** (dūtarafá) ص. نب. دوه اړخیزه، له دوو خراوو، له دوو اړخو، له دوه پلوه.

**دوغونه** (dūğū́na) ص. دغرني، دوغنه، دونه، دغومره، دومره.

**دوک** (duk) نر.م. ۱) غم، تول، د خپګان؛ ۲) کینه، جسد برخه؛ ۳) تهدیدونه؛ ٤) د سیل ناروغی؛ ٥) ثوبنه، د تار یا وړی ریښلو او سپنږ یا لرګینه تېره سیخ.

**دوک** (duwák) ص. نر.م. دوه کلن(غاروی).

**دوکال** (dūkā́l) نر.م. سوکړه، وچکالي، وچ کال، قحطي.

**دوکان** (dukā́n) نر.م. ۱) هټی، هټ، پلورنځی، پلورځی، دکان، مغازه؛ ۲) د مالګې د لاس ته راوړلو او چاڼولو لوړغالی.

**دوکانچه** (dukānčá) ښځ.م. ډبه، چوتره، سوبه.

**دوکتې** (dukaté) جن. د وریځو میده ګي.

**دوکړه** (dukŕá) ښځ.م. ۱) مو. دوګړه، دوبره، دوکړی، طبله، دهندي موسیقۍ له آلاتو څخه ده؛ ۲) ټوکړه، مات شوی دوک؛ ۳) په ماشین کې د پېټو اېښودلو ځای؛ ٤) بې ځایه لویه؛ ٥) رکاب.

**دوکړه یي** (dukŕayí) ص. نر.م. دوکړې وهونکی. دوبړې وهونکی، تبله یي.

**دوکول**[1] (dawkawə́l) مص. مت. ۱) داوطلبي کول، بیه چکول؛ ۲) بایلل؛ ۳) غاړول، جارول؛ ٤) شرمول، دوول، خړول، خجلول.

**دوکول**[2] (dukawə́l) مص.مت. ۱) توکل کول، اراده کول؛ ۲) غمول، کړول، تنګول، ځورول.

**دوکه** (doká) ښځ.م. (ج. دوکې) غولونه، ختا ایستنه، چل، چل ول، ټګي، تېر ایستنه.

**دوکه مار** (dokamā́r) ص. نر.م. چهباز، چلباز، دروغلی، غولوونکی، ټګ، تېرایستونکی.

**دوکی** (dúkay) نر.م. څرخکی، څرخی، ورکوټی دوک، د دوک تصغیر.

**دوکېدل**[1] (dukedə́l) مص.ل ۱) غمېدل، کړېدل، ځورېدل؛ ۲) سمېدل، لاري ته برابرېدل.

**دوکېدل**[2] (dawkedə́l) مص.ل. ۱) داوطلبي کېدل، بیه جګېدل؛ ۲) غاړېدل، جارېدل؛ ۳) شرمېدل، خړېدل، خجلېدل.

**دوګ** (dug) نر.م. ۱) درد، لوګی؛ ۲) قهر، غوسه، خوشکه؛ ۳) درد، خوږ.

**دوګانه** (dugā́na) ښځ.م. ۱) د انګورو هغه تاک چې جوړې جوړې کېږي؛ ۲) ص. نب. جوت، غبرګ، غبرګونی، جوړه یي.

**دوګړ** (dugár) نر.م. ګرد، ګرد، لږ، کم، نوکی.

**دوګزه** (dugazá) ښځ.م. هغه جال چې په دوو څنډو کې یې لرګي وي او د مرغانو یا کوترو د سېل نیولو لپاره په کارېږي.

**دوګغرن** (duggarán) ص. نر.م. ۱) دودغړن، دودجن؛ ۲) لوغړن، لغړن، ناولی، چټل.

**دوګول** (dugawə́l) مص. مت. ۱) غیول، پوغول، څوک په خبرو رالوستل؛ ۲) دردول.

**دوګی** (dugáy) نر.م. (ج. دوګي) لوګی، دود.

**دوګی** (dogáy) ښځ.م. د سپېځتو یو ډول لوبه ده.

**دوګېدل** (dugedə́l) مص.ل. ۱) غیېدل، ورو ورو په خبرو راتلل؛ ۲) دودېدل، لوګی کېدل.

**دولا** (dulá) ص. نب. ۱) غبرګ، دوه پټی، دوه قلی، دوه کټه شوی؛ ۲) کوږ، خم، کوږ، ټیټ.

**دولاغ** (dulā́ğ) ښځ.ج. دولاق، یو ډول پراخ، چین لرونکی بېځینه پرتوګ دی.

**دولت** (dawlát) نر.م (ج. دول، دولتونه) ۱) شته، مال، سرمایه؛ ۲) هیواد؛ ۳) د ملت او حکومت مجموعي هیأت.

**دولتمن** (dawlatmán) ص. نر.م. دولتمند، مور، پهای، شتمن؛ د مال او دولت خاوند.

**دولتي** (dawlatí) ص. نب. د دولت، په دولت پورې تړلی، سرکاري، رسمي.

**دولتی** (dulatáy) ښځ.م. لغتې، جوتکې، لګتې.

**دولکوټ** (dulkót) نر.م. د قصابۍ مارکېټ.

**دولوزه** (dulawzá) ص. نب. بې قوله، بې وعدې.

**دوله** (dulá) ښځ.م. ۱) غړانګه د سپې یا سورلنډې انګولا، دولی؛ ۲) چودنې کوزه، د اوسپنې ګهوه.

دومبره (dū́mbra) ق. ۱) وگ. دومـره؛ ۲) ص. دېر پرېـمېدلی، بې اندازې چاغ.

دومره (dū́mra) ق. دونه، دوني، دهونې، دغومره، په‌دې اندازه، په‌دې مقدار، دا اندازه.

دومره کی (dūmrakáy) ق. نوکی، دونه‌نوکی، ډېر لږ، لږ شېز، بېخي لږ، د دومره تصغیر.

دومنده (dawmandá) ښځ.م. ځلـور بولی، بوده، ځاروی.

دومه [۱] (domá) ښځ.م. مراور، خوګلن، کمزوری اور، غلی اور.

دومه [۲] (dū́ma) ښځ.م. لومه، دام.

دومی (dū́may) نر.م. ۱) پېچومی، لوګ ځای، جګ ځـای، اوچت‌ځای؛ ۲) دومه، سارهوهل، زکام، والګي.

دون (dun) نـر.م. (مو.) ۱) دهن، وګ. تومـري؛ ۲) د ګورو يا لوري‌ځپا له‌تومو شخه‌يو نوم.

د ناسري (dánāsuri) ښځ.م. ۱) د سري‌راګ يوه شعبه‌يا راګني ده؛ ۲) دمېګ‌راګ يوه‌ځانګه؛ ۳) دمالکوس‌راګ يوه ځانګه يا بارجا.

دوند (dund) نر.م. لړه، تياره، غبار، دمه.

دونکاچه (dūnkāčá) ښځ.م. وګ. دوهی.

دوني (dunáy) ښځ.م. دمه، دوهی، دونی.

دوني (dūní) ص. نر.م. ۱) رذيل، پست، بې همته؛ ۲) مفعول، خراب.

دوني (doní) نر.م. مو. وګ. دوني.

دوني مور (dawánemór) ښځ.م. يو دول حشـره ده‌چې په‌ونو کې پيدا کېږي.

دون (dun) نر.م. دوره، غبار، ګرد، دوري.

دونه (dóna) ښځ.م. دوره، توکه، مسخره، ملنډه.

دونی [۱] (dawnáy) ښځ.م. ۱) چـادري، بوغـره، بورکه، برقع؛ ۲) لپې پېسې، پېسه، سکه.

دونی [۲] (dūnáy) ښځ.م. ۱) د شپدو پخولولوښی؛ ۲) دکی، د شپدو د لـوښلولـوښی؛ ۳) او بښتر پور دول ګانه‌ده.

دوني (doní) نر.م. مو. يو اته‌سره لـرونکی مقام دی چې سوني هم ورته‌وايي.

دووس (dawū́s) ص. نر.م. متيز، دله، بوري، دېوث بې غيرته، بې ننګه، پست، رذيل؛ ښـرک چې پر ښځه کرنډه ننګ نه کوي.

دوول (dowál) نر.م. سګ ماهي.

دوه اړخيز (dwaarxíz) ص. نر.م. ج. دوه‌خوايېز، دوه‌پلويز، دوه‌مخيز، ددوو پلوو، دوجانبه.

دوهان (duhā́n) نر.م. اور.

دوه برغه (dwabrága) ص. نب. دوه‌غبرګه، دوه کته، دوه تاييز.

دوه بول (dwaból) نر.م. انسان، بنيادم، بشر.

دوه بی (dwabáy) نر.م. دوه‌منده، دوه لويه؛ هغه ځای چې ددوو خوړونو اوبه‌سره يو ځای کېږي.

دوه پتی (dwapátay) ص. ښـځ.م. ۱) دوه‌بره، دوه سوري؛ ۲) هغه‌ونه‌چې دوه پته‌ولري.

دوه پتيز (dwapatíz) ص. نر.م. ۱) دوه‌پله‌ييز ور؛ ۲) دوه‌پتی.

دوه پسوری (dwapsóray) ص. نر.م. دوه‌بری، دوبره، دوه‌سوری، دوه‌بره.

دوه پوره (dwapū́ra) ص. نب. دوه پوړښـيه، دوه پوړيز، دوه‌چته، دوه منزله.

دوه‌پر دوه (dwā́pardwá) ق. يوازې‌دوه، فقط دوه، دوه‌تنه.

دوه چنده (dwáčánda) ص. نب. دوه ګرايه، دوه برابره، دوه‌ولري، دوه ګوني، دوه‌دونه.

دوه ځایه (dwā́jāya) ص. نب. دوي‌برخي، نيم نيمايي.

دوه خلي (dwaxále) ښځ.م. دوه خاښی سکو.

دوه خولي (dwaxóle) ښځ.م. یو دول ګنډون.

دوه زړه (dwázṛa) ص. نب. دوه زړی، زړه نا زړه، متردد.

دوه ژبی (dwažə́bay) ص. نر.م. دوه قوله، منافق، دروغجن، دروغژن.

دوه ژواکی (dwažwā́kay) ص. نـر.م. د دوو ژوندو خاوند، دوه ژوندی، ذوحیاتین.

دوه ساه ژوند (dwasāžwánd) ا. دوه دومی یا دوه نفسی ژوند.

دوه سکلی (dwaskálay) نر.م. دوه کلن اوبنی.

دوه غبرګه (dwağbárga) ص. نب. دوه برغـه، دوکاته، دوه قطه، دوه بره، دوه تاییز.

دوه غنبی (dwağasáy) ص. نـر.م. د داری، دوه دوری، د دوو کلونو ښاروی.

دوه ګرای (dwagrā́y) نـر.م. دوه قـدمـه، یو په دوه؛ عس. د پلیو لپاره د موزون قدم قومانده.

دوه ګرایه (dwagrā́ya) ا. ص. دوه برابـره، دوه هومره، دوه چنده.

دوه ګرده (dwagə́rda) ښځ.م. بوره، هغې ښځې چې ماشوم یې په ځلوبښتی کې مړ شي.

دوه ګوری (dwagóray) ص. نـر.م. چـنګار، بینګا، کوږسترګی.

دوه ګون (dwagū́n) نـر.م. ۱) دوه ګیـز، دوبي، د دورنوټ؛ ۲) ص. نر.م. دوه تـرله، دوه چـنده؛ ۳) غبرګ.

دوه ګی (dwagáy) ښځ.م. مـهتر، میـرګـاتی، دګاتو په لوبو کې یوه اصطلاح ده.

دوه لاري (dwalā́re) ښځ.م. دوراهي، دورايي.

دوه لاسي (dwalā́say) ص. نر.م. د دوو لاسونو، په دوو لاسونو، دوه لاسی.

دوهم بریـدمن (dwahámbridmán) نـر.م. د عسکري منصب دوهمه تیټه رتبه چې د مـلکي ماموړینو له نهمې رتبې سره برابره ده.

دوهم څارن (dwahémcā́rán) نر.م. د پولیسو په تشـکیـل کې یوه رتبـه ده چې د عسکـری پـه تشکیل کې له دوهم بریدمن او په ملکي تشکیل کې له ۹ رتبې سره برابره ده.

دوه مخی (dwamáxay) ص. نر.م. منافق، دورویه.

دوه مـخي (dwamaxí) ښځ. م. ۱) دوه والی، منافقت، دوه رنګي؛ ۲) ریاکاري.

دوه مېره (dwaméra) ص. ښځ. م. ۱) دوه کتاره، دوه قطاري؛ ۲) دوه ولریزه، د دوو ځلو.

دوه مېـریزه (dwameríza) ص. ښځ.م. هـغـه ښځه چې دوهم ځل یې مېـره کړی وي.

دوه نلیز (dwanalíz) ص. نر.م. ۱) د دوو نلو، د دوو شپېلیو؛ ۲) نر.م. دومیله ټوپک.

دوه نیمه (dwaníma) ص. نب. و ګ. دوه ځایه.

دوه واریز (dwawārı́z) ق. د دوه وارو، تکراري، مکرر، دوه واري، بیا بیا، دوه ځلي.

دوه والی (dwawā́lay) نر.م. دوه مخي، منافقت، دوه رنګي.

دوه ورګی (dwawárgay) نر.م. دوه کلن اوبنی.

دوهی (dūháy) ښځ.م. ۱) دوهه، دونني، دونهی، د ملګانو هستوګنځی؛ ۲) د اور هغه سکروټې چې د چرګیانو مخې ته پرتې وي.

دوه ییز (dwayíz) ص. نر.م. ج. ۱) جفت، جوړه، غبرګ؛ ۲) اد. دوه ییزه، مثنوي.

دوی (dūy) ض. اشاري ضمیر دی چې دغه او دا د جمعې لپاره راځي.

دوې (dawé) نـر.م. قـانون، روش، دود، دستور، رواج.

**دويچه** (dūyičá) ښځ.م. ۱) ديچه، دوپچه، دپالېز جويه؛ ۲) د ځاه په څنګ کې وړوکی ډنډوکی.

**دويزي** (dawizí) ښځ.م. دوروسي، بې غيرتي.

**دويستي** (dawistí) ښځ.م. اينګې، هغو ښځو چې له ناوې سره د پلار له کوره د هلک کره ځي.

**دويل** (duyíl) نر.م. تن په تن جګړه.

**دويم زېږ** (dwaymzéẓ) ا. دويم زېږون، دويم توليد (بغريه).

**دويمه** (dwaymá) ا. دوه، يکشنبه، اتوار.

**دويمه خنج** (dwaymáxanj) ا. دويم خنج، دويم فشار.

**دويي** (duyí) ښځ.م. ۱) دوه ګون توب؛ ۲) بې اتفاقي، نفاق، تفرقه.

**دويېز** (doyíz) ص. قانوني، له قانون سره سم.

**دويېزه** (doyíza) ا. دوه بيتي، مثنوي.

**ده(۱)** (da) ض. ۱) د غايب مفرد ضمير دی؛ ۲) ف. د فعلي ربط مفرده مؤنثه کليمه ده.

**ده(۲)** (dih) ښځ.م. ګرام، کلی.

**دها** (dahā́) ښځ.م. ۱) ځيرکي، هوښياري، پوهه؛ ۲) د عاشورا ورځ.

**دهاتي** (dihātí) ص. نب. ۱) کليوالي، دکلي؛ ۲) هغه ښوروندي چې يو ښورونکی لري.

**دهانه** (dahāná) ښځ.م. (ج. دهاني) و.ګ. دانه.

**دهځ** (dahác) نر.م. جهز، داج، جهېز، کردار.

**دهر** (dáhar) نر.م. روزګار، عصر، زمان، پېرى.

**دهري** (dahrí) ص. نب. دهريه، ملحد، بې دينه؛ څوک چې زمانې ازلي ګڼي.

**دهره** (dahrá) ښځ.م. (ج. دهرې) ۱) داره، غدی؛ ۲) باټ، نوزی، تېشه ماله، بيلو، چړکانی.

**دهشت** (dahšát) نر.م. ۱) وېره، ترهه، وهم، دار؛ ۲) فتنه.

**دهقان** (dihqā́n) نر.م. بزګر، ښکاروز، کروندګر.

**دهلول** (dahlawál) مص. مت. ړارول، ببرول.

**دهلېدل** (dahledál) مص. ل. ترهېدل، ړارېدل.

**دهلېز** (dahléz) نر.م. کفشکن، د کوټو ترمنځ هغه پوښل شوی ځای.

**دهنه** (dahná) ښځ.م. (ج. دهنې) و.ګ. دانه.

**دهواڼګی** (dahawāangáy) ښځ.م. ښوروډل لوبه ده.

**دهور** (dahū́r) ص. نر.م. جولا، اوبدونکی.

**دهه** (dahá) ص. نب. لسمه، لسيزه، لس کلنه دوره.

**دهير** (dahír) نر.م. بېلتون، جدايي، هجران.

**دی** (day) ض. ۱) د مفرد غايب اشاري ضمير؛ ۲) نر.م. (ج. دي) دی، د فعلي ربط مفرده کليمه ده چې د نارينه لپاره استعماليږي.

**دې** (de) ض. ۱) دمفرد غايب ښځينه اشاري ضمير؛ ۲) ښځ.م. مو. په رسم الخط کې د دا، يا دها تېور سُر.

**دي** (di) نر.م. مو. د تبلې يو اواز دی.

**ديار(۱)** (dyā́r) نر.م. سرو، د سروي ونه، د سمېر ونه

**ديار(۲)** (diyā́r) نر.م. هېواد، وطن، ملک.

**ديانت** (diyānát) نر.م. ۱) دينداري، ايمانداري؛ ۲) نيت، زړه، اراده؛ ۳) ملت؛ ٤) مذهب.

**دېبادي** (dibādí) نر.م. مو. هغه سُر چې د راګ د تاکل شويو سُرو په ډله کې شامل نه وي.

**دېپک** (dipák) نر.م. مو. ۱) د پوربي په ټاټ اړونده ۲) داته ويشتو ماترو څخه جوړ شوی يو تال.

**ديتيمانوډله** (dayatimānoḍála) ښځ.م. د اتو ستورو نوم دی چې د کري په شپږ واقع دي.

**دېچکه** (dečká) ښځ.م. ډېچکه، ډېکه، تېل وهنه

**دېخل** (dexál) نر.م. درشايي، درګا، آستانه.

**دېخوا** (dexwā́) ق. دې خواته، دې پلو، دې لوري ته، دلته.

**دید** (did) نر.م. ۱) بینایي، لید، نظر؛ ۲) نخښه، نښه، نښانه.

**دیدوان** (didwán) نر.م. ۱) دیدبان، څري، کروال، چری، (وګ. څری۳)؛ ۲) څارو، څاروال.

**دیده** (didá) ښځ.م. ۱) سترګې، کسې؛ ۳) عقل؛ پوهه؛ ٤) مربېت، د پوځه خاوند کېدنه.

**دیر** (dáyar) نر.م. صومعه، دراهبانو دعبادت ځای.

**دېرپا** (derpá) ص.نب. پایدار، دوامدار.

**دیرک** (dirák) نر.م. څکېز، وڅکېز، سکېزه، د خېمې یا کېږدۍ ستنه (متېه).

**دېره** (derá) ښځ.م. ۱) اوېره، حجره، جمعه د میلمنو ځای، میلمستون؛ ۲) مسکون، مېشت، اړونه.

**دېزدره** (dezdará) ښځ.م. سه بجل، د بېدیو یو دول قماردی.

**دیږي باغ** (dayozibág) نر.م. وګ. د مرغۍ کنی

**دېږ** (dez) امر. ودرېږه، درېش، د درېدلو فرمانده.

**دېس** (des) نر.م. ۱) دېش، جېواد، وطن، دېز، دېس؛ ۲) مو. یو راګ دی.

**دېسکار** (deskár) نر.م. مو. دمېګ راګ یوه راګني ده.

**دیسېنکی** (disénkay) ص.نر.م. وګ. دورس.

**دېسه** (desá) ښځ.م. وېشه، شاه تېر، بش.

**دېسي** (desí) ص.نب. ۱) وطني، ددېس، ددېش؛ ۲) دېسي، کم اصل، بدل، ناچل، کچه؛ ۳) مو. نوي مقامونه یا راګونه د مرګ مقابل.

**دېشین** (dešín) ص.نر.م. استرګن، ځایي، ځای پرځای، په کلي کې اوسېدونکی.

**دیکتاتور** (diktātúr) ص.نر.م. دیکتاتور، مطلق العنان، مطلقه حاکم، خودکامه.

**دیکه** (diká) ښځ.م.(ج. دیکې) ډکه، ټېله، ټنګ، ټېله وهنه، ټمبونه.

**دېکی** (dekáy) ښځ.م. شین توبکه، شین توبی؛ شیدوبی، یو دول مرغۍ ده.

**دېګ** (deg) نر.م. دېګی، فلزي لوښی دی چې پخلی په کې کوي.

**دېګبر** (degbár) نر.م. دېګلی، کمکی دېګ.

**دېګچه** (degčá) ښځ.م. ۱) وګ. دېګبر؛ ۲) نذر، یو نذرانه خیرات دی.

**دیګدګو** (digdugó) ښځ.م. په اوسو کې د منیو وهلو یو دول لوبه ده.

**دېګلی** (degláy) نر.م. دېګچی، وروکی دېګ.

**دېګوری** (degúray) نر.م. چامک، ورکوټی لوښی دی چې د دېګي په څېر جوړ شوی وي.

**دېګي** (degí) ص.نب. پاکه شوې غله.

**دېګي کول** (degikawə́l) مص.مت. غله پاکول، حبوبات او داني پاکول، وریجې پاکول.

**دېله** (delá) ښځ.م. دېېله، د پټو لس خالي.

**دیلي** (dilé) ق. ۱) دلي، دلته؛ ۲) دې خوا.

**دیمه** (daymá) ص.نب. للمي، للمه ځمکه.

**دین**[1] (dayn) نر.م ۱) پیل، شروع، اقدام؛ ۲) پور، هوس، قرض؛ ۲) د ادا کولو ور کوم شه.

**دین**[2] (din) نر.م(ج. دینونه) ۱) ملت؛ ۲) مذهب؛ ۳) آیین، طریقه؛ ٤) ورع، طاعت.

**دینپال** (dinpál) ص.وګ. دیندار.

**دینپالنه** (dinpālə́na) ا. دیندوستي، دیانت پالنه.

**دینپوهنه** (dinpohə́na) ا. دینپوهه، دیني علم، دینیات، الهیات.

**دیندار**[1] (dindár) ص.نر.م.ج. دیندوست، پر دین ټینګ، پرهېزګار، متقي.

**دیندار**[2] (dayndár) ص.نر.م. پوروړی، قرضدار، پور پر بانډي.

**دیندوست** (dindóst) نر.م. وګ. دینپال.

دينبود (dinsṓd) ص. دين پسورنکی، دبني لاربود، مجتهد.

دينګ (ding) ص. نر.م. لک، نيغ، جګ، شخ.

دينوي (dinawí) ص.نب.ديني، د دين، په دين پوري اړوند.

دېوال (dewā́l) نر.م. ۱)ديوار، هغه څه چي د ختو او خښتو او... څخه جوړ شوي او د کوټې، کلا... څخه را تاوشوي وي؛ ۲)خند، حايل.

دېوال غويک (dewālğoyák) نر.م. توردلی، تک توکيني، يو دول مرغۍ ده.

دېوالي (dewālí) ص. نب. ۱) د دېوال، دېوال پوري اړوند؛ ۲)هغه سوداګر چي خپله شته له لاسه ورکړي او په نتيجه کي تجارتي اعتبار يې له منځه ولاړ شي؛ ۳)خپه، مرور، خوابدی..

ديوان (diwā́n) نر.م. ۱)د يوه شاعر داشعارو جونګ يا مجموعه؛ ۲)ورګ.دفتر؛ ۳) تخت؛ ٤)محکمه.

دېوانه (dewānā́) ص. نب. لېونی، پاګل، مجنون.

دېواني ليک (dewānilík) نر.م. دفتري، عربي تعليق، يو دول ليک دی.

دېوت (dewā́t) نر.م. دهيوت، ذبوت، دشپږ سږو (نغمي، اهنګ) د جملي څخه شپږم سرچي د پنچم او نکهاد ترمنځ دی.

دېوخويه (dewxū́ya) ص. دېو لوبني، برمانې، وحشي

دېوده (dewdə́) نر.ج. دېده، ديده، ګني دزي.

ديوګندهار (diwgandhā́r) نر.م. ورګ. جوګيا.

ديوناګري (diwanāgarí) نر.م. يو دول ليک دی چي همدا اوس په هند کي رواج لري.

دېووزمه (dewwázma) ص. دېو دوله، دېو خويه.

ديوه مخه (dayawaméxa) ق. بېخي، له يوه پلوه، له خپلمي، تول، له يوه څرمه، د يوه سره.

ديه (diyá) ښځ.م. (فق.) ديت، نقدي مجازات.

دي يز (diyáz) نر.م. (مو.) د اروپايي موسيقی په نوټيشن کي د غسي (#) يوه نخښه ده.



ډ (ḍāl) نر.م. د پښتو الفبې پنځلسم توری، ډال تلفظ کېږي. ابجدي ارزښت یې ٤ دی.

**ډاپ** (ḍāp) نر.م. ط. ډېپ، ډاب، ډېب: ۱) درنګ تاپه: ۲) چاپ.

**ډاډ** (ḍāḍ) نر.م. ۱) تسلي، تسکین، اطمینان، زړه پوری: ۲) زړورتیا.

**ډاډګېرنه** (ḍāḍgeréna) ښځ.م. (ج. ډاډګېرنې) پوراینه، ورنه، ډاډهنه.

**ډاډمن** (ḍāḍmán) ص. ډاډه، خواتول، مطمئن.

**ډاډمني** (ḍāḍmani) ا. ډاډ، اطمینان.

**ډاډنه** (ḍāḍána) ښځ.م. ډاډ ورکونه، تسلي ورکونه زړه پورتیا، تسلي، ډاډ، اطمینان.

**ډاډول** (ḍāḍawə́l) مص.مت. ډاډ ورکول، تسلي ورکول، ډاډګېرنه ورکول.

**ډاډه** (ḍāḍ[illegible]) ص. نب. ۱) خاطرجمع، مطمئن، زړه پوره: ۲) ډېره، د جوارو وړي یا شنې اوریشې یا غنم په اورکې پخول: ۳) فصل چې په پخېدو راغلی وي: ٤) الوبونه، وریتونه، پخونه.

**ډاډینه** (ḍāḍína) ښځ.م. ډاډهنه، ډاډ ورکونګ.

**ډاډېدل** (ḍāḍeyə́l) مص. مت. ډاډ ورکول، تسلي ورکول، زړه پوره کول، اطمینان ورکول.

**ډار** (ḍār) نر.م. بېره، وېره، یېره، ترس، بیم.

**ډاراچونه** (ḍāračawə́na) وېره اچونه، بورنونه، ترهه اچونه، ترهګري.

**ډارځېلی** (ḍārjapə́lay) مف. سر.م. ډارشوی، بېربدلی، وېربدلی، ډاروهلی.

**ډارماکو** (ḍārmākú) نر.م. دیله، دیلکی، بو دول وانه دي چې په شولو کې راشنه کېږي.

**ډارن** (ḍārə́n) ص. نر.م. بېرندوکی، وېرندوکی، بې زړه، کم زړه، برندوکی.

**ډارول** (ḍārawə́l) مص. مت. بېرول، برول، وېرول، ډورول، ترسول، د یو چا تهدیدول.

**داره** (dára) ښـځ.م. ۱) د دروازې د سر چـچـه، د دروازې د سر پيک؛ ۲) ښپر.

**داری** (dāráy) ښـځ.م. شګـيرګـيني، تمـبکه، د غلوزو کور، د شاتو د مچيو کور.

**داريدل** (dāredál) مـص.ل. بېـرېـدل، ويـرېـدل، تهديدېدل، ترسېدل.

**ډاکټر** (dāktár) نر.م. داکتر، دکـتور؛ دوکـتور؛ ۱) طبيب، دناروغانو معالج؛ ۲) هر هغه څوک چې د علـومو په يوه څانګه کې د يـوې ټاکلي موضوع په باب يو تحقيقي اثر ولـيکي او د هغه څخه دفاع وکړي.

**ډاکټري** (dāktarí) ښځ.م. ۱) درملګري، طبيب، طبابت؛ ۲) وګ. دوکتورا.

**ډاکوتوب** (dākūtób) نـر.م. ډاګ ورنه، پوسـته رسونه، ډاګ رسونه.

**ډاکه** (dāka) ښځ.م. ۱) چپاوشبخون، غدی، داړه ۲) ډاکه، يو ډول نازک ټوکر دی.

**ډاکه مار** (dākamār) ص. نر.م. ډاکو، داړه مار، چپاو کوونکی، چوروونکی.

**ډاګ** (dāg) نر.م. ۱) درمنداګ، د غنمو د پاکـولو ځای؛ ۲) هوار ميدان، ډاک، بيابان، دښـتـه؛ ۳) ډاک، پوسـته، پوسټ؛ ۴) ص. نر.م.ج. خراب، وران، ويجاړ.

**ډاګپانه** (dāgpāna) ښځ.م. پوست کارد.

**ډاګخونه** (dāgxūna) ښـځ.م. ډاګخانه، پوسـته خانه، د پُست دفتر.

**ډاګول** (dāgawə́l) مص.مت ۱) خرابول، ويجاړول، ورانول، له منځه ورل؛ ۲) چورول، لوټول.

**ډاګه** (dāga) ښځ.م. ۱) د بجلی ستن، د چت وسه او ګودره، لګره، خـاده، د ټيلفون متـه؛ ۲) ډاکه، يو ډول نازک ټوکر دی؛ ۳) اولره او وچه ځمکه.

**ډاګي** (dāgí) ص. نـر.م. ۱) ايـلـکـرسانـد، پوسته رسـوونکی؛ ۲) چوغلګر، سخن چين، غماز؛ ۳) بچه باز، لوطي؛ ۴) پراخ تنبی؛ ۵) الګـهـنی؛ ۶) ص.نب. د ډاګ ميداني؛ ۷) شرګند، لوڅار.

**ډاګی** (dāgáy) ښځ.م. وره صوفه يا سـرپه، چرتړه، وره ډبه، کوچنی ډبوسه.

**ډاګېدل** (dāgedál) مص.ل. ورانېدل، خرابېدل، ويجاړېدل، برباديدل، له منځه تلل.

**دال** (dāl) نر.م. ۱) د «د» د توري تلفظ؛ ۲) سپر، کنګل.

**دال باز** (dālbāz) ص. نر.م ۱) کنګل باز، څـوک چې د تورو وهلـو او دال نيولو په لـوبه کې لاس ولري؛ ۲) داړباز (کندهار).

**دال غاړی** (dālɣāray) ص. نر.م. د دال خاوند، دالوال، هغه څوک چې د دال په استعمال ولوکې لوی لاس ولري.

**دالفين** (dālfín) نر.م. دولفين، دولفين، يونسي کب، يو ډول تيـرو غټ کب دی.

**دال وديل** (dāludíl) نـر.م. فـيشـن، دول، دولډ ديل، سينګار، سامانه، سرمانه.

**دالی** (dāláy) ښځ.م ۱) سـوغات، تحفه، پېشکش؛ ۲) دښارتي مقصـد؛ ۳) د شـادريا لمخي څنډه؛ ۴) ډالي، د کوچنيانو ګردی زانګو.

**دامبوری** (dāmbūráy) نر.م. دمـبوری، دمبري، دمبوری، امبار، انبار، ډېران.

**داند** (dānd) نر.م. ډنبر، دنپاتاتو نار جيلغ، ساقه.

**داندټ** (dāndát) نر.م. دغلی، ډاندس، د نداف د ديندايي آله.

**داندسی** (dāndasáy) نر.م. ديندپ، نداپ، ندافه.

**داندوری** (dāndūráy) نر.م. د پسو او ميږيو پرله پسې بغاري.

**داندوغ** (dāndúg) ص. نر.م. وروستی، وروستنی، بڅت پاتې، شاته پاتې.

**داندوکی** (dāndūkáy) ښځ.م. لامبو، تاری.

**داندول** (dāndūl) نر.م. شغله، لمبه، د لمبې برک.

**داندولی** (dāndūláy) ښځ.م. ډنډولی، ځان ځنګلی، ځان غولی، څوک ملنه دواړو پښو او لاسو نیول او زنګول، غولی کول.

**داندولی** (dāndūláy) نر.م. ۱) هغه څوک چې داندولی کېږي؛ ۲) غولی؛ د ترټ ځنډلو لوی ټوکر یا څادر.

**داندی** (dánday) نر.م ۱) و.ګ. داند؛ ۲) واښکی، دانګورو ونګالی، د انګورو ګونکی، ډنډوری؛ ۳) لنډی کوټک، کوچنی او وچ لنډ لرګی.

**داندی** (dāndáy) ښځ.م. ۱) شاهین، د تلي ډنډه؛ ۲) هغه لښه چې لوګی هم ورسره وي؛ ۳) د غوږ لښتی؛ ٤) اشاتیر، ریشه، ښش.

**دانس** (dāns) نر.م. (هن.) ۱) نڅا، ګډا، رقص؛ ۲) والس، تپنګو؛ ۳) د نڅا پارټي.

**دانسر** (dānsár) ص. نر.م. نڅا کوونکی، رقاص.

**دانکه** (dānká) ښځ.م. د سېرو نغاره، د سېرو دمامه، و.ګ. دمامه.

**دانګ** (dāng) نر.م. کوټک، لرګ، سوټی، ډبې.

**دانګ پښلی** (dāngpeyślay) ص. داګېسز، غفرد، اوښار، شرګند.

**دانګ ډبلې** (dāngdabalī) نر.ج. سامان، د کور اسباب، د کور لوښي او کودې.

**دانګسر** (dāngsár) ![.] دیناسور، هغه غټ ژوی چې ٦٥ میلیون کاله دمخه د پوکانان پر تا پروزمه د یوې اسماني توکې له لوېدو سره له منځه تللی دی.

**دانګ لکی** (dānglakáy) ښځ.م. تورانی، توره بلبله، یوه مرغۍ دی چې اوږده لکۍ لري.

**دانګو** (dāngú) ص. نر.م. جګ او غټ سړی.

**دانګوری** (dāngoráy) ښځ.م. د تخرګ امسا.

**دانګه** (dānga) ښځ.م. ۱) ادوم، بهانګه، د کوناټي شخه تر تلې پورې برخه؛ ۲) ستن، متیه.

**دانګی** (dāngáy) نر.م. ۱) ګام، قدم؛ ۲) لنډ پنډ لرګی.

**دانګی** (dāngáy) ښځ.م. ټانګو، یو ډول ونه ده.

**دانګیي** (dāngayī) ص. نب ۱) دانګایي، لوچک بدماش، جنګړه؛ ۲) پوچ کار ترس.

**داونی** (dāwəṇay) نر.م ۱) داونی، ټیکری، څادر؛ ۲) پوغره، پوکره، برقع، چادري.

**داهومي** (dāhūmī) نر.م. و.ګ. داهومي.

**دایرکټر** (dāyriktár) نر.م. ۱) مدیر، رئیس، سمونګر؛ ۲) (هن.) هغه څوک چې د یوه فلم یا نمایشنامې او... لوبندې چارې لارښوونه کوي.

**ډب** (ḍab) نر.م. ۱) د یوه شي د لوېدو اواز؛ ۲) هغه ژورځای چې اوبه په کې ډنډېږي؛ ۳) لویې بېرم؛ ٤) تاوان، زیان؛ ۵) ګوزار، وهنه؛ ٦) ص. نر. م ج. بند، ولاړ، ډنډ؛ ۷) و.ګ. دوبله.

**ډبالی** (ḍabāláy) نر.م. ۱) دغلې خاورین کندو؛ ۲) د سپنګو د ونې تازه څانګه؛ ۲) ص. نر.م. غونډ منډ.

**ډباوه** (ḍabāwá) نر.م. ۱) د زین لاندینۍ برخې چې د اس خوله جذبوي؛ ۲) ښځ.م. ډم اوبه، ډب اوبه

**ډباوی** (ḍabāwáy) نر.م. یو ډول مهر دی چې د سکو وهلو یا ضرب لپاره کارېږي.

**ډبټ** (ḍibít) نر.م. دبت؛ (انګ.) ډېټ، ډېبېټ، دټ، پور، قرض، وام.

**ډبتېر** (ḍabtér) نر.م. لېوه، شرمېن.

**ډبډباني** (ḍabḍabānáy) نر.م. د ماشومانو یو ډول لوبه ده.

**د بډبني** (dabdabanáy) ص. نر.م. چورتي، فکري، مضطرب، ډبډي، شکمن، متزلزل.

**د بډبنی** (dabdabanáy) ښځ.م. فکر، شک، ترارە، اضطراب، پرېشاني، تشويش.

**د بډنګ** (dubdáng) نر.م. ډوب و ډنګ، بي تناسبه غټ سري، بې ډوله غټ وجود

**د بډوب** (dabdúb) نر.م. ۱) وهل ټکول، اخ و ډب؛ ۲) ص. نر.م. بېهوښه، بېحسه، بېخوده.

**د بډی** (dabdáy) ص. نر.م. ۱) وګ. ډبډبنی؛ ۲) ناروغ، ناجوړه، مريض.

**د بر** (dabár) ص. نر.م. ۱) وګ. ډبر؛ ) تباه، هلاک، برباد، پوپنا.

**د برپوه** (dabarpóh) ص. تيږه پېژندونکی.

**د برتوږنه** (dabartoẓéna) ا. تيږه بوږونه، تيږه تروږنه، کاڼي ټکتوب، ډبرين لوښي جوړونه.

**د برتوږی** (dabartóẓay) ص. ډبرتوږونکی، سنګتراش.

**د برکښي** (dabarkṣí) ا. تيږه ايستنه، سنګ کشي.

**د برليک** (dabarlík) ا. کتيبه، د قبر ليکلي شناخته.

**د بروالی** (dabarwā́lay) نر.م. تباهي، هلاکت، بربادي، پوپنايي، ډبرتيا.

**د بروزمه** (dabarwázma) ص. ا. کاڼي وزمه، سنګواره.

**د بروژنه** (dabarwažána) ا. په تيږو ويشتل، سنګساريږم.

**د برول** (dabarawə́l) مص. مت. تباه کول، ستړول، ميراتول، پوپنا کول، بربادول.

**د بره** (dabára) ښځ.م. ۱) کمر، تيږه، کاڼی؛ ۲) پ. ک. وګ. تيږه؛ ۳) هغه لی تـه ورته يو ډول مرغي ده.

**د بری** (dabaŕáy) ښځ.م. ۱) اتپه، د مېږ نيولو څمکنی تلکه؛ ۲) دوړی، خپنه، ښه.

**د برېدل** (dabaredə́l) مص. ل. تباه کېدل، ستړېدل، ميراتېدل، له منځه تلل، پوپنا کېدل، ژوبلېدل.

**د برين** (dabarín) ص. نر.م. د تيږي، د کاڼي، کانيز، ډبريز.

**د بک** (dabák) نر.م ۱) د اوبو دکښي ولي؛ ۲) لرلوالی پراخوالی؛ ۳) ډبه خوټی؛ ٤) دربل، بېکېل، هغه پېړۍ چې د شـاروي دوي پښې ورسـاندي ترل کېږي؛ ٥) بند بند تلونکی، په چوتړ شوی.

**د بل** (dabál) نر.م. ۱) تراپ، تلوار، منډه؛ ۲) مص. مت. وهل، ټکول؛ ۳) ص. نر.م. غبرګ، پټ، غټ، غورش، دوه چنده، دوه لايه، جفت.

**د بلل** (dablə́l) مص. ل. بېلېدل، جدا کېدل.

**د بلو** (dabaló) نر.م. ۱) څړپاری، د کاليو مېنځلو ډبی، د لتو پر يولو لرګی؛ ۲) لت.

**د بلی** (dabalə́y) ښځ.م. ۱) زوبنه، د غنمو ګونډي مزري او...د ټکولو لرګينه آله؛ ۲) ګيوله، ګيږه دودی؛ ۳) نر.م د ښاف او موچي د ټکولو لرګی؛ ٤) لتونه، ټکونې، وهنې.

**د بلی** (dab láy) نر.م. کوټی، قطی، ډبلی، کوټی.

**د بلي** (dabalí) ښځ.م. ج. لت، وهنه، ټکونه.

**د بلي مار** (dablimā́r) ص. نر.م. ۱) مداري، شعبده باز، حقه باز؛ ۲) بېهبه باز.

**د بن** (dabán) نر.م. ۱) کنده، ژور ځای؛ ۲) مخ ډبنګ، غټ سری.

**د بو** (dabū́) ص. نر.م. چاغ، شلند، مزی، غټ.

**د بوزه** (dabū́za) ښځ.م. يو ډول لوبه ده.

**د بوس** (dabū́s) ص. نر.م. پرسېدلی، تمبوس.

**د بول** (dabawə́l) مص. مت. ۱) وهل، درزول، په زوره وهل، پرېيل؛ ۲) ټکول، دربول.

**ډبه** (dabá) ښځ.م ۱) چوتره، سوبه، صفه؛ ۲) ستېج؛ ۳) واګون، د رېل یوه کوټه؛ ۴) د غـوږو تیم؛ ۵) ځلورلاري؛ ۶) سینه تنګي، سالنډي.

**ډبهار** (dabahár) نـر.م. ډبا، د ډبولو یا وهلو پرله پسې اواز؛ ۲) د ډول وهلو پرله پسې غږ.

**ډبی** (dabáy) نر.م. و.ګ. ډبلو.

**ډبی** (dabáy) ښځ.م. ۱) تربندنه، لړزه، رېږد، لرزه؛ ۲) الومه، دام؛ ۳) ډبه، ډبه، د رېل واګون.

**ډبیالی** (dabyálay) ص. نـر.م. مـؤدب، د ادب خاوند، په ادب کې.

**ډبېدل** (dabedél) مص. ل. وهـل کـېدل، درزول کېدل، پرېبل کېدل.

**ډپ** (dap) نـر.م. ۱) ډنـډاوبه، پرشـای ولاړ اوبه؛ ۲) زیان، ضرر؛ ۳) تکېر؛ ۴) کلې ته نـېږدې د تفریح ځای؛ ۵) دخاورو کوچنی غونډی.

**ډپټي** (dipti) نر.م. ۱) استازی، وکیل، مرستیال؛ ۲) ډېوې سیمې حاکم.

**ډت** (dat) نـر.م. ۱) د ډانډېټ اواز؛ ۲) د خـره یا بل حیوان کوږ بار؛ ۳) خلی، خاشه، ډکی.

**ډتن** (datán) ص. نر.م. دارن، بېرندوکی.

**ډتول** (datawól) مص. مت. ۱) آس په ډته بیـول، آس په ورو قدمو بیول؛ ۲) شرمول.

**ډتې** (daté) ښځ.ج. ۱) چتیات، پرتې؛ ۲) په خاورو کې د چرګو یا خرو غړېدنه؛ ۳) د خره لغتې.

**ډتی** (datáy) ص. نر.م. و.ګ. ډتن.

**ډتېدل** (datedél) مص. ل. ۱) آس په ډتـو تلـل، هوبله وهل؛ ۲) چتیات ویل، اپلتې ویل.ی.

**ډچکه** (dačka) ښځ.م. ۱) ډسـکه؛ ۲) شـان و پر، ډبهه؛ ۳) یو ډول مرغۍ ده؛ ۴) لړزه، ریا.

**ډچول** (dačawól) مص. مت. ۱) د آس په ډسکه ځغلول، آس چارنال ځغلول؛ ۲) وهل تکول.

**ډچه** (dáča) ښځ.م. و.ګ. ډچکه.

**ډډ** (dad) ص. نـر.م. ۱) پرسـېدلی؛ ۲) ګـو ګ، منګ تشی؛ ۳) غور اواز، بم اواز؛ ۴) مج. اصلیت، حقیقت؛ ۵) مرور، خپه؛ ۶) ښځ. ستېه.

**ډډبډ** (dádbad) ص. نـر.م.ج. ۱) ډېر پرسـېدلی؛ ۲) نا مـــراده، ځـــوانیمرګ؛ ۳) غـټ، لـوی؛ ۴) رسېدلی، کامل.

**ډډبېکی** (dadbékay) نـر.م. ۱) ډېکـونـو تش ځای؛ ۲) سېک، شیمه، توان؛ ۳) و.ګ. ډډی؛ ۴) یو ډول سابه دي.

**ډډزنی** (dadzánay) ص. نر.م ۱) د ډډې زنې خاوند؛ ۲) تېک، غوږزنی، تنډرکی، رونګه.

**ډډګی** (dadgáy) نر.م. راشپېل رشپېل، خوی.

**ډډم** (dadám) نر.م. هرزه واپه، ساراني واپه.

**ډډنکی** (dadánkay) نـر.م. ۱) د زنې هـپوکی، لاندېنۍ زامه؛ ۲) غرنډ منډ.

**ډډنه** (dadana) ښځ.م. پلټنه، لټونه، تلاشي.

**ډډو** (dadú) نر.م. ۱) چیلم؛ ۲) ص. نر.م. چاغ، شلند؛ ۳) النډغر، لډر؛ ۴) غټه چونګېه.

**ډډوالی** (dadwálay) نـر.م. ډډتـوب، ډډتـیا؛ ۱) پرسوب؛ ۲) مرورتوب؛ خپګان؛ ۳) داواز غوروالی، د اواز بم والی؛ ۴) ګوګ والی.

**ډډور** (dadwár) نر.م. ګړه خبره، چینجنه خبره.

**ډډوزه** (dadúza) ښځ.م. ۱) خورسکه، تریخ لوګی؛ ۲) بدبـوی، دوزه؛ ۳) د تـوبک د دز لـوګی؛ ۴) مج. پوپنا؛ ۵) و.ګ. دروزه.

**ډډوښی** (dadwaṡáy) نـر.م. د ډډ ول وښی دی چې ښځې یې په لاس کوي.

**ډډول** (dadawól) مص. مت. ۱) پرسول، ګـوګول، منګ تش کول؛ ۲) تشـول خالي کول؛ ۳) خپه کول؛ ۴) پلاربول؛ ۵) بې لارې کول.

ډډون (daḍún) نـر.م. ۱) لټون، پلټـنـه، لټـونـه؛ ۲) پارسوب؛ ۳) د منغ تشوالی، ګوګ والی.

ډډه (daḍa) ښـځ.م. ۱) لـرګه؛ ۲) د چـلـم سرخانه؛ ۳) پړسېدلی؛ ۴) ابرخ، ځنګ؛ ۵) مج. امتناع، ځان ژغورنه؛ ۶) د ډډ مؤنث شکل.

ډډی (daḍáy) نر.م. ۱) بالښت، سـروپیږدی، تکیه؛ ۲) د پړسو خوسی.

ډډۍ (daḍə́y) ښځ.م. د باروتو کڅوړه.

ډډی بډی (daḍaybaḍáy) ص. نر.م. ډډېـډ، ډېر پړسېدلی (د مرض له کبله).

ډډېدل (daḍedə́l) مص. ل. ۱) پړسېدل؛ ۲) د اواز غوړېدل بم کېدل؛ ۳) ګوګېدل منغ تشی کېدل

ډډیي (daḍayí) ص. نب. ډډه کــوونکي، شـپـه پر بیابان؛ له کوره بیګانه.

ډر (ḍar) ص. نر.م. بېعقل، احمق، خوشی، لوده.

ډرادر (ḍarāḍár) نر.م. یو ډول مرغی (مرغه) ده.

ډرام (ḍrām) نر.م. ډرامه، ۱) نمایش، ننداره تیاتر؛ ۲) (تی، اص.) هغه ادبي اثر چې د محاورې او عمل په مرسته یو داستان بیانوي.

ډراماتیست (ḍrāmātíst) ص. نر.م.ج. ډرامه لیکونکی، ډرام لیکونکی.

ډراماتیک (ḍrāmātík) ص. نر.م.ج. نمایشي، تمثیلي؛ مهیج او توجه جلبوونکی داستان.

ډران (ḍarā́n) نر.م. بد او خراب اواز، بد صوت.

ډراوینګ (ḍrāwíng) نر.م. و.ګ. رسم[۳].

ډرایور (ḍrāywár) نر.م. و.ګ. موټروان.

ډربل (ḍarbál) نر.م. د پسونو د جنګولو کلیمه ده.

ډرپل (ḍarpál) ص. نر.م. ۱) طفیلي؛ ۲) چاپلوس خوشامندګر؛ ۳) بېکاره او بې معاشه نوکر.

ډرپلتوب (ḍarpaltób) نـر.م. ۱) فضـولي، بې باکي؛ ۲) چاپلوسي، غوړه مالي.

ډرپلی (ḍarpaláy) نر.م. یو ډول پلي لرونکی ساه دی.

ډرتک (ḍarták) ص. نـر.م. ۱) تېزن، ګـرزکی؛ ۲) اپلاکي ویونکی، ناشوردي ویونکی.

ډرتکې (ḍartáke) ښځ.ج. جونګې، لرتکې.

ډرتن (ḍartán) ص. نـر.م. ۱) تېزن؛ ۲) ناشوردي ویونکی، اپلاکي ویونکی.

ډرتې (ḍárte) ښځ.ج. اپلاکي، ناشوردي، چټیاټ.

ډرس (ḍras) نر.م. غـوږې ته په غوا باندې د خطر پر وخت اواز.

ډرسک (ḍarsák) نر.م. هجوم، ګڼه ګونه ازدحام، اتمبار.

ډرن (ḍarán) ص. نر.م. ډارن، بېرندوکی، ډرو.

ډرۍ (ḍarə́y) ښـځ.م.ج. ډروجـاني، ویشـخـنـه، ملندي.

ډری (ḍəráy) نر.م. د پسونو او مېږو د راپللو اواز.

ډرې[۱] (ḍə́re) ښځ.م. د پسونو او مېږو د راګرځولو او شړلو اواز.

ډرېدل (ḍəredə́l) مـص. ل. ۱) ډرېدل، پرېـدل؛ ۲) مج. ناشوردي او اپلاکي ویل، پرتي ویل.

ډریلی (ḍaryaláy) نر.م. یو ډول پلي لرونکی ګیاه ده.

ډز (ḍaz) ص. نر.م. ۱) احمق، بېپرا؛ ۲) ډزو الفجن؛ ۳) د ټوپک غږ، د ټوپک اواز.

ډزا (ḍazā́) ښځ.م. ډزونه، ټکونه، ټکان، ډزهار.

ډزاوو (ḍazāwū́) نر.م. املوک، د املوک مېوه.

ډزوډوز (ḍazuḍū́z) نر.م. ډزهـار د ټوپکـو پـرله پسې ټکونه یا غږونه، د چاودنو اوازونه.

ډزوغپ (ḍazuğap) ا. و.ګ. ډزوغرپ.

ډزوغرپ (ḍazuğráp) نر.م. وهل ټکول، خرپ خروپ، اخ و ډب.

**دزول** (dazawə́l) مص ۱) ویشتل، په ټوپک باندې وژونه کول؛ ۲) وهل، ټکول؛ ۳) مج. ځکول، دودول؛ ٤) ترول، تړول.

**دزه** (dázza) ښځ.م. دوره، مقعد، سومبی، غره، سغی.

**دزهار** (dazahā́r) نر.ج. د ټوپکو پرله پسې غږونه، د چاودنو پرله پسې اوازونه.

**دزی** (dázay) ور. یوه لاحقه ده چې مرکبه کلیمه وربانديې جوړېږي لکه: لس‌دزی ټوپک.

**دزې** (dáze) ښځ.ج. ۱) غوړې پرې، خلاف ویل؛ ۲) د ټوپک وارونه، د ټوپکو ټکان، فیر.

**دزېدل** (dazedə́l) مص.ل. ۱) ویشتل کېدل؛ ۲) وهل کېدل، ټکول کېدل، وهل خوړل.

**دسپلین** (disiplín) نر.م. ډیسیپلین، دسپلین؛ سمون، انضباط، انتظام، نظم او ترتیب.

**دسکي** (dáski) ښځ.ج. دزی، باتې، لاپې شاپې.

**دسمس** (dismís) ص. نر.م.ج. ۱) ګډوډ، ویران وېجاړ، خراب؛ ۲) شګرخون، خپه؛ ۳) معاف، ایله.

**دغ**[1] (dəğ) نر.م. ۱) د کوترې هومره یوه مرغۍ ده؛ ۲) د سترګو یو ډول ناروغي ده.

**دغ**[2] (duğ) نر.م. د سپینو په لوبه کې هغه چاچې د ټولو په اخیر کې خپل وار کوي.

**دغدغی** (dağdağáy) ښځ.م. دغدغي د ماشومانو یو ډول لوبه ده.

**دغدغی** (dağdağáy) نر.م. ۱) غړبودنه، مېز ته ورته یوه مرغۍ ده؛ ۲) و.ګ. دغدغي.

**دغره** (dağára) ښځ.م. ټکره، ډکه، تصادم، مقابله.

**دغرې** (dağáre) ښځ.ج. پوچې خبرې.

**دغری** (dağaráy) ښځ.م. سرجنګي، کتې جنګونه، سرونه سره جنګول، غرغچې.

**دک**[1] (dak) ص. نر.م. ۱) خولې ترخولې، خولې په خولې، لبریز، موخه؛ ۲) ټکر، ډکه، تصادم؛ ۳) نر.م. غرض؛ ٤) مور؛ ٥) ډکی، منډکی؛ ٦) د شپېرۍ پانه؛ ۷) غرایانو ته د ترلو لپاره د رضا کېدو کلیمه.

**دک**[2] (dik) نر.م. و.ګ. ډیک.

**دکار** (dakā́r) نر.م. لړوی، تېغ.

**دکال** (dakā́l) نر.م. ۱) وچوبه، وچکالي، سوکړه؛ ۲) د لوږې مرګ؛ ۳) ناڅاپي مړینه یا مرګ.

**دکتوب** (daktób) نر.م. دکتیا، دکوالی.

**دکره** (dakrá) ا. پارکی، ټوټه، قطعه.

**دکول** (dakawə́l) مص. مت. ۱) خولې ترخولې کول؛ ۲) بلاربول؛ ۳) سرخانه ډکول؛ ٤) مرول.

**دکون** (dakū́n) ص. نر.م.ج. ۱) ډک ځای، مزدحم ځای، دګڼې ګوڼې ځای؛ ۲) نر.م. دکوالی.

**دکه** (daká) ښځ.م. ۱) صدمه، ټکر؛ ۲) د اوبو د مخې ګرغورلو شندی، بند؛ ۳) د پېرې نیولې حالت؛ ٤) ذمه، عهده؛ ٥) د وبالې غاړه پخول؛ ٦) واقعه، پېښه؛ ۷) ص. د دک مؤنث؛ ۸) بلاربه‌ښځه.

**دکی** (dókay) نر.م ۱) منډکی، کوچنی وچه لښته؛ ۲) د وېرې وېښته؛ ۳) خاشه، پیلته.

**دکېدل** (dakedə́l) مص. مت ۱) ترخولې دکېدل؛ ۲) بلاربېدل؛ ۳) مړېدل؛ ٤) مج. پېزې ته رسېدل، خپه کېدل.

**دګ** (dag) ص. نر.م. ۱) تېغ؛ ۲) نر.م. یویله، د آس هغه تګ چې سپور پورته پورته غورځوي او برغه ځي؛ ۳) نر.م. پرنګی، د لېندې دوشاخه؛ ٤) اتغری، دېګدان؛ ٥) اور.

**دګدګی** (dagdagáy) ښځ.م. کنده، کپره‌غمکه، کانوزه او لوړه‌ژوره ځمکه.

**ډګډګی** (dagdúguy) نر.م. ټکټکی، ټکټکانکه، د شیطان ټکټکی.

**ډګډګلی** (dugdagaláy) ص. نسر.م. ۱) ګېډوډ، درهم و برهم؛ ۲) نر.م. د کوچنیانو یوه لوبه ده.

**ډګر** (dagár) نر.م. ۱) میدان، بیابان، اواره دښته؛ ۲) مجاز؛ ۳) د یوه مارغه نوم دی.

**ډګرجنرال** (dagarjanrál) نر.م. له تورن جنرال نه یوه رتبه لوړ عسکري منصبدار.

**ډګرمن** (dagarmán) نر.م. له جګړن نه یوه رتبه پورته چې د ملکي له څلورمې رتبې سره برابره ده.

**ډګروال** (dagarwál) نر.م. له ډګرمن نه یوه رتبه پورته له دریمې ملکي رتبې سره برابره عسکري رتبه.

**ډګره** (dagára) ښځ.م. دوګره، دوګري، وېجاړه څمکه، شنډه څمکه.

**ډګري** (digrí) ښځ.م. ب ډیپلوم، شهادتنامه.

**ډګلن** (duglán) ص. نر.م. و ګ. دوبله.

**ډګلنډ** (duglánd) ص. نر.م. و ګ. دوبله.

**ډګله** (dagla) ښځ.م. کوټنه، تنګ پرتوګ.

**ډګول** (dagwál) نر.م. هغه څېره چې په هغه کې څاروي پنډوي یا یې په کې تړي.

**ډګه** (dága) ښځ.م. ذکر، د نارینه د تناسلي آلت.

**ډګه بوز** (dagabúz) ص. نر.م. شهواني، شهوتي.

**ډګه ور** (dagawár) ص.نر.م.ج. شهواني، شهوتي.

**ډګی** (dagáy) ص. نر.م. تېپ څاروي، ډنګر څاروی.

**ډګی** (dagáy) ښځ.م. ۱) ډګکی، د ډګه مصغر؛ ۲) هغه لښته چې سر یې کوږ وي.

**ډل** (dal) نر.م. ۱) مرغوري، د وازګي غوري؛ ۲) ځانګړو لرګی؛ ۳) د ویالو جوړولو یوم؛ ۴) ګنې ګوړي ونې؛ ۵) ډله، جمعیت.

**ډلپال** (dalpál) ص. د یوې ځانګړې (تولنیزې، سیاسي...) ډلې یا ټولنې پالونکی او لړوند، ګروهپرست.

**ډلپالنه** (dalpālána) ا. د یوې ځانګړې ډلې پالنه.

**ډلکی** (dalkáy) نر.م. د غمرګې هغه نیمه برخه چې وچه شوې وي او کورټ ی په کې ساتل کېږي.

**دلګی** (d(a,i)lgáy) ښځ.م. ۱) د دلې مصغر، وړه ډله؛ ۲) د عسکرو یوه وړه ډله ده چې معمولاً د ۹ کسو څخه جوړه وي.

**ډلګی** (dalgáy) نر.م. د ډل مصغر.

**ډلیال** (dalyál) ا. د ډلې مشر، د ډلې لاربود.

**ډلګی مشر** (dalgaymašər) نسر.م. د ډلګی قومندان، له ۳–۹ کسو مشر.

**ډلمشر** (dalmašár) ص. د ډلې مشر، ډلیال.

**ډلواک** (dalwák) ص. دجمهوری اړوند، جمهوري، جمهوریپال، جمهوري پال ګوند (republican).

**ډلواکي** (dalwākí) ا. جمهوریت، (republican).

**ډلوګی** (dalugáy) ښځ.م. بډی، سوډی، مکاره بډی، بوډوګی، چالاکه بډی.

**ډله** (dála) ښځ.م. ۱) جمعیت، ګروپ، ګڼ خلک؛ ۲) ګڼې ونې؛ ۳) ګوند، حزب، پارټی.

**ډله ییز** (dalaíz) ص. نسر.م.ج. ۱) دسته جمعي، ګروپي، ګروهي، په ګډه سره؛ ۲) د یوې ډلې.

**ډلی** (daláy) ښځ.م. ۱) د چارو شیو خلو خټلو لوبې، خاک انداز؛ ۲) د اینګر تولولو توکری؛ ۳) د خوشایو تولولو آله.

**ډلیت** (dalít) نر.م. اردلی، هغه سپاهي یا ملازم چې د خپل بادار په خدمت کې حاضر وي.

**ډم** (dam) نر.م. ۱) سندرغاړی، مطرب؛ ۲) نایي، ګلابي، دلاک؛ ۳) وړتې کښونکی؛ ۴) د ډول اواز؛ ۵) ولاړې اوبه؛ ۶) د اوبو بند؛ ۷) داغ

**دمامه** (damāmá) ښځ.م. ۱) مو. نغاره، نقاره، طبل؛ د موسيقۍ له پخوانيو آلاتو څخه ده؛ ۲) ډنډوره، جار، آوازه.

**دمامې** (damāme) ښځ.ج. مړې اوبه، غلې اوبه.

**دمبرګلی** (dambargwálay) نر.م. جعفري ګل.

**دمبره** (dambára) ښځ.م. ۱) غوميسه، بمبره، غالبوزه، ډمبره، ګاوزنبوره؛ ۲) يو ډول اغزنه غرنۍ ونه ده چې دانې يې د تور مرچ هومره وي.

**دمبکی** (dambakáy) نر.م. دمبک، ډومبک، کوچنی يا ووړکی ډول.

**دمبلي** (damblí) نر.م. (مو.) د ۹ ماترو يو تال دی.

**دمبو** (dambó) ښځ.م. د ښځو مخصوصه لامبو، ډينجو، انډرقې.

**دمبه** (dambá) ښځ.م. ببلچه، چاړي.

**دمبهار** (dambahār) نر.م. دمهار، د ډول يا دريږي پر له پسې اواز.

**دمپنګ** (damping) نر.م. (اق.) ۱) داستعمال لپاره موقتي ذخيروي مواد؛ ۲) د رقابت لپاره کوم جنس په ډېره ارزانه بيه خرڅول.

**دمخونه** (damxūna) ا. د نايي دوکان، د سلماني خونه.

**دمګی** (damgáy) نر.م. ۱) د دم مصغر؛ ۲) داوبو تربړی، ډنډ، د اوبو ډنډوکی.

**دمول** (damawúl) مص. مت. اوبه ډنډول، اوبه ډبول، اوبه دب کول.

**دمه** (dámu) ښځ.م. د دم مؤنث. ۱) سندرغاړې، مطربه، سازنده؛ ۲) سينګاروونکې.

**دمې** (dáme) ښځ.م. د ماشومانو يو ډول لوبه ده.

**دمېدل** (damedél) مص. ل. اوبه ډنډېدل، اوبه دم کېدل، اوبه دب کېدل، کورمېدل.

**دنبرې** (danbúray) نر.م. کبابه، کبابه چيني، کبابه د بوټي ونې د مېوې نوم دی.

**دند** (dand) ص. نر.م. ۱) حوض، تربړی، ترېلی، جوړ، تالاو؛ ۲) ص. کوږم، ولاړي؛ ۳) بمېرازه وادي؛ ٤) دهنداري مخ؛ ٥) تروټه، تاوان.

**دندا** (dandá) ښځ.م. و.ګ. ډنډوره.

**دنداره** (dandára) ښځ.م. ۱) ډونډۍ، ډنډر، ساقه؛ ۲) بمبره، غوميسه ۳) شورنسري، مزي سري؛ ٤) و.ګ. ماشوره.

**دنداس** (dandās) نر.م. ډاندس، دنداف لېندی، د ډينډاپ د ډينډاپي لېنده.

**دنداکی** (dandākay) نر.م. دورانه د ښځ هډوکی.

**دندالی** (dandālay) نر.م. جارچي، نغاره چي.

**دنداو** (dandáw) نر.م. و.ګ. ډنډ.

**دندتال** (dandtál) نر.م. د ۱۲ ماترو يو تال دی.

**دندر** (dandár) نر.م. ۱) ډونډۍ، دنبات ډنډه، ساقه؛ ۲) د چارګل او پېزوان سيخ.

**دندرولوجي** (dindrolojí) ښځ.م. د ونو پوهنه، د ونو علمي مطالعه، ونه پېژندنه.

**دندروکرونولوجي** (dindrokronolojí) ښځ.م. دوران پېژندنه او د چاپېريال د لرغونتوب مطالعه.

**دندغر** (dandağár) نر.م. تانګر، د اخورکنګر، له ښاروېونه پاتې شوې پرووه، لوارېوس.

**دندکی** (dandakáy) نر.م. (پخ.) اکچېرې، کيچړې، کيچړي کورت، کورت و وريجې.

**دندګلی** (dandgwálay) نر.م. شين پاني، دوده، ډنډه، د نيلوفر ګل، نيلوفر.

**دندوب** (dandúb) نر.م. ۱) ډنداو، اوبه په کې ډنډول؛ ۲) ص. نر.م. بې عاطفي، بې رحمه.

**دندوره** (dandorá) ښځ.م. ۱) نغاره؛ ۲) مج. جار، بوله، اوازه.

**ډنډوره چي** (ḍanḍoračī) ص. نر.م. جارچي، ډنډالي، نغاره چي، جار ګرځوونکی.

**ډنډوری** (ḍanḍuráy) نر.م. و ګ. ډانډی[1].

**ډنډوکارې** (ḍanḍukā́re) ښځ. ج. فـریادونه، چیغې، نارې، واویلاوې، انګولاوې.

**ډنډوکی** (ḍanḍū́kay) نر.م. وروکی ډنډ، ډنډګی، حوضچه، تالاوګی.

**ډنډول** (ḍanḍawә́l) مـص. مت. ۱) ډمـول، اوبه ایسارول؛ ۲) په چا باندې مال تاوانول.

**ډنډه** (ḍánḍa) ښـځ.م. ۱) د ډنډ مؤنث؛ ۲) د شـولو لوی پټی چې اوبه په کې ډنډېږي؛ ۳) د نبات ډنډر؛ ٤) د تلې ډانډه، بموټی؛ ۳) ډنډر، د چارګل او پېزوان سیخ چې په پوزه کې تومبل کېږي.

**ډنډه کېلک** (ḍanḍakelák) نـر.م. اډ، ډی، یو ډول لوبه ده.

**ډنډی** (ḍanḍáy) ښځ.م ۱) وتلې ډانډی؛ ۲) د غوږ نرمې؛ ۳) په تول کې فرق؛ ٤) لاښ وهنه.

**ډنډېدل** (ḍanḍedә́l) مص. ل. ډمېدل، اوبه په یوه ځای کې درېدل یا راټولېدل.

**ډنډیې** (ḍanḍayī́) ص. نب. هغه آس چې د ګاډي له آس سره د روږدولو لپاره تړل کېږي..

**ډنګ** (ḍang) نر.م ۱) د ډریې یا ډول اواز؛ ۲) اریان په دریان، په چورت کې ډوب.

**ډنګار** (ḍangā́r) نر.م. دارو کار، یو مضر بوټی دی.

**ډنګالی** (ḍangāláy) ښځ. الچه، یو ډول توکر دی چې پټه پټه خطونه لري.

**ډنګر** (ḍangár) ص. نر.م. ۱) خوار، کم غوښی، د ښوروب ضد؛ ۲) نر.م. څاروی، غوا، غویی.

**ډنګرکه** (ḍangaráka) ښځ.م. ۱) د ډنګر تأنیثي مصغر؛ ۲) پرپره، ګوبلکه، ډینګری، تیتری.

**ډنګرکی** (ḍangarákay) ص.نر.م. د ډنګر مصغر.

**ډنګروالی** (ḍangarwā́lay) نـر.م. ډنګرتوب، زهیرتوب، کمزورتیا، جسمي ضعف.

**ډنګری** (ḍangaráy) نـر.م. ۱) د ډنګـر مصغر؛ ۲) د ګونډیو تکولو ډبې یا کوتک.

**ډنګلی** (ḍingaláy) ښځ.م. د شاه یا کومې لړم.

**ډنګوټی** (ḍangū́ṭay) نر.م. سکـړ، جونګړی، د تښتې سه پایه.

**ډنګول** (ḍangawә́l) مص. مـت. ۱) ډول وهل، نغاره وهل؛ ۲) د موسیقي سیمي آلات وغږول؛ ۳) ډنډوره وهل؛ ٤) مج. رسوا کول، تشهیرول.

**ډنګهار** (ḍangahā́r) نر.ج. د ډول او نغارې پرله پسې آواز، درنګهار.

**ډنګېدل** (ḍangedә́l) مـص. ل. ۱) ډول یا نغاره وهل کېدل؛ ۲) مشهـوربدل، رسـوا کېدل؛ ۳) ډنډوره وهل کېدل؛ ٤) درنګېدل، ترنګېدل.

**ډنګي ډوال** (ḍangiḍiwā́l) ص. نـر.ج. ډنګي دیوال، خلاص، دریه، پرمخ خلاص.

**ډنه** (ḍéna) ص. ښځ.م. شیګاره، متېږه، هغه ښځه چې په چا پسې تېښتېدلې وي.

**ډو** (ḍo) نر.م. د ګام د لومړنی نوټ نوم.

**ډوب** (ḍūb) ص. نر.م. ج. ۱) غـرق، لاهـو، یوب؛ ۲) اریان، ورک.

**ډوبره** (ḍubéra) ښځ.م. یوه غرنۍ ونه ده.

**ډوبلن** (ḍūblán) ص. نـر.م. ډګـلان، د ګ، ډوبله وهونکی آس.

**ډوبله** (ḍū́bla) ص. ښځ.م. ۱) د ګ، د برغه ضد، د آس نا اولړ تګ؛ ۲) و ګ. دوبله.

**ډوبلی** (ḍūbaláy) نر.م. د سپورت یا پهلوانۍ سامان.

**ډوبلی** (ḍubláy) ښـځ.م. ۱) کـوړکه، کسـاکه؛ ۲) متکور، د جوارو او غنمو نیم وریت شوی وږی؛ ۳) د جوار پرېری، تېتهه؛ ٤) بخیل، سوګت.

**ډوب ماکو** (dūbmākū) نر.م. و گ. اوبتل.

**ډوبني** (ḍubǐnay) نر.. د اوبو ژورو الی.

**ډوبوالی** (ḍūbwālay) نر.. ډوبتیا، ډوبېدنه.

**ډوبول** (ḍūbawúl) مص.مت. غرقول، لاهو کول، په اوبو کې منډل، په اوبو کې ننویستل.

**ډوبی** (ḍūbáy) نر.م. ډوبلی، د منسوارو کوتی.

**ډوبی** (ḍubáy) ښځ.م. ۱) خوبی، سرداوه، سرویی؛ ۲) انګوبښدنه؛ ۳) : زړه ضربان.

**ډوبېدل** (ḍūbedúl) مص. ل. ۱) غرقېدل، لاهو کېدل، ډوبېدل؛ ۲) په فکر کې سرګومه تلل.

**ډوبي ډوبیا** (ḍūbeḍūbyā) ص. تب. بېخي تری تم، بالکل ورک.

**ډوپکنی** (ḍupkanáy) ښځ.م. د ... ؤ یری.

**ډوپی** (ḍūpáy) ښځ.م. ۱) تر څمکي ... اوبو ... ؛ ۲) ... تسه.

**ډوډ** (ḍuḍ) نر.م. ښډه، نیلوفر، ډنډګلی.

**ډوډا** (ḍuḍā) ښځ.م. ۱) یو ډول بوټی دی چې سر یې بوه اغزنه غوزه لري؛ ۲) ډوډه، د کوکنار غوزه.

**ډوډه¹** (ḍuḍá) ښځ.م. ۱) د کوکنارو غوزه، لادو؛ ۲) جوارۍ، د جوارو ډوډۍ، سوړسک.

**ډوډه²** (ḍuḍá) ښځ.م. اواده، داوده، الوی، د جوارو الوی، د جوارو د وریو د غوټیو وریتونه.

**ډوډی** (ḍuḍáy) نر.م. ۱) لرخ؛ ۲) تر ټشي لاندې هډوکی، د کوناټي د سر هډوکی؛ ۳) د ماشوماتو یو ډول لوبه ده.

**ډوډي** (ḍuḍáy) ص. نر.. (ج. ډوډیان) ۱) غوړه مال، چاپلوس؛ ۲) مج. جاسوس، مخبر.

**ډوډۍ** (ḍoḍəy) ښځ.م. ۱) ضیری، ټیکله، نغن؛ ۲) کنغ. اتام، خواړه، طعام، روټی.

**ډوډۍ خونه** (ḍoḍəy xūna) . خوراکخونه، د ډوډۍ خوړلو خونه.

**ډوډۍ غرپ** (ḍoḍəy ǧráp) ص. نر.م. ۱) اړوړ ډوډی، مترووی؛ ۲) حریص، نه مړېدونکی.

**ډوډۍ کغالی** (ḍoḍəy kuǧālay) نر.م. تنور، د ډوډۍ پخولو تنور؛ و گ. تنور.

**ډوډي مار** (ḍoḍimār) ص. نر.م. لنګري، سخي، د دسترخان خاوند.

**ډور** (ḍor) نر.م ۱) داروونکی غنګل؛ ۲) ویروونکی غای؛ ۳) دګازې، جال.

**ډورکندی** (ḍorkandáy) نر.م. و گ. ګورګتی.

**ډورګتی** (ḍorgaṭáy) ښځ.م. و گ. ګورګتی.

**ډوره** (ḍóra) ص. ښځ.م. ۱) شلېدلی، څیری، بړه؛ ۲) مج. مفعول (هلک).

**ډرری** (ḍuráy) ښځ.م. ډوره، لی، شپوه، قبر، ګور.

**ډوری** (ḍūráy) نر.م. ۱) نیمه، نخښه، نښانه؛ ۲) څېره، شکل؛ ۳) داروونکې نیمه، څروی.

**ډوریا** (ḍūryā) ښځ.م. یو ډول توکر دی.

**ډوز¹** (ḍuz) نر.م. ۱) ډز، د ټوپک اواز؛ ۲) د یو شي د لوېدو اواز، له لوېدونه د ماشوم د ژغورلو غږ.

**ډوز²** (ḍoz) نر.م. دوز، دوس؛ ۱) یو خوراک دوا یا دارو؛ ۲) د یو شي ټاکلی مقدار.

**ډوزن** (ḍuzún) ص. نر.م. ۱) تیزن؛ ۲) باتک، غورتن، باتو، لاپو.

**ډوزه** (ḍuzá) ښځ.م. درواغ، غوره، لاپه، باته.

**ډوزی** (ḍūzay) ص. نر.م. ۱) احمق، شوده، سوډر؛ ۲) دروغجن، لاپو.

**ډوغ** (ḍuǧ) نر.. ۱) توغ، د توغي اواز؛ ۲) د سپینو په لوبه کې هغه چاته چې د ټولو لوبغاړو په اخیر کې وار کوي.

**ډوغل** (ḍuǧúl) مص. ل. ۱) وګ. توغل؛ ۲) نر.م. ژړ، کنده، کرندغالی، ژور غای.

**دوغن** (dūǵán) ص: نر.م. توخن، هغه څوک چې د بر توخېږي.

**دوغېدل** (dūǵedál) مص.ل.و ګ. توخېدل.

**دوک** (dūk) نر.م ۱) دوکی، دکی، منېکی، خاشه؛ ۲) یو دول افزن بوټی.

**دوکال** (dūkál) نر.م. ۱) وچکالي؛ ۲) ناڅاپي مړینه یا مرګ.

**دوکتورا** (dūktūrá) ښځ.م. دکتورا، دکتورا، داکتري، داکتري؛ هغه درجه یا موقف او عنوان چې یو چاته د هغه د لاکلو تحصیلاتو په پای کې د پوهنتون له خوا اعطا کېږي.

**دوکتوریسه** (dūktorísa) ښځ.م. دوکتورس، دکتوریسه، داکتره، هغه ښځه چې داکتره وي.

**دوکتورین** (dūktorín) نر.م.ج(سي.) دکتورین، دکتورین. ۱) نظریه، فکر، تز، تیزس، عقیده، فلسفي، سیاسي یا اقتصادي نظریه؛ ۲) لار، مشې، آیین.

**دوکره** (dūkrá) ښځ.م. دتبلې د یوه تال نوم.

**دوکه**[۱] (dūká) ښځ.م. ۱) د خجورې وبنګلوی، د خرما ګونګوری؛ ۲) د یوې تنستې پنځو پنځو تارونو چې سره او بدل کېږي.

**دوکه**[۲] (doká) ښځ.م. ۱) درکه، چم، چل، فریب؛ ۲) الویه څڅه، غتېه څښې، چمچه.

**دوکه مار** (dok amār) ص. نر.م. دوکه باز، چمباز، درغلی، تېرایستونکی.

**دوګره** (dugrá) ص. تب. بې پېسې، غریب، خوار؛ ۲) دوګره مست، د بدې لارې ملګری، بېباکه.

**دوګره ګي** (dugragí) ښځ.م. بېباکي، بې حیايي، بې شرمي.

**دوګره مست** (dogramást) ص. نر.م. دوګره، بېباکه، د بدې لارې ملګری.

**دوګل** (dugál) نر.م. ۱) دېګله، دوګله، دمسرغانو جاله، ځالګې، ځاله؛ ۲) دقیت، خپګان.

**دوګلاند** (dugland) نر.م. هغه آس چې په تریکو نحې.

**دوګم** (dūgam) نر.م. دګم، دګسم، جزم، جزميت وګ. داګما.

**دوګول** (dūgawə́l) مص. مت. ترټل، پېرول، وېرول، ملامتول، پرول، تویېخول، دګل.

**دوګي** (dūgí) ص. نر.م. وګ. داګي.

**دول**[۱] (dol) نر.م. ۱) زمونږ دکلیوالي موسیقۍ د آلو څخه یوه آله ده؛ ۲) سلواغه؛ ۳) د ژرندې تخت، د ژرندې د غله اچولو برخه.

**دول**[۲] (dawl) نر.م ۱) طریقه، روش، سبک، رنګ، شکل، بڼه؛ ۲) من. وګ. جنس؛ ۳) من. وګ. نوع؛ ۴) فېشن، سینګار؛ ۵) دارت یو دول آله ده چې سورې سورې وي.

**دول**[۳] (dūl) نر.م. کرار کرار او دروند تګ.

**دولاډنګه** (dulādúnga) ښځ.م ۱) غرم غرمباګ، د ماشومانو استسقا؛ ۲) زنیل او چتې سړی.

**دولبره** (dolbará) ښځ.م. د ژرندې هغه برخه چې دانې ژرندې ته ورتویېږي.

**دول تکور** (dawaltakór) نر.م. وګ. دولدیل.

**دولچه** (dolčá) ښځ.م ۱) دوله، تملوت؛ ۲) یوګه، د څا سلواغه.

**دولچي** (dolčí) ص. نر.م. دول وهونکی، دولزن، غازي، دولکی.

**دول دال** (dawldál) نر.م. وګ. دولدېل.

**دول دبلي** (doldabaláy) نر.م. د کور سامان، اثاث البیت، اثاثیه.

**دول دنګول** (doldangawə́l) مص. مت. دول وهل، دول دریول، دول وغول.

**ډول ډيل** (ḍawlḍíl) نر.م. ډول ډال، سينګار، سينګارونه، آرايش، ښکلنه.

**ډولک** (ḍolák) نر.م. ډوبمک، ډومبکی، ډولکی، ډولګی، وړوکی ډول، کوچينی ډول.

**ډولکی** (ḍolakáy) نر.م. ۱) وګ. ډولک؛ ۲) کوتی قطي؛ ۳) هغه څه چې د لمر يا اور په وسيله سره وچ کلک شي.

**ډولکي** (ḍolakí) ص. نر.م. ډولزن، ډولچي، ډول وهونکی.

**ډولکی** (ḍawlakáy) ص. نر.م. فيشني، ډولي.

**ډولول** (ḍulawál) مص. مت. ورو ورو ببول، ورو ورو شړل يا کتول، کرار کرار څغلول.

**ډوله** (ḍolá) ښځ.م. ۱) ډولچه؛ ۲) ژور سنډل شوی ژور ځای چې اوبه په کې ساتل کړ.

**ډولي** (ḍawaláy) نر.م. مال، دولت، ثروت، شته.

**ډولي** (ḍawlí) ص. نر.م. فيشني، سينګاري.

**ډولۍ** (ḍoláy) ښځ.م. د ناوي جوپان، د ناوي کجاوه، د ناوي حجله.

**ډولېدل** (ḍūledél) مص. ل. ورو ورو تلل، کرار کرار رهي کېدل، سوکه سوکه کېدل.

**ډولۍ مار** (ḍoláymār) نر.م. جوپان والا، ډولۍ والا، هغه څوک چې ډولۍ وړي.

**ډومارل** (ḍumārál) مص. مت ۱) ګومارل، پارول، لمسول، چمتو کول؛ ۲) سترګې کښته اچول.

**ډومبخه** (ḍumbáxa) ښځ.م. کوبی، داوبو پوکانه، د اوبو په سر غوټۍ، پوصپی.

**ډومبسکه** (ḍumbúska) ښځ.م. ډډه شمکه، هغه شکل چې يوه شمکه يې د مرغيږيو د راټولېدو په وخت کې غوره کوي (ډډه کېږي).

**ډومبکه** (ḍumbáka) ښځ.م. ډومبک، ډومبکی، تور دلی، يو ډول سپيره (خړه) وړه مرغۍ ده.

**ډومبکی** (ḍumbákay) نر.م. ۱) وګ. ډولک؛ ۲) د ماشومانو وړوکی دريه يا ډول دی؛ ۳) يوې توري ترخې مادې دی چې د غومبسو په توبکي کې پيدا کېږي.

**ډومبوری** (ḍumbūráy) نر.م. دمبوری، دبران، ډبری، کوږه، د سری (انبارو) او خوشيو کوټه.

**ډومبک** (ḍumbék) نر.م. يو ډول مرغۍ ده.

**ډومډومک** (ḍumḍumák) نر.م. يو ډول کوچنۍ مرغۍ ده چې توري ښکې لري.

**ډونډ**[1] (ḍūnd) ص. نر.م. ۱) تباه، برباد؛ ۲) بيخ، سته؛ ۳) لټون، لټونه، پته، تلاش، څرګندونه.

**ډونډ**[2] (ḍond) نر.م. ډنډوره، نغاره، چار.

**ډونډاکی** (ḍūndakáy) نر.م. د کوناټي هډوکی، د ورانه د بيخ هډوکی، د ګردي هډوکی.

**ډونکی** (ḍūnkáy) نر.م. د خاورو غوړ څرلو يوه اوسپنيزه آله.

**ډونګ** (ḍong) نر.م. ۱) چپاول، لوټ، چور، د خارو يو چور؛ ۲) غرور، تکبر؛ ۳) تمسخر، پيشاره.

**ډونګ ډونګ** (ḍūngḍúng) نر.م. برپيره، غر غر، غرږی، زونګ زونګ.

**ډونګری** (ḍūngráy) ښځ.م. ۱) لوبه شمشی، لوبه شمشه؛ ۲) ډونګری، بېک، ښه، تامبری جينګاوړ، د کنټي ببلچه، پارو.

**ډونګله** (ḍūnglá) ښځ.م. ډينګری، ډنګله، د شاه ځخه د اوبو ويستلو يوه آله ده.

**ډونګن** (ḍūngán) ص. نر.م. منګن، زونګ، غرتېزن، څوک چې په پزه کې خبري کوي.

**ډونګه** (ḍóngu) ښځ.م. ۱) ډينګاله، د کوناټو او ملا تر منځ برخه؛ ۲) توکه، تکاله؛ ۳) ډينګله، د چرګ شاتنۍ برخه.

**ډونګهار** (dūngahā́r) نر.ج. ۱) غرورهار، غورنهار، بورنهار؛ ۲) زونګ زونګ کول، غر غر کول.

**ډونګی** (dongáy) اص. نر.م ۱) توکی، مسخراچي، ۲) داکه منر، داره مار؛ ۳) ژور، عمیق؛ ۴) اراز داره، راز ساتونکی.

**ډونګېدل** (dūngedә́l) امص. ل. بونګېدل، منګېدل، زونګېدل؛ د څاڼه سره داسې پرغېدل چې شوک سم نه پرې پوهېږي.

**ډوو** (ḍawū́) ص. نر.م. ترو، پرو، تیزن، ترن.

**ډوول** (ḍawū́l) نر.م. سګ ماهي، مسینګی، کته سپری.

**ډوه** (ḍuwá) ښځ.م. دالی، تحفه، سوغات.

**ډوهر** (ḍohár) ص. نر.م. دوقر، دوغر، ګویا، زهیر او ډېر کمزوری سړی.

**ډوی** (ḍoy) نر.م. باک، پروا، آر.

**ډوهکه** (ḍuhákә) ص. ښځ.م. لس ګون، لسېز.

**ډی** (ḍay) نر.م. ۱) د تنستې هغه لرګی چې د دوو دوبناخو په سر ایښودل شوی وي؛ ۲) تیندی، کوندی، کچی، چلی.

**ډی** (ḍay) ښځ.م. ۱) وګ. ونده کیلک؛ ۲) وورې، د نوي تغرو هغو اضافه څنو چې د کار په پای کې پرې کېږي.

**ډیابېټ** (diyābít) نر.م. وګ. شکره.

**ډیاکروني** (diyākroní) نر.م. د کلیمو تحلیل او د هغو د منشأ او ریښې پیدا کونه.

**ډیالوګ** (diyālóg) نر.م. دیالوګ، دایلاګ، مکالمه، مباحثه، صحبت.

**ډیبک** (ḍibák) نر.م ۱) د سیند د غاړې او چترالی؛ ۲) ډیبو؛ ۳) مج. خورا ډنګر سړی.

**ډیبو** (ḍibó) ښځ.م. ډیبک، تیمبو، یو ډول سارایي روه مرغی ده..

**ډیبي** (ḍibúy) ښځ.م. لوبنی، خومبری، غرالرشی؛ خاورین لوښی دی چې غوا په کې لوشل کېږي.

**ډیپا** (depā́) ص. نر.م. ملازم، شاطر، نوکر..

**ډیپارتمنټ** (dipārtmә́nt) نر.م. ډیپارتمنټ، دیپارتمنت؛ ۱) څانګه، شعبه، دایره، برخه؛ ۲) اداري تشکیلات؛ ۳) وزارت؛ ۴) ایالت.

**ډیپلوم** (diplóm) نر.م. ډیپلومه، ډیپلومه، دپلوم؛ د لوړو تحصیلاتو بري لیک، شهادتنامه، علمي بریالیتوب سند.

**ډیپلومات** (diplomā́t) نر.م. ډیپلومات، دپلومات؛ ۱) سیاسي نماینده، د سیاسي نمایندګۍ غړی؛ ۲) سیاست پوه، سیاستمدار.

**ډیپلوماتیک** (diplomātík) ص. نر.م.ج. ۱) دپلوماتیک، ډیپلوماتیک، په ډیپلوماسي اړوند؛ ۲) هوښیار، ځیرک، درایت لرونکی.

**ډیپلوماسي** (diplomāsí) ښځ.م. دپلوماسي؛ ۱) سیاست؛ ۲) درایت، هوښیاري، ځیرکتیا.

**ډیپو** (dipú) ښځ.م. ګدام، تحویلخانه، زېرمه تون.

**ډیچ** (ḍič) نر.م. سامانه، غوره، پرتم، شان، شوکت.

**ډیچه** (ḍičá) ښځ.م. مست تورپونه خرتزی.

**ډیدنډی** (ḍiḍanḍáy) ښځ.م. د ګیند یوه لوبه ده.

**ډیډا** (ḍiḍā́) ص. نر.م. چارو کیښ، چارو کوونکی.

**ډیډانه** (ḍiḍā́na) ص. نر.م. ربیځ وهنه، ربیځ وهل.

**ډیډم** (ḍiḍám) نر.م. ډډم، یو ډول والبه دي.

**ډیډه** (ḍiḍá) ښځ.م. هغه لرګی او تو کړ چې د هغو په واسطه دژرندې د محور میخ پرې ټینګوي؛ ۲) دزې؛ ۳) خولپوتی؛ ۴) د چیلم د دروېږ هغه لته یې ګنده چې د چیلم خوله وربانده پټوي؛ ۵) کېره، کېږی.؛ ۶) سته، بېخ، اساس.

**ډیډه** (ḍiḍá) ص. نر.م. ۱) ډېر موړ، ترپړه مړه؛ ۲) مړ... قانع؛ ۳) داده، مطمئن.

ډېدې (ḍédé) ښځ.ج. ۱) د ښوروونو يو ډول والې؛ ۲) د ډېکو پرله پسې پاړونه او ډزونه.

ډېر (ḍer) ص. نر.ج. زيات، پرېمانه، کوټه.

ډېرارخيز (ḍeraṛxíz) ص. څو اړخيز، څو جانبه، څو بُعدي.

ډېرارخيزروستاړی (ḍeraṛxízrústáṛay) (گر.) ډېر چاري يا گڼ چاري وروستاړی.

ډېران (ḍerán) نر.م. ۱) ډمبوری، د سرې د اچولو ځای؛ ۲) د حيض يا کولو توکر؛ ۳) مج. انبار.

ډېرپاځی (ḍerpáźay) ص. څو پاځی، گڼ پېشه، گڼ کاري.

ډېرپورې ژبه (ḍerpóreźə́ba) گر. کېوله ژبه.

ډېرپوريز (ḍerporíz) ص. څو پوريز، څوچته.

ډېرپېښنی (ḍerpéṣ́ay) ص. ډېر پېښېدونکی، زيات واقع کېدونکی.

ډېرترډېره (ḍertarḍéra) ص. ډېر زيات، بېخي زيات، خورا زيات، تر اعظمي حده.

ډېرجوليز (ḍerjawlíz) ص. څو جوليز، څو شکلي، څوبني.

ډېرځله (ḍerźə́la) ق. ډېر وخت، اکثرا، زياتره.

ډېرڅانگيز (ḍercāngíz) ص. ډېر څانگې، څو شعبه يي، څو رشته يي، څو مسلکي.

ډېرڅپيز (ḍercapíz) گر. څو څپيز، څو هجايي، څو سېلابه.

ډېرڅښتني (ḍercaṣ́tánay) ص. پر څو خدايانو گروهن، مشرک.

ډېرخنډ (ḍercánḍ) ص. څوخنډي، څو څنډی، څو څنډيز.

ډېروالی (ḍerwā́lay) نر.م. زياتوالی، زياتوب، ډېرښت، پرېمانتوب، پرېمانوالی.

ډېرزېږی (ḍerzéẓ́ay) ص. ډېرزېږوونکی.

ډېرژبی (ḍerźə́bay) ص. ډېرو ژبو پوهېدونکی.

ډېرښتي (ḍeraṣ́tí) ص. ډېر کېواله، اکثريت.

ډېرښځمنی (ḍerṣ́azmánay) ص. د ډېرو ښځو خاوند، څو ښځی.

ډېرغېږی (ḍerğéẓ́ay) ص. څو غېږی، د څو غېږونو پوښاپينه.

ډېرکلن (ḍerkalán) ص. عمرتېری، عمرخوړلی؛ بوډا.

ډېرگټی (ḍergáṭay) د توليزې گټنې (استفادې) بډ.

ډېرگړی (ḍergúṛay) (گر.) جمع، د يوگړي بډ (عکس).

ډېرگوټ (ḍergwáṭ) ص. ډېر گوټيز، ډېر څنډی.

ډېرگونديز (ḍergondíz) ص. څوگوندي، څو گونديز.

ډېرليکی (ḍerlíkay) ص. ډېر ليکونکی.

ډېرمانيز (ḍermāníz) ص. څو مانيز، څومعنايېز.

ډېرمړوښې (ḍermaṛwə́ṣe) ص. د ډېرو مړونو پښه، څو مړوښې.

ډېرمغزی (ḍermáğzay) ص. لهمانا ډک، مغزن، ماناوال، تومنوال.

ډېرموخی (ḍermóxay) ص. څو موخي، څو ډېر مقصدی.

ډېرمېشتی (ḍerméṣ́tay) ص. گڼ مېشتی، گڼ نفوسه (ښار يا ټولنه).

ډېرودون (ḍerwadún) ډېرښځمني، د زوجاتو تعدد.

ډېرول (ḍerawúl) مص. مت. زياتول، پرېمانه کول.

ډېرولسي (ḍerwalasí) ص. گڼ ولسي، ډېر ملتي، څو مليتي.

**ډېرۍ** (deráy) ص. نر. ج. ډېر، خورا زیات، زښت.

**ډېرۍ** (deráy) ښځ. م. ۱) وړوکی ختې، کوټه، توپی؛ ۲) د غلې ګدام، ژېرمه تون.

**ډېرېدل** (deredál) مص. ل. زیاتېدل، پرېمانه کېدل، ازدیاد موندل.

**ډیزاین** (dizáyn) نر. م. ۱) طرح، سکیچ، خاکه، پلان، د یوه شي ابتدایي یا مقدماتي سکیچ؛ ۲) پلان، سکیم، پروژه.

**ډیس؛** (dis) ص. نر. م. ۱) ډېر مور؛ ۲) د جوارو غټه دوډۍ؛ ۳) کوټک، ډبې؛ ٤) چاغ، پرسېدلی.

**ډیسنتري** (disantrí) ښځ. م. ډیزانتري، دیسانتري خوني اسهال، پېچ، پېچش، د کولمو ناروغي.

**ډیسه** (desá) ښځ. م. ۱) پاتته، ډبکه، د جماع په وخت کې مخصوص حرکت؛ ۲) دوکه.

**ډیسي** (desé) ښځ. ج. سېتي، د جوارو ډوډۍ.

**ډیش** (dish) نر. م. (تن.) دش، ډش، ډېش، بېلتي، کش، خطک، فاصله.

**ډیفتانګ** (diftáng) نر. م. دفتانګ، ډیفتونګ، مرکب مصوت، هغه غږیز ترکیب دی چې د دوو غږیزو فونیمو څخه لاس ته راځي.

**ډیفتري** (diftari) ښځ. م. و ګ. خناق.

**ډیک** (dik) نر. م. چتکی، چتی، پتکی، چتر، یوه وره، خړه او سرګردانه مرغۍ دی.

**ډیکبند** (dikbánd) نر. م. مرغومکه، د یوې لوبې نوم دی.

**ډېکټې** (dekté) ښځ. م. ډېکتې، ډیکته، په لوړ اواز ویل، املا؛ ۲) امر کول.

**ډیکشنري** (dikshanarí) ښځ. م. ډېکشنري، دکشنري قاموس، فرهنګ، د لغاتو کتاب، سېند.

**ډیکلیمه** (diklimá) ښځ. م. ډېکلیمې، دکلمه؛ ۱) په فصاحت ویل؛ ۲) قرائت.

**ډیکوریشن** (dikurešǝn) نر. م. ډیکور، ډکور، ۱) تزئین، اوډنه؛ ۲) زینت، زېور؛ ۳) پرده.

**ډیګ** (dig) نر. م. و ګ. د آس په ډګ ډګو تګ.

**ډیګ ډیګو** (digdigó) ښځ. م. د آس ناهمواره او په ډنګ ډګو تګ.

**ډیګلن** (diglán) ص. نر. م. و ګ. ډوبلن.

**ډیګله** (diglá) ښځ. م. و ګ. ډوبله.

**ډیل** (dil) نر. م. ۱) ټال، څنډ، معطلي، ایسارتیا؛ ۲) دبدبه، پرتم، شان او شوکت.

**ډیل ډول** (dildáwl) نر. م. سینګار، درشن، فېشن.

**ډیلکو** (dilkó) ښځ. م. په موټر کې د یوې آلې نوم دی چې دنده یې د برېښنا وېشنه ده.

**ډیلو** (dilaw) نر. م. څنډ، درنګ، ډیل، معطلي، ایسار.

**ډیل و ډال** (diludál) نر. م. پرتم، شان او شوکت.

**ډیلول** (dilawál) مص. مت. څنډول، معطلول، ایسارول، ټالول.

**ډیله** (díla) ښځ. م. ډیلکی، یوه ډېره نازکه ګیاه ده چې په جبه زاره څمکه کې راشنه کېږي.

**ډیلېدل** (diledál) مص. ل. ټالېدل، څنډېدل، معطلېدل، ایسارېدل.

**ډیمبه** (dimbá) ښځ. م. یو ډول لرګی (یا کړی) دی چې په هغه باندې د کبېتې بېلچه یا جاله تړي.

**ډیموتیک** (dimotík) ص. نر. م. دمتیک، د لرغوني مصر یو ډول ساده لیک و.

**ډېموګرافي** (demugrāfí) ښځ. م. ډېموګرافي، دموګرافي، د احصائیې د علم یوه څانګه ده.

**ډینبک** (dinbák) نر. م. و ګ. ډبو.

**ډیناپ** (dindáp) نر. م. نداپ، نداف، ډانپسي.

**ډینګه** (dingá) ص. نب. د لارې ملګرې، لاره هودونکی ملګری.

**ډېنګ** (deng) نر.م. دنګ، د اوبو يو ډول مرغه دی چې مټوکه او پښې يې اوږدې وي.

**ډينګ** (ding) نر.م. ۱) د اوبو يو غټ مارغه دی؛ ۲) تالاو، ډنډ؛ ۳) مج. جګ، اوچت (سړی)؛ ٤) ص. نر.م. لاپې، ګرتو.

**ډينګار** (dingár) نر.م. غوري، باټې، لاپې شاپې.

**ډينګاز** (dingáz) ص. نر.م. ډېر دنګر، وچ کلک. دنګر، ډېر خوار.

**ډينګ ډينګو** (dingdingó) ص. نر.م. ۱) خراب تراب (کار)؛ ۲) نا آرامه او ناهموار تګ.

**ډينګرۍ** (dingráy) ښځ.م. ۱) پوڅکی، ګوڅی، مرخړی، ستوری، ګربلکه؛ ۲) و ګ. ډينګلۍ؛ ۳) د جالې پارو، خوی؛ ٤) ډېلی، دنداپ لرګی؛ دلوخې د تکولو لرګی.

**ډينګله** (dinglá) ښځ.م. ۱) پانته، هغه حرکت چې سپی يې د سپي سر د يو ځای کېدو په وخت کې کوي؛ ۲) لړزه، لرزه، رپا، ترپدنه.

**ډينګلۍ** (dingláy) ښځ.م. و ګ. دونګله.

**ډينوسور** (denəwór) نر.م. (ل. پ.) ديناسور، د مېسوزويک د دورې د خزندو هر ګروپ چې نن منقرض يا معدوم دی.

**ډېنی** (denáy) نر.م. کاکيشکی يو ډول لوبه ده.

**ډېوالي** (dewāli) ص. نب. دېوالي، مفلس، هغه شتمن چې شته يې له لاسه وتلي وي.

**ډيوټ** (diwát) نر.م. ۱) د ډېرې د اېښودلو آله؛ ۲) مو. و ګ. ډېوټ.

**ډېوډ** (dewád) نر.م. ۱) يو ډول خوشبويه شمع ده؛ ۲) له خټو جوړ څراغ؛ ۳) يو ډول والی، يو راز لښتی (غوروالی) ده.

**ډېوډۍ** (dewdáy) ښځ.م. ۱) دالان، سروپ، سرپوښلې لاره؛ ۲) د کتارو د سر ګانګوره.

**ډيو ډيو** (diwdíw) نر.م. د غوايي د جنسي تحريک اواز؛ دا کليمه هغه وخت کاريږي چې څوک غويی په غوا باندې د ختلو لپاره تحريکوي.

**ډيو ډيوکه** (diwdiwáka) نر.م. ډيو غوندې يو ډول خړه مرغۍ ده.

**ډيولا** (diwlá) نر.م. سګ ماهي، کټه سپړی.

**ډيوه** (diwá) ښځ.م. څراغ، چراغ، د تېلو څراغ، يوه آله ده چې د تياري د رڼا کولو کار ځنې اخلي.

**ډيوه خولی** (diwaxūláy) ص. نر.م. ۱) جېنګ خولی؛ ۲) هغه څوک چې بدرنګه خوله ولري.

**ډيوه وال** (diwa wál) ص. بلېدونکی، مشالوال.

**ډيويز** (diwíz) ص. نر.م. روښان، رون، رڼ.

**ډيوېژن** (diwižan) نر.م. ډيوېزيون، فرقه، لښکر، هغه لښکر چې درې کنډکه وي.

**ډيه** (diyá) ښځ.م. ډبه، صفه، د کلي د خلکو د ناستې ځای.

# ذ

**ذ** (zāl) نر.م د پښتو الفبې ۲۸م توری دی. د جمل په حساب د ۷۰۰ په مانا دی او په ابجد کې ۲۵ توری ګڼل کېږي.

**ذات** (zāt) نر.م. ۱) جوهر، خاصیت؛ ۲) حقیقت؛ ۳) اصل، منشا، ذات؛ ۴) خاوند؛ ۵) ع. وجود.

**ذات البروج** (zātulburūj) نر.م. په استورو کې اتم اسمان.

**ذات البیني** (zātulbaynī) ص. نب. خپلمنځي، په خپل منځ کې، هغه څه چې د څو تنو تر منځ وي.

**ذات الریه** (zāturriya) ښځ.م. سکاروی، سینه و بغل، پنوموني، یوه ناروغتیا ده.

**ذاتي** (zātī) ص. نب. ۱) اصلي، فطري، طبیعي، خاص، خدایي، د ذات، د ماهیت، د حقیقت؛ ۲) د ځه اصل، د ځه ذات، اصل، اصله

**ذاتیه** (zātiyā) ښځ.م. ۱) شخص، شخصیت؛ ۲) فل. د ذهن اصالت (سبجکتیویزم).

**ذاکر** (zākir) فا. نر.م ۱) یادوونکی، ذکر کوونکی، ستاینکی؛ ۲) ع. خدای ستاینکی.

**ذاکره** (zākira) ښځ.م. یاد، حافظه، د حافظې قوه، هغه قوه چې په ذهن کې موضوعات ساتي.

**ذال** (zāl) نر.م. د «ذ» توري تلفظ.

**ذایقه** (zāyiqa) ښځ.م. خوند، مزه، څکه، یو حس دی چې آله یې ژبه ده

**ذبح** (zabh) ښځ.م. بزل، حلالول، سر پرېکول، کوتل کوتل

**ذبیح** (zabīh) ص نر.م ۱) حلال شوی، ذبح شوی، کوتلی، کوتلی؛ ۲) د اسماعیل علیه السلام لقب

**ذخیره** (zaxīra) ښځ.م (ج. ذخیرې، ذخایر) ګودام، انبار، پاسره؛ وګ زېرمه.

**ذراع** (zirā) نر.م. لېچ، لښتې، د څنګلې له سر نه د لاس د منځنۍ ګوتې تر څوکې پورې اندازه.

**ذرع** (zár) عربي.م. د ذراع په وسیله اندازه کول، ګزول.

**ذروي** (zarawí) ص. نب. په ذرې پورې اړوند، اټومي، د اتم.

**ذره** (zará) عربي.م (ج. ذرات، ذرې) ډېر کوچنی توکی؛ تر ټولو وړه توټه، ریچه وړانګه، پلوشه، اتوم.

**ذره بین** (zarabín) نر.م. ۱) هغې کوچنۍ عدسې چې ډېر وړه وړه شیان ورپسې لیدل کیږي؛ ۲) مایکروسکوپ.

**ذریعه** (zari'á) عربي.م. وسیله، وزله، چاره، واسطه.

**ذکاء** (zaká) عربي.م. هوښ، ځیرکي، غوره، زیلو، ذکاوت، پوهه.

**ذکر¹** (zikár) نر.م. ۱) یادونه، بیان، څرګندونه؛ ۲) دعا، ثنا؛ ۳) المونځ؛ ۴) ورد.

**ذکر²** (zakár) نر.م. ۱) وګه، د نارینه زیږوني (تناسلي) آلت؛ ۲) نر، د ښځې مقابل.

**ذکي** (zakí) ص. نب. ځیرک، تېرفکره، هوښیار، استعداد لرونکی، زیاري، د ذکاوت خاوند.

**ذل** (zil) نر.م. نرمي.

**ذلالت** (zalālát) نر.م. خوارېدل، خوارېدنه، ذلیلېدل، ذلیلېدنه.

**ذلت** (zillát) نر.م. خواري، ذلیل توب؛ خوارېدنه.

**ذلیل** (zalíl) ص. نر.م. خوار، لوېدلی، بې عزته.

**ذلیلتوب** (zaliltób) نر.م. خوارتوب، خواري، لوېدنه، ټیټېدنه، ذلیلېدنه.

**ذلیلول** (zalīlawúl) مص. مت. خوارول، ښکته غورځول، ټیټول، ځپل.

**ذلیلېدل** (zalīledál) مص. ل. خوارېدل، سپکېدل.

**ذم** (zam) نر.م. د مدحې خلاف، غندنه، غندل.

**ذمه** (zimá) عربي.م ۱) په غاړه فرض، په غاړه، ولکه؛ ۲) امانت؛ ۳) عهده؛ ۴) پیمان؛ ۵) ژمنه، قول.

**ذمه وار** (zimawār) ص. نر.م. ج. مسوول، په غاړه فرض ګڼونکی، په عهده منونکی.

**ذمه واري** (zimawārí) عربي.م. ضمانت، په عهده منته، تېر ورته وهنه.

**ذمي** (zimí) ص. نب. هغه څوک چې د چا پر ذمه وي.

**ذوالجلال** (zoljalāl) نر.م. د پرتم څښتن، د جاه و جلال خاوند، د لويي څښتن.

**ذوالقافیتین** (zolqāfiyatáyn) ص. نر.م. ج. تشریع، هغه نظم چې دوې قافیې په کې خوا په خوا راشي.

**ذوالقرنین** (zolqarnáyn) ص. نر.م. ۱) د دوو ښکرو خاوند؛ ۲) د سلطان سکندر پر صفت دی.

**ذوب** (zawb) نر.م. ۱) ویلونه، اوبه کونګ، اوبونه؛ ۲) سره ایله کېدنه.

**ذوبان** (zawbān) نر.م. ویلېدنه، اوبه کېدنه، سره ایله کېدنه.

**ذوبحرین** (zo bahráyn) ص. نر.م. ج. (بد.) ذوالوزنین، ملون، هغه شعر چې د عروضي بحرو په دوو بحرو کې ویل کېدای شي.

**ذوجنسین** (zojinsáyn) ص. نر.ج. هغه ګلان چې نرینه او ښځینه تخمونه لري.

**ذوحیاتین** (zohayātáyn) ص. نر.ج. (زو.) دوه ژوندي، ذومعیشتین، هغه ژوي چې په اوبو او وچه دواړو ژوند کولای شي.

**ذوق** (zawq) نر.م. ۱) شکنه، شکل؛ ۲) طبع، تره، سلیقه، خوښه، شوق؛ ۳) خوښي، نشاط.

**ذوقمن** (zawqmán) ص. نر.م. ذوقي، شوقمن، د ذوق او سلیقې خاوند.

**ذولسانین** (zolisānáyn) ص. نر.م. ج. (بد.) ذوالفنین، ملمع، هغه شعر ته وایي چې په دوو ژبو ویل شي.

**ذووجهین** ( zuwajhayn ) ص. نر.م. (بد.) ابهام، صفه ادبي صنعت چې د يوه نظم يا نثر په کليمو کې د دوو متقابلو مانا گانو احتمال موجود وي.

**ذهن** ( zehn ) نر.م. (ج. ذهنونه، اذهان) ۱) فهم، درک، فکر؛ ۲) عقل، هوښيارتيا، خوره، خره.

**ذهني** ( zehní ) ص. نب. د ذهن، د فکر، د عقل، فکري، عقلي، د فهم.

**ذهنيت** ( zehniyát ) نر.م. فکر، نظر، عقيده، د تفکر طرز.

**ذهول** ( zuhúl ) نر.م. هېره، غفلت. له ياده وتنه. ع. له څانه بې خبري يا غفلت.

**ذهين** ( zahín ) ص. نر.م. تېز رک، خوږ، ذکي، هوښيار، زيارسی، فهيم.

**ذيحق** ( zihaq ) ص. نر.م. د حق خاوند، مستحق، حق لرونکی.

**ذيروح** ( zirúh ) ص. نر.م. ج. ساکښ، د لرواخلوند روح لرونکی.



**ر(ra)** نبخ.م. د پښتو الفبې اوولسم توری دی، د جمل په حساب د ۲۰۰ عدد ښيي.

**را(rā)** مغ. ۱) د فعلونو سره د مختاري په ډول راځي او د متکلم طرف ښيي—راکړه؛ ۲) د راکړه لنډيز؛ ۳) نر.م. مو. د کومل دوهم سُر دی.

**راچول (rāčawә́l)** مص. مت ۱) راغورځول، راشړل. ۲) راټسکورول، له مقامه پرې ایستل.

**راخیستل (rāaxistә́l)** مص. مت. ۱) راپورته کول، راځګول؛ ۲) اخيستل، اخستل، رانيول؛ پوښي په بيه يا قيمت سره اخيستل.

**رااستول (rāastawә́l)** مص. مت، رالېږل، هغه څه چې د يوه ځای يا خوا له لوري رالېږل کېږي.

**رايستل (rāistә́l)** مص. مت، راباسل، راوېستل، راوباسل، رابهرته کول؛ ۲) اختراع کول.

**رايسته (rāista)** نر.م. ج. ۱) راوېسکه، رابهرته کاره؛ ۲) ق. ديخوا؛ ۲) رانيږدي، رانژدي.

**رايسته کول (rāistakawә́l)** مص. مت. ۱) راديخوا کول؛ ۲) رانيږدي کول؛ ۳) ليرې کول، برطرفه کول، له مقامه غورځول.

**رابرسېره (rābarsera)** ص.نب. رابڼکاره، ظاهر، راڅرګند..

**رابطه (rābitá)** نبخ.م. ۱) اړيکه، اړيکي، اړه؛ ۲) ګر. هغه کليمه چې مسند د مسند اليه سره مربوطوي . لکه (دی) په (دا کتاب دی) کې.

**رابلل (rābalә́l)** مص. مت، راغوښتل، رابولل، دعوتول، ځان ته راغوښتل.

**رابلنه (rābaléna)** نبخ.م. (ج. رابلنې) راغوښتنه، رادعوتونه.

**رابيا (rābyā́)** نبخ.م. د اوبو لوی مشک.

**رابېرته (rābérta)** ق. راديخوا، راد ي پلو، راايلې، راشېټه، روالي، راوروسته؛ ۲) رالېښې، راهيلي؛ ۳) راخلاصونه، بېرته کول.

**رابېل** (rābél) ص. نر.م. ج. ۱) رابهلا، راګـرځي، راالايده؛ ۲) نر.م. و ګ. رمبېل.

**راپ** (rāp) نر.م. د بنجي په څېر يو ډول نبـات دى چې ژېړ ګل کوي.

**راپاتې** (rāpāte) ص. نب. ۱) باقي، پاتې شوى، راپاته؛ ۲) بار شوى؛ ۳) ميراث.

**راپاڅول** (rāpācawə́l) مص. مت. ۱) راپاڅول، راوېښول، راپورته کول. ۲) تحريکول، لمسول.

**راپاڅېدل** (rāpācedə́l) مص. ل. ۱) راپورته کېدل، راپاڅېدل، راوېښېدل.؛ ۲) تحريکېدل، لمسېدل.

**راپدېخوا** (rāpədexwā́) ق. راهيسې، راده‌خوا، را په دې خوا، راوروسته.

**راپرځول** (rāparǰawə́l) مص. مت. و ګ. راپرزول.

**راپرزول** (rāparzawə́l) مص. مت. ۱) راغورځول، شملول، رانسکورول؛ ۲) مج. مغلوبول، ماتې ورکول.

**راپرزېدل** (rāparzedə́l) مص. ل. شملاستل، راغورځېدل، راشملاستل؛ رانسکورېدل، په څېر نيولو کې راغوزاريدل يا شملاستل.

**راپرېيستل** (rāpreyastə́l) مص. مت. راشملول، راغورځول، راپرزول، شملول، په څېر کې پر ځمکه راغوزارول يا راغورځول.

**راپسې** (rāpasé) ق. ۱) ترشا، راوروسته، راترشا، راترشې؛ ۲) تعقيب، څارنه.

**راپوټ** (rāpór) نر. ج. ۱) رپوټ، رپورټ، راپوټ، راپورټ؛ خبر، اطلاع، روايت؛ ۲) جاسوسي.

**راپورتاژ** (rāportāž) نر.م. رپورتاژ. ۱) خبريالي، پېښليک. ۲) د يوې پېښې يا چارې د جريان شرحه چې خبريال يې د ورځپاڼې، راډيو يا... له تهيه کوي.

**راپورټر** (rāportár) نر.م. ۱) رپورټر، خبريال، خبرتولوونکى، خبرنګار؛ ۲) و ګ. رپورچي.

**راپورته** (rāpúrta) ق. ۱) راڅېګ؛ ۲) تحريک شوى، لمسولى.

**راپورې** (rāpóre,i) ق. ۱) ارتې، راپاندې؛ ۲) دې خوا، دې غاړې؛ ۳) تېرل، پڼدول، تړلې؛ ۴) په ناروغۍ مبتلا، اخته، ګرفتار.

**راپورې کول** (rāporekawə́l) مص. مت. ۱) راپورې ايستل، له سيند نه راپورې پاسل؛ ۲) متکلم تورن کول؛ ۳) متکلم په ناروغۍ اخته کول؛ ۴) تړل، بندول، کلکول (د دروازې يا کړکۍ).

**راپېږدل** (rāpeṛdə́l) مص. مت. و راايستل، راتوړل

**راپېرل** (rāperə́l) مص. مت. ۱) د پوه شي رانيول، پوه شي اخيستل؛ ۲) د متکلم لپاره اندېرى او پوزې لوېدل يا جوړول.

**راپېښېدل** (rāpeṣedə́l) مص. ل ۱) راپيدا کېدل، راواقع کېدل؛ ۲) اتفاقي راتلل او مخامخ کېدل، مخې ته راتلل.

**راتب** (rātíb) ق. ۱) تل، همېشه، دايم، ثابت؛ ۲) معاش، مستمري، څېره، زيره.

**راتګ** (rātág) ف. راتلنه، دوړتګ مقابل.

**راتلل** (rātlə́l) مص. ل. راتګ کول، د تلل مقابل، د بله څايه دې خوا راتګ کول.

**راتلنه** (rātlə́na) ښـځ.م. راتګ، راتلنګ.

**راتلونکى** (rātlúnkay) فا. نر.م (ج. راتلونکي) هغه څوک چې له بله ځايه راځي يا راروان وي.

**راتلونکې** (rātlúnke) ص. راروانه زمانه، مهال، ګانده، ګاندمهال.

**راتلونى** (rātlúnay) نر.م. ۱) راتلونکى، د راتلو په حال کې؛ ۲) آينده، مستقبل.

**راتله** (rā́tla) نسر.ج. ۱)رانګ، راتلنګ؛ ۲)ف. د راته مؤنث. هغه بسفه چي په تېر وخت کي يې استمراري فعل اجرا کړی وي.

**راتويېدل** (rātoyedә́l) مص.ل. ۱) له لوړه ځايه دمنيعاتو يا پاڼراغورځېدل؛ ۲)رابهکته کېدل.

**راټول** (rāṭól) ص. نر.م.ج. غونډ، سره يو ځای، يو ځای، ګډ، ګرد، جمع.

**راټولوالی** (rāṭolwā́lay) نسر.م. راغونډوالی، رايوځای والی، ګردوالی.

**راټولول** (rāṭolawә́l) مص.مت. ۱)راغونډول، رايوځای کول، يو لاس کول.

**راټولېدل** (rāṭoledә́l) مص.ل. ۱)ټولېدل. راغونډېدل، يوه ځای ته راجمع کېدل؛ ۲)يو لاس کېدل، متحد کېدل.

**راټيټول** (rāṭiṭawә́l) مص.مت. ۱) رابهکته کول، ټيټول؛ ۲) له يو جګ مقام څخه راغورځول؛ ٤) څوک خپل ځان ته لږ ياسل يا تابع کول.

**راټيټېدل** (rāṭiṭedә́l) مص.ل ۱) رابهکته کېدل، ټيټېدل؛ ۲) له خپلي خبري تېرېدل؛ ۳) له لوړ مقام څخه راغورځېدل؛ ٤) پل چاته اړېدل.

**راج** (rāj) نر.م. ۱) حکومت، واکداري، سلطنت؛ ۲)شتمني، دارايي؛ ۳) بنا، ختګر، معمار.

**راجستر** (rājistár) نسر.م. ربجستر، راجستر: اندراج، هغه کتاب يا ليست چي نومونه، پېښي او ... په کي ثبت او درج شوي وي.

**راجع** (rā́jiʔ) ق. ۱) راګرځېدونکی؛ ۲) ورګرځونه، ورګرځېده، سننبېده؛ ۳) حواله، مخامخونه؛ ٤) په باره کي.

**راجګول** (rājogawә́l) مص.مت. ۱)رااوچتول، راپورته کول؛ ۲) په پښو درول، ۳) لکول، نېغول؛ ٤) المسول؛ ۵) راچوخول.

**راچاپېر** (rācāpér) ص. نر.م.ج. راتاو، ګرچاپېر.

**راچورلول** (rācūrlawә́l) مص.مت. راګرځول، چورلول، راڅرخول، راتاوول، راګرځول.

**راچوړول** (rācūṛawә́l) مص.مت. راټيټول، راچپه کول، مايعات راتويول.

**راچوړېدل** (rācūṛedә́l) مص.ل. راتويېدل، رابهېدل، راچپه کول.

**راځغستل** (rājәġastә́l) مص.ل. رازغستل، رامنډې کول، په منډو منډو دې خواته راتلل.

**راځغلول** (rājġalawә́l) مص.مت ۱)رازغلول، را په منډه کول؛ ۲)پسې رااخيستل.

**راڅخه** (rācáxa) راسره، راشکه، راسکه.

**راڅکل** (rāckә́l) مص.مت. راڅکول، څکول، راکشول، يو شی خپلي خواته رابهکل.

**راڅکول** (rāckawә́l) مص.مت. راڅکل، ځان خواته راکش کول، راکېل، روبښول.

**راڅکونی** (rāckúnay) نر... ۱) جلبوونکی اکوری؛ ۲) راکشوونکی؛ ۳)اختضفوونکی، تېښتوونکی؛ ٤)راځلبېدونکی.

**راڅکېدل** (rāckedә́l) مص.ل. ۱)راکشېدل، په څمکه راکش کېدل؛ ۲)راخوځېدل.

**راحت** (rāhát) نسر... ارامي، ارام، هوسايي، اسودګي، استراحت.

**راخبرول** (rāxabrawә́l) مص.مت. ۱)رابلل، په خبرو يا اطلاع سره د متکلم پلو ته راغوښتل؛ ۲)رااستول؛ ۳) پوهول، او پېدارول.

**راخبرېدل** (rāxabredә́l) مص.ل. ۱)رابلل کېدل، اطلاع وروسېدل؛ ۲)رااستېدل؛ ۳)پوهېدل.

**راخپرول** (rāxparawә́l) مص.مت. ۱)رانشرول، خورول، خپورول؛ ۲)تيتول؛ ۳)راشيل؛ ٤)شيندل کېدل

**راختل** ( rāxatə́l ) مص. ل ۱) راولاړېدل، رابېکاره کېدل؛ ۲) له پاسه ودرېدل، وربانديې درېدل.

**راخلاصول** ( rāxlāsawə́l ) مص. مت. ۱) خوشې کول، راپرېښودل؛ ۲) بېرته کول، پرانستل.

**راخلاصېدل** ( rāxlāsedə́l ) ۱) خلاصېدل، خوشې کېدل، پرېښودل؛ ۲) بېرته کېدل، وازېدل.

**راخورول** ( rāxwarawə́l ) مص. مت. ۱) تيتول، خپرول، خورول؛ ۲) غورول، اوارول.

**راخورېدل** ( rāxworedə́l ) مص. ل. ۱) تيتېدل، خپرېدل، خورېدل؛ ۲) غورېدل، اوارېدل.

**راخېژول** ( rāxežawə́l ) مص. مت. ۱) راپورته کول براجګول؛ ۲) راسپرول، سورول.

**رادار** ( rādā́r ) نر.م. ۱) د الکترانيکو څپو سره د فلزي شيانو د فاصلې د ټاکلو آله؛ ۲) ص. نر. م. ج. رادلره، ليکې ليکې، خط خط.

**رادرومل** ( radrumə́l ) مص.ل. ۱) رامنډې کول، راتلل؛ ۲) دې خواته راتلل.

**رادمخه** ( rādamúxa ) ق. رامخکې، په مخکې.

**رادو** ( rādaw ) ف. راغفله، رامنډه کړه، راشه.

**راده** ( rāda ) ښځ.م. ۱) هغه عمودي يا افقي يا قوسي اوږد خط چې په صيقل شوي فلز کې د رڼا په وسيله ليدل کېږي؛ ۲) رنګه کرښه، رنګه خط؛ ۳) ص. نب. پټې پټې اس؛ ٤) نر.م. رود، سيند

**رادې پلو** ( rādépalaw ) ق. راديخوا، دې خواته، دې څنګ ته، رادې لورې ته.

**راديو** ( rādiyo ) ښځ.م. (ج. راديوګانې، راديووې) راډيو، ريډيو؛ رسپور، اخيستونکې دستګاه، هغه برقي آله چې د استوونکې دستګاه څخه خپلې څپې اخلي او هغه په اواز تبديلوي.

**رارسول** ( rārasawə́l ) مص. مت. ۱) رسول، له بل ځای څخه دې ځای ته راوړل، را انتقالول؛ ۲) واردول، له سرحده راتېرول.

**رارسېدل** ( rārasedə́l ) مص. ل. ۱) رسېدل، له بله ځايه راتلل؛ راواردېدل، را انتقالېدل.

**راړه** ( rāṛá ) ښځ.م. ۱) ګيولهٔ ورۍ، ګيوه ورۍ؛ ۲) نر.م. غوخه، برووه، يو ډول زهر لرونکې خزنده ده چې په برو کې پيدا کېږي.

**راز** ( rāz ) نر.م. ۱) سر، پټه خبره؛ ۲) يو ډول نبات دی چې اړې ارې پاڼې لري؛ ۳) اد. ۱) قسم، ډول؛ ۲) غونډې په شان.

**رازدار** ( rāzdā́r ) ص. نر.م. راز ساتونکی.

**رازق** ( rāzíq ) ص. نر.م. رزق رسوونکی، روزي رسان، د لوی څښتن جل جلاله يو صفت دی.

**رازل** ( rāzə́l ) مص. مت. ۱) دولې کول، سېنګارول؛ ۲) عزت کول، درناوي کول، لمانځل.

**رازلی** ( rāzə́lay ) مف. نر.م ۱) دولې شوی، سېنګار شوی؛ ۲) عزت ور کول شوی.

**رازونياز** ( rāzunyā́z ) نر.م. د زړه خواله، مينې او ناز خبرې، د سر خبرې، د عجز عبادت.

**راژوندی** ( rāžwandáy ) ص. نر.م (ج. راژوندیها) ۱) بېرته ژوندی شوی؛ ۲) راژوبنی.

**رأس** ( rās ) ق. ۱) سر، د يوه شي لوړنی برخه ۲) د قوم مشر، لاربنود سرکښی؛ ۳) د څاروی د شمېر سره هم ويل کېږي.

**راساً** ( rāsán ) ق. مستقيماً، نېغ په نېغه.

**راس الخط** ( rāsolxát ) نر.م. د پنځو کرښو څخه يوه کرښه ده چې د الفونو، لامونو، کاف او نورې سرونه په کې شامل دي.

**راست** ( rāst ) ص. نر.م. ۱) ښی؛ ۲) سم، نېغ؛ ۳) رښتين.

**راستکار** ( rāstkā́r ) ص. نر.م. ۱) سپين، صادق؛ ۲) امانتکار؛ ۳) راستمن.

**راستمن** (rāstmán) ص. نر.م ۱) صادق، سپین؛ ۲) امانتکار.

**راستنول** (rāstanawə́l) مص. مت. و.گ. ستنول.

**راستنېدل** (rāstanedə́l) مص. ل. و.گ. ستنېدل.

**راستون** (rāstún) ص. نر.م. (ج. راستانه) بېرته راغلی، راگرځېدلی، راغبرگ.

**راسته** (rāstá) ښځ.م. ۱) کیله، رسته، کتار، لین؛ ۲) ص. نب. ۱) ښي، د کین ضد؛ ۲) اسم، نبغ.

**راستي** (rāstí) ښځ.م. صداقت، ایمانداري.

**راسخ** (rāsíx) ص. نر.م. ثابت، کلک، استوار.

**راسره** (rāsará) راشخه، راشکه، له ما سره.

**راسن** (rāsə́n) نر.م خوری، راشن، خوراکه، اذوقه، د خوراک شیان، تایه، زوری، خوروره.

**راسه** (rā́sa) فـ. راشه، روښه، راځه، لرشه.

**راسې** (rāse) ق. راځیسي، راپه دې خوا، له هغه وخته.

**راسي** (rā́se) فـ. راشي، راځي.

**راش** (rāš) نر.م. راشه، رشه، : هغه درمند چې تیار او پاک وي او اخستلو ته آماده وي.

**راشبېل** (rāšbél) نر.م. و.گ. بډگی.

**راشتلی** (rāštaláy) نر.م. تلی، ریښتلی، د غلې هغه ناپاکه برخه چې په درمنده کې له راشي څخه پاتې کېږي.

**راشه** (rā́ša) ښځ.م. ۱) رشه، راش، ریښه، د غنمو ریشه، لرپاسه؛ ۲) فـ. راسه، راځه، لرشه.

**راشه درشه** (rāšadáša) ښځ.م ۱) سلوک، گذاره، دلرومدلر؛ ۲) تگ راتگ، تلمراتله.

**راشی** (rā́šay) نر.م. رږی، ریغ، برف کوچ، اېمال.

**راشي** (rāší) ص. نب. رشوت ورکوونکی.

**راشیتیزم** (rāšitízam) نر.م. راشېتیس، د هډوکو د نرمۍ ناروغي ده.

**راشیندل** (rāšində́l) مص. مت. راشنل، رانوستل، راتیتول، راپاشل.

**راښکل** (rāṣkə́l) مص. مت. ۱) راکښل، راکاږل؛ ۲) راوباسل؛ ۳) نر.م. یو ډول غرنی ونه ده.

**راښکو** (rāṣkó) ښځ.م. هغه آله چې فلزي سیمونه پرې نري کېږي.

**راښکوبی** (rāṣkóbay) نر.م. راکښوبی، د اوبو د راایستلو ماشین.

**راښکول** (rāṣkól) نر.م. راکول، کپر، منداوو، گاښوو، غوښوور، غابوور.

**راښکون** (rāṣkún) نر.م. راښکنه، راکاږنه، کشونه، راباسنه، راکشونگ.

**راښکه** (rā́ṣka) نر.ج. ۱) رازښکه، راوېسته، راباسه؛ ۲) ف. راښکنه، راکش کاوه، د راښکل استمراري ماضي.

**راښودل** (rāṣodə́l) مص. مت. و.گ. ښوول.

**راضي** (rāzí) ص. نب. ۱) رضا، خوښ، قانع؛ ۲) داوه، مطمئنه.

**راضي نامه** (rāzināmá) ښځ.م ۱) مراضات پانه ۲) جوړه، روغه، موافقه، خربنه.

**راغ** (rāğ) نر.م ۱) ځرځای، ورشو؛ ۲) سارا، دښته؛ ۳) د غره لمن.

**راغب** (rāğíb) ص. نر.م. مایل، غوښتونکی، هڅو، علاقمند، هڅونکی.

**راغبرگ** (rāğbárg) ق. ۱) راستون، راگرځېدلی، بیا راغلی؛ ۲) غبرگ، کټ شوی، قات شوی.

**راغبرگول** (rāğbargawə́l) مص. مت. ۱) راستنول، راگرځول؛ ۲) کټول، قاتول، غبرگول.

**راغلی** (rāğə́lay) فا. نر.م. (ج. راغلي) راغبرگ شوی، رارسېدلی، راستون شوی.

**راغورځول** (rāğurźawə́l) مص. مت. و.گ. غورځول.

**راغورځېدل** (ráğurźedəl) مص. ل. و ګ. غورځېدل.

**راغوښتل** (rāğwaṣtəl) مص. مت. رابلل، غوښتل، خپلې خواته رابلل.

**راغونډول** (rāğunḍawə́l) مص. مت. ۱) کټول؛ ۲) د ګېو خلکو، رمو او ... غونډېدو داسې حالت چې څنګ په څنګ وي او حرکت ورکړی شي.

**راغونډېدل** (rāğunḍedə́l) مص. ل. ۱) کټېدل؛ ۲) خړغېدل، زومبېدل.

**راغونډه** (rāğunḍá) ص. نر.م. ج. ۱) راپنډ، راټول، غونډ، يو ځای؛ ۲) ګرد، ګردي، ګردی.

**راغه** (rāğá) نر.ج. ۱) د غره لمن، د غره غاړه؛ ۲) سارا، رغه، صحرا، دښت، داګ.

**راغي** (rāğay) فا. نر.م. و ګ. راغلی.

**رافض** (rāfiz) نر.م. (ج. رافضه) پرېښودونکی، ترک کوونکی، له لارې اوښتونکی.

**رافع** (rāfi') نر.م ۱) اړمې، لوړ؛ ۲) رفع کوونکی، لېرې کوونکی؛ ۳) عارض.

**راقم الحروف** (rāqimulhurūf) نر.م. ۱) رقم، ليکونکی، کښونکی؛ ۲) دخطاطۍ د يوې قطعې يا کوم کتاب لاس ليکوونکی.

**راقي** (rāqi) نر.م. عقيق، قيمتي غمی، راکي.

**راک** (rāk) نر.م. راګ، له ښتيو څخه جوړ شوی پتلون ډوله لباس چې دښرې په ښهرزېږي وي او د پرتوګ کار ترې اخلي.

**راکاږل** (rākāẓəl) مص. مت. راوېکل، راباسل، له بېکه څخه راپورته کول او رااېستل.

**راکټ** (rākát) نر.م. (ج. راکټونه) توغندی، توغېدونکی سېستم، ارتاوېدونکي آله.

**راکد** (rākid) ص. نر.م.ج. ۱) بې حرکته، آرام، ثابت؛ ۲) کورم، دم، ولاړ (اوبه).

**راکړه** (rākṛá) ښځ.م. ۱) اخستنه، له بل چا څخه يو شی د اخيستنې عمل؛ ۲) ف. راکه، راکړه. مخاطب ته د راکولو امر.

**راکړه ورکړه** (rākṛawárkṛa) ښځ.م. راکړه ورکړه، معامله، ورکول اخستل.

**راکړی** (rākṛay) مف. نر.م. متکلم ته ورکړی، ورکړل شوی يا ورتسليم شوی.

**راکس** (rākás) نر.م. د غوېل په غوېتو کې منځنۍ غوېې ته ويل کېږي.

**راکش** (rākáš) ق. ۱) راکښ، رابېسکل شوی، راښکېدلی؛ ۲) راښکول شوی.

**راکښته** (rākṣ́ta) ق. ۱) راکوز، رالاندې، ښکته، ټيټ؛ ۲) مخاطب ته د راکښته کېدلو امر.

**راکښل** (rākṣəl) مص. مت ۱) رااېستل، راباسل؛ ۲) کښول، کش کول، ښکو.

**راکښو** (rākṣo) ... و ګ.: راښحو.

**راکښوبی** (rākṣobay) واتريېب.: اوبو رااېستلو ماشين.

**راکښون** (rākṣūn) ... و ګ.: رابېکرن.

**راکښون خواک** (rākṣūnzwāk) ... د راکښون قوه، جاذبه قوه.

**راکوزول** (rākūzawəl) مص. مت. و ګ. کوزول.

**راکوزېدل** (rākūzedəl) مص. ل. و ګ. کوزېدل.

**راکول** (rākól) نر.م. و ګ. رابېکول.

**راکول** (rākawəl) مص. مت. رااخيستل، له مقابل طرف څخه د يو شي ترلاسه کول.

**راکوونکی** (rākawūnkay) نر.م. راسپارونکی، راتسليمونکی، د ورکوونکی مقابل.

**راکي** (rakí) ښځ.م. راقي، عقيق، قيمتي، غمی.

**راګ** (rāg) نر.م. مو. راګا، ګرام: ۱) سندره، نغمه، سرود؛ ۲) عيش، طرب؛ ۳) آهنګ، نوا.

٤) پرده، ٥) مقام، د موسیقۍ مقام.

**راګرځول** (ragarzawal) مص. مت. راستنول، راګرځول، راواپس کول، په شا راستنول.

**راګرځېدل** (ragarzedal) مص. ل. راستېدل، راواپس کېدل، بېرته راتلل.

**راګني** (rāganí) ښ.غ.م. د موسیقۍ شعبه، د موسیقي د راګ یا مقام شعبه، ثانوي راګونه.

**راګیر** (rāgír) ص. نر.م. ۱) راحصار، راایسار، رابند، منبتي: ۲) دوچار، اخته.

**رال** (ral) نر.م. د چرګې د هګۍ غوړي.

**رالره** (rālará) اد. راله، راته، ماته، زما لپاره.

**رالېږل** (rālezál) مص.مت. رالېږل. لـه مقابله لوري دې خواته رالېږل، دورلېږل مقابل.

**رام** (rām) ص. نر.م.ج. تابع، مطیع، ایل.

**رامبېل** (rāmbél) نر.م. رابېل، رانبېل: یو دول ګل دی چې ډېر په زړه پوري بوی لري

**رامشت**(۱) (rāmast) ص. نر.م. دولي، ښایسته، ښکلی، د بدرنګ مقابل.

**رامشت**(۲) (rāmíšt) نر.م ۱) سرود؛ ۲) عیش.

**رامشتګر** (rāmišgár) ص.نر.م. سندرغاړی، سندري کوونکی، بدله ویونکی.

**رامزدګی** (rāmizdagáy) نر.م. هغه غوند منډ لرګی چې د ژرندې پل پرې ګرځي.

**رامکان** (rāmakān) نر.م. پټو، وړین ځادر.

**راموسی** (rāmúsay) نر.م. هغې خوسی چې مشک تري لاس ته راځي.

**رانجن** (rānján) ص. نر.م.ج. تیاره، تت، تیاره وزمه، تیاره غوني.

**رانجوتونی** (rānjutūnáy) ښ.غ.م. رانجومه، رنجومه، رنجورمه، رنجومه، د رنجو وره کڅوره.

**رانجه** (rānjá) ښ.ج. اسمي مونث. یو راز کیمیاوي ماده، خاص مور دپر ده چې د سکلا د دوا په توګه په سترګو پورې کیږي.

**رانځره** (rānǰṛa) جن. رنځره، سنځره، ځونه، لنځره.

**راندېمان** (rāndemān) نر.م. محصول، حاصل، لاس ته راوړل.

**رانسکورول** (rānaskorawál) مص.مت. ۱) راچپه کول، پرمخ کول؛ ۲) راختمول؛ ۳) ماتي ورکول.

**رانغاړل** (rānǧāṛal) مص.مت. ۱) راغړل، نغاړل، راتاوول؛ ۲) هر شی په خوله منډل؛ ۳) مج. حرص کول.

**رانګن** (rāngán) نر.م. رنګان، بکیانه، یو دول ونه ده چې دول ترخي داني نیسي.

**رانواته** (rānanawātá) نر.ج. داخلېده.

**رانوتل** (rānanawatál) مص.ل. راداخلېدل، دننه راتلل.

**رانه** (rānə) اد. راڅخه، له مانه، زما څخه.

**رانه یستل** (rānanayastál) مص.مت. ننه ایستل، راداخلول، رانته کول.

**رانیول** (rāniwál) مص.مت ۱) په لاسونو کې نیول ۲) اخیستل، په بیه اخستل.

**رانه** (rānə́) ص. نر.ج. درون جمع ده.

**راواته** (rāwātá) نر.ج. د ورشني راواته، رابهرته کېده، د باندې راواته، د باندې راتګ، خروج.

**راوتل** (rāwatál) مص.ل. ورشني راتلل، بهدیا ته راتلل، راخارجېدل، د باندې راتلل.

**راوتکی** (rāwátkay) نر.م. ورکوټی دالان، ورکوټی دهلېز، کوچنی کوشکن.

**راوړل** (rāwṛál) مص.مت. ۱) یو شی له یوه ځای څخه بل ځای ته راانتقالول؛ ۲) زېږول.

**راوړه** (rāwṛá) نر.ج. ۱) رانقلاوه؛ ۲) زېږاوه.

**راوستل** (rāwastә́l) مص.مت. رالېږدول، يو ساه ژرونکی په خپلو پښو، يا يو بې ساه خپلې خواته راتقلول.

**راولاړېدل** (rāwlāṛedә́l) مص.ل. ۱) راپاڅېدل، راجګېدل؛ ۲) رېښېدل؛ ۳) راپارېدل؛ ۴) مج. جنګېدل، جګړه کول.

**راوه** (rāwә́) ښځ.م. ملهم، مرهم، هغه درا يا دارو چې په زخم يا ټپ ايښودل کېږي.

**راوي** (rāwī́) ص. نب. روايت کوونکی، نقل کوونکی (فق.) هغه څوک چې حديث رانقلوي.

**راوېستل** (rāwestә́l) مص. مت. راوېښکل، راايستل، رايستل، راباسل.

**راهب** (rāhíb) نر.م. (ج. راهبان) نصارا، عابد او پارسا، ديري څوک چې په دير کې عبادت کوي.

**راهدار** (rāhdā́r) ص. نر.م. ج. ۱) رادار، ليکي ليکي؛ ۲) تانه‌دار، لاره ساتونکی.

**راهداري** (rāhdārī́) ښځ.م. لارپانه، د لارې يا پولې د تېرېدلو اجازه ليک.

**راهسکېدل** (rāhaskedә́l) مص. ل. ۱) راپاڅېدل، راولاړېدل؛ ۲) راختل، راښکاره کېدل.

**راهيټ** (rāhíṭ) ص. نر.م ۱) مالت مشر، کنديلر، کلانتر، د کلي مشر؛ ۲) ملک، خان.

**راهيسته** (rāhistә́) ق. ۱) رادېخواته، رادې پلو ته؛ ۲) له هغه وخته، له هغه راهيسې.

**راهيسې** (rāhíse) ق. له هغه وخته، د هغه راايسې، راايسې، راديخوا.

**رای** (rāy) ښځ.م. ۱) وګ. رايه؛ ۲) د لرغوني هند د واکمنانو لقب.

**رايج** (rāyíj) ص. نر.م. ج. مروج، رواج شوی، عام شوی، جاري شوی.

**رايستل** (rāyistә́l) مص. مت. بېستل، راايستل، راايېستل، راوېستل، د باندې حارجول.

**رايسته** (rāyístә) ق. رادېخوا، دېخواته، دې پلو.

**رای ګيري** (rāygirí) ښځ.م. رايه اخيستنه، رايه ورکول، رای ورکول.

**رای ورکړه** (rāywárkṛa) ا. رای ورکونه، رای ورکول.

**رايه** (rāyá) ښځ.م. (ج. رايې) ۱) اند، فکر، رای؛ ۲) ګروهه، عقيده، اعتقاد؛ ۳) د زړه بصيرت؛ ۴) تدبير.

**رايه اخيستنه** (rāyaaxisténa) ا. رايه يا نظر اخيستل، سند اخيستل.

**رئيس** (rayís) نر.م. ريس، مشر؛ ۱) د قوم لوی لو سرپرست؛ ۲) د اجرائيه قوې مشر؛ ۳) د يوه رياست، محکمې، شرکت او ټولنې مشر.

**رب**[1] (rab) نر.م. ۱) مالک، څښتن؛ ۲) مصلح؛ ۳) پالونکی، پالونی.

**رب**[2] (rub) نر.م. د مېوې ايستل شوې اوبه چې د ايشولو وروسته ټينګې شي.

**ربا** (ribā́) ښځ.م. سود، ګټه، سوايې، (فق) هرې فاسدې بيعې ته ربا وايي

**رباب** (rabā́b) نر.م. د ساز يوه تاريزه آله ده.

**رباط** (rabā́t) نر.م. ۱) پړاو، هغه واټن چې د شپې ګروه سره معادله وي؛ ۲) هغه تمځايونه (کاروانسرای) چې په يوه اوږده لارکې واقع وي.

**رباعي** (rubā́ʻī) ښځ.م. ۱) څلوريزه، هغه شعر ته وايي چې څلور مسرې (مصرع) ولري.

**رب النوع** (rabunnáw٤) ښځ. ز.م. د الهې (الهه) يا ربة النوعي مقابل، ځانګړی خدای.

**رباني** (rabānī́) ص. نب ۱) رب ته منسوب، د رب؛ ۲) عارف، عابد.

ربج (rabǰ) سغ م. گیه، نعم، مفاد، نګښانه.
ربخ (rabǰ) ا. و گ. ربیخ.
ربړ (rabáṛ) نر.م ۱) ستونزه، زحمت، کړاو، تکلیف:
۲) رابړ، ربړ د څښتو خاصو ونو او بوټو شیره ده
چې لاټکس یې بولي.
ربړا (rabṛā́) بنځ.م. ۱) ربړ، زیار: ۲) ریاضت، په
عبادت کې زیار او زحمت کښل.
ربړاو (rabṛáw) نر.م. ربړه، تکلیف، ستونزه.
ربړن (rabṛán) ص. ستونزمن، ربړي، لوتجاعي.
ربړوکی (rabṛū́kay) ص. تربلي، دارشوی.
ربړول (rabṛawə́l) مص. مت. کړول، په عذابول،
په تکلیفول، په کړاو اخته کول.
ربړه (rábṛa) بنځ.م (ج. ربړي) ۱) ربړ، کړاو، ستونزه
۲) مناقشه، مجادله، جګړه، جنجال.
ربړي (rabṛí) ص.نب. ربړیز، رابړي، د ربړ.
ربړیالی (rabaṛyālā́y) ص.نر.م. زیار ګالونکی،
زیارکښ، زیار ایستونکی، خواریکښ.
ربړیجن (rabṛiján) ص. ربړوونکی، ځوروونکی،
مزاحم.
ربړېدل (rabṛedə́l) مص.ل. کړېدل، په کړاو اخته
کېدل، په زحمت کېدل، ځورېدل.
ربړېز (rabṛéz) ص. نسر.م. ج. ۱) و گ. ربړي:
۲) جنجالي، جګړه یي، جګړه ییز.
ربزکی (rabzákay) نسر.م. (ج. ربزکي) یو ډول
مرغه دی.
ربزوکی (rabazū́kay) ص. نر.م. خوار، خوارکی،
بې وسه، ناتوانه، بې توانه.
ربط (rabt) نر.م. ۱) اړیکي، اړه، ارتباط، رابطه:
۲) ګ. عطف، هغې کلیمې چې په یوه جمله
کې دوه اسمه یا یو دوې جملې سره یو ځای کوي
ربع (rúbʻ) ع. نب. څلورمه، یو پرڅلورو ۱/۴.

ربغړ (rabǧə́ṛ) نر.ج. کوچنیان، ماشومان، زیات
اولاده.
ربغړی (rabǧəṛáy) ص.سر.م. ۱) برینډ، لغړ:
۲) خوار، بېوزلی، غریب.
ربل (rabál) مص.مت. ۱) ګ. ربیل: ۲) ص. نر.
م. ج. منلی، قبول. ۳) خوښ، روه ته نېږدې:
۴) نر.م. ۱) پېرزوینه: ۲) ښه سلوک.
ربلاند (rablánd) نر.م. مهربان، لوراند، لورین.
ربلول (rabalawə́l) مص.مت. ۱) منل، قبلول:
۲) زړه ته نیژدې کول: ۳) پېرزوینه کول، لورینه
کول: ۴) ښه سلوک کول، ښه ګوزاره کول.
ربلونی (rablū́nay) نر.م. بې موره ګډوری.
ربلېدل (rabledə́l) مص.ل. ۱) خوښېدل، قبلېدل:
۲) لورېدل، پېرزوکېدل.
ربنېدل (rabnedə́l) مص.ل. ربنېدل، تربېدل،
ترهېدل، دارېدل، بېربېدل، وېرېدل.
ربنوکی (rabnū́kay) ص. نسر.م. ۱) هوښیار او
غښتلی ماشوم: ۲) ترهېدلی او دارشوی.
ربنه (rabaná) بنځ.م. ربنی، تنه رنا، د لمر کمزوري
او لږه روښنایي.
ربوبیت (rubūbiyát) نر.م. خدایي، الوهیت.
ربیټ (rbiṭ) نر.م. یو ډول میخ دی چې سر یې د
میخ په څېر او پای یې پرې شوی دی.
ربیع (rabíʻ) بنځ.م. سپرلی: ۲) سسورتیا.
ربینه (rabiná) بنځ.م. د غوږ پرده، پرده.
رپ (rap) نر.م. ۱) رپېدنه، لړزېدنه، رپا، اهتزاز:
۲) خوځېده، حرکت: ق. شیبه، لحظه، لږوخت
۳) نر.م. رپکی، موره، رپک، توک بندي.
رپا (rapā́) بنځ.م. (ج. رپاوې) رپېدنه، ښورېدنه.
رپاره (rapā́ra) بسځ.م. د کمیس ترخږ، هغه برخه
چې کمیس ته یې د ارتولو لپاره وراچوي.

**رپاند** (rapánd) ص. رپېدونکی، برېښد، رېږدېدونکی.

**رپک** (rapák) نـر.م. (ج. رپکونه) رپ، رپکی، نوکښدي، په دېوال کې موره.

**رپل** (rapál) نر.م. د بېو دول رحي لسرونکي بحواني بوټک بوم دی.

**رپند** (rapánd) ص. نـر.م.ج. رپېدونکی، رپاند، رپندی.

**رپندېږواک** (rapándhewák) گر. هغه ببراک (کانسونېنټ) چې له وینګ (تلفظ) سره یې د ژبې څوکه رېږي.

**رپنی** (rapanáy) ص.نر.م ۱) موخه، دک، ترخولې ترخنډ ډک، مالامال؛ ۲) مور، ډک.

**رپو** (rapú) ص. نر.م. رفو، پنځرک، پیوند.

**رپوټ** (rapóṭ) نر.م. وګ. راپور.

**رپوټچي** (rapoṭčí) ص.نب. مخبر، جاسوس.

**رپول** (rapawə́l) مص.مت خوځول، ښورول، زمبول، خمبول، اهتزار ورکول.

**رپهار** (rapahā́r) نر.م. رپا، خوځېدا، ښورېده.

**رپی** (rapáy) نـر.م. ۱) رپهار، رپېدنه، اهتـزاز؛ ۲) بیرغ، توغ، جنډه.

**رپېدل** (rapedə́l) مص.ل. ښورېدل، خوځېدل.

**رپیده** (rapidá) ښځ.م. یوه ګـردي یا بیضـوي دوله آله ده چې دودی پخورنکی پیه پرې اواروي او بیا یې تناره ټپي.

**رت** (rat) مغ. تک. د صفتونو څخه دمخه د مختاري په دول راځي او زیاتـره پر خالصو رنګـو باندي تاکید کوي، لکه: رت تور.

**رتبوي** (rutbawí) ص.نب. ۱) د درجې، دمنزلت؛ ۲) د مقام، د رتبې، د چوکې.

**رتبه** (rutbá) ښځ.م. (ج. رتبې) ۱) درجه، منزلت؛ ۲) مقام، څوکی.

**رتی** (raṭáy) ښځ.م. ۱) د یوې ونې د تخم نوم دی؛ ۲) الې شی، د ډېر لږ شی، کم مقدار، نوری.

**رتي** (rati) نـر.م. ج. مو. د ۱۱ مانې نوم دی.

**رتیب** (ratíb) نر.م. ردیف، کتار، تسپ، جمل.

**رتي پتي** (ratepóte) ص. نب. ۱) چپېري، بې... ريتي پيتي؛ ۲) ذري ذري، داني داني.

**رټ** (raṭ) ص.نـر.م. ج. ۱) جوت، ښکاره، واضح؛ ۲) سخت، کلک؛ ۳) نـر.م. رډ، د اوبسکو بهېده؛ ٤) ص.نر.م. شریر، فاسد؛ ٥) ص.نر.م. رډ، راوتلی؛ ٦) د نفي، د تردید؛ ۷) تکره؛ ۸) نر.م. د شري یا کـوي د ناروغیو هغه حالت چې داني راښکاره نه شـي.

**رټ رټ** (ráṭraṭ) ق. ۱) زیاتي اوښـکي تویېدنه او ژړېدنه؛ ۲) په غټو غټو سترګو، رډ رډ.

**رټل** (raṭál) مص.مت. ۱) ترټل، غندل، په خبرو سره تهدیدول؛ ۲) شړل، خپه کول، رټل

**رټ مټ** (ráṭmáṭ) ق. په څرګنده، رډبډ، په سپینه، صریحاً، صراحتاً، په ښکاره، په زغرده.

**رټن** (raṭán) ص.نر.م. تکې تکې، خال خال، خاپ خاپ.

**رټنه** (raṭána) ښځ.م. ۱) ترټنه، غندنه، تهدیدونه؛ ۲) شړنه.

**رټوالی** (raṭwā́lay) نـــر.م. رټتیا، رډښوالی، صراحت، څرګندوالی.

**رټول** (raṭawə́l) مص.مت. رډول، سترګې کلکول، سپین سترګي کول، په سترګو ننوتل.

**رټونکی** (raṭū́nkay) فا.نـر.م. ۱) ترټونکی، غندونکی، تهدیدونکی؛ ۲) شړونکی.

**رټه** (raṭá) ښځ.م. ۱) داغ، خاپ، لکه، تکی، تکی؛ ۲) ص.نب. نیغه، سپینه، ښکاره، جوته.

**رټی** (raṭáy) ښځ.م. یو دول ګیاه ده.

رتبېدل (raṭqedəl) مص.ل. رډبېدل، سترګې کلکول، سترګې سپېنول، کلکېدل، خرې کېدل.

رجاء (rijā) بنځ.م. اسره، طمعه، تمه، امید.

رجحان (rujhān) نسر.م. باندې‌والی، برولی، لوړوالی، غوره‌والی، ترجیح، برتري.

رجرومه (rajrūma) بنځ.م. رنځوني، د رنځسو کڅوړه.

رجز (rájaz) نر.م. ویاړنه، حماسي او رزمیه شعر.

رجعت (rajʻát) نر.م. راګرځېدنه، راستنېدنه، د طلاق ورکوونکی خپلې ښځې ته راستنېدنه.

رجم (rájam) نر.م. ۱) سنګسارونه، په تیږو وهنه؛ ۲) کنځل کونګ، نفرینونه، ترټنه.

رجوع (rujūʻ) بنځ.م ۱) مخ راګرځونه بېرته راتلنه؛ ۲) علاقه؛ ۳) فق. د فسخ مرادف؛ ۳) د رجعي طلاق فسخه کونګ.

رجه (rajá) بنځ.م. هغه تار چې خټګر یا ترکاڼ پرې نښې او خطونه اچوي.

رچ (rač) نر.م ۱) د کور اسباب؛ ۲) د جولاګانو د کډی پرمنځ؛ ۳) عیب؛ ٤) د خرادي آله؛ ٥) د کبانو د نیولو جال؛ ٦) رچه، خوښه، رضا؛ ۷) حرص، تلوسه؛ ۳) آرزو؛ ٤) سوده شوی غوبی.

رچکانی (račkā́nay) نر.م. د خرادي د آلې تیره.

رچکی (račkáy) نر.م. څرخی، څرخنی، سمندخ شوې وری یا تار.

رچنی (račanáy) نر.م. خراد، هغه آله یا سړی چې خرادي کوي.

رڅه (ráẓa) بنځ.م. لاره، جاده، سړک، لار، واټ.

رڅ (rac) ص.نر.م. کږی، هغه څوک چې پښه پسې راښکېږي.

رڅکېدل (rackṣə́l) مص.مت. رڅې کېدل، څکول، په څمکه راښکل او کښول.

رخیکېدل (rackṣə́l) مص.مت. رخکېدل، څکول، کښول، په‌ رابېکلو سره د یوه شي ورل.

رحل (rahl) نر.م. و ګ. رهېل.

رحلت (rihlát) نسر.م. ۱) تلنه، تګ، لېږدېدنه؛ ۲) مرګ، وفات، له دې دنیا نه تلنه.

رحم[1] (ráham) نسر.م. زړه سوی، زړه خوږېدنه، لور، زړه خووونه، مهرباني.

رحم[2] (rahím) نر.م. زیلانځ، ترملنه، د ښځې په نس کې هغه ځای چې اولاد په کې وي.

رحمت (rahmát) نر.م. ۱) بخښنه؛ ۲) لورینه؛ ۳) مهرباني، فضل، رحم.

رحمېدل (rahmedə́l) مص.ل. مهربانېدل.

رحیل (rahíl) نر.م. کوچ، لېږد، یون.

رخ (rax) نسر.م. د سد مقابل، جېری، د توپک د شپېلې په دننني برخه تاوڑاتاو کرښه.

رخ (rux) نسر.م. ۱) مخ، څېره، شکل؛ ۲) واګی، د آس جلو؛ ۳) پلو، لوري، خوا..

رخام (roxā́m) نر.م. ج. الباتر په لغت کې د سپینې او نرمې ډبرې په مانا دی.

رخپټه (raxpáṭa) بنځ.م. ۱) یو غرنی بوټی دی؛ ۲) خرېتې، یو د ول سارانې سابه دي.

رخپین (raxpín) نر.م. تروکی، رخپین، کورتوبه.

رخت (raxt) نر.م. (ج. رختونه) ۱) پال، سپاره؛ ۲) توکر، ټوټه؛ ۳) کالي، جامې.

رخچینه (raxčína) بنځ.م. عرقچینه؛ ۱) یو ډول خولۍ چې پخوا به ښځو پر سر وله؛ ۲) هغه توکر چې پر اس باندې د خولو د جذبولو لپاره تېل کېږي.

رخړل (raxṛə́l) مص.ل. ریخل، ریخ وهل، بیېدل، بهېدل.

رخس (raxs) نر.م. هن. رقص، نڅا، ګډا.

**رخسار** (ruxsắr) نر.م. غومبوري. ... ، بارخو، بارخو، نغور، سره وروتي.

**رخسول** (raxsawắl) مص. مت. رقصول، گډول.

**رخښت** (raxṡắt) ص. نر.م. چیرېدلی، رخېدلی، ربخېدلی، هغه څاروی چې وربخېږي.

**رخصت** (ruxsắt) نر.م. ۱) تعطیل، اجازه؛ ۲) دستور.

**رخصتول** (ruxsatawắl) مص. مت. ۱) اجازه ورکول؛ ۲) شړل، له کاره ایستل.

**رخصتي** (ruxsatí) ښځ.م. د تعطیل ورځ.

**رخصتېدل** (ruxsatedắl) مص.ل. ۱) رخصت کېدل، تعطیل کېدل؛ ۲) شړل کېدل.

**رخن** (raxắn) ص. نر.م. ۱) رخه‌ناک. کینه‌ناک، حسود؛ ۲) نر.م. ایره، حاصل.

**رخور** (raxawắr) ص. کینه‌کښ؛ و.گ.: رخن.

**رخه** (raxắ) ښځ.م. (ج. رخې) ۱) کینه، حسد؛ ۲) و.گ. رخ؛ ۲) رجه، نقشه، خط اچونه.

**رخه او سخه** (raxắawsaxắ) اما. کرچ او کینه، حسد.

**رخی** (raxắy) ص.نر.م ۱) رخه‌ناک، حسود رخن؛ ۲) نر.م. د شلمبه سوروی، د تلمبه سوروی، د دنګمبوری، د حوض موری.

**رخیل** (rxayắl) مص. مت. سرخرول، خرپیل.

**رد** (rad) نر.م ۱) لوری، خوا، پلو؛ ۲) تلنه، تېرېدنه؛ ۳) مخې ورګرځونه، ردونه، مستردونه.

**ردخ** (radc) ص. نر.م. رخ، کڅی، چپی، چپ لاسی.

**رد و بد** (rádubád) نر.م. ګډې وډې سپکې سپورې.

**رد و بدل** (radubadál) ق. ۱) نه مخامخ کېدل؛ ۲) عوض و معاوضه، بدلونه، تبادله.

**ردول** (radawắl) مص. مت. ۱) رد کول، تمبول، مستردول، تردیدول؛ ۲) نفي کول.

**رده** (radá) ښځ.م. (ج. ردې) ۱) پخښه، مسوره؛ ۲) لاره، لار، کتار، قطار، رسته.

**ردي** (radí) ص. نب. باطل، منسوخ، له کاره وتلی.

**ردېدل** (radedắl) مص. ل ۱) څوابېدل، مستردېدل؛ ۲) مرتد کېدل؛ ۳) نفي کېدل، باطلېدل.

**ردیف** (radíf) نر.م. ۱) کېږ، څیره، کتار، چیل؛ ۲) پسې‌شا، ترشت؛ ۳) غبرګ سولره.

**رډ** (raḍ) ص. نر.م. ۱) وچ سترګی، سپین سترګی؛ ۲) رټ، بټ سترګی؛ ۳) ښکاره؛ ٤) سرتمبه.

**رډبډ** (ráḍbáḍ) ص.نر.م. ج. ښکاره، جوت.

**رډ په رډه** (ráḍparáḍa) ق. مخامخ، نېغ، ښکاره.

**رډسترګی** (raḍstárgay) ص. نر.م. تاغ سترګی، بټ سترګی، بوک سترګی.

**رډول** (raḍawắl) مص. مت ۱) ښکاره کول، جوتول؛ ۲) نېغول، شخول، سترګې سپینول.

**رډی** (raḍáy) ص. نر. م. ۱) بټ سترګی، بوک سترګی؛ ۲) نر.م. ګېګړ، ربړی، د ربړي ګل.

**رډۍ** (raḍə́y) ښځ.م. پېبی، مرری، د توپک لته کش.

**رډېدل** (raḍedắl) مص. مت. رنډېدل، خرې کېدل، پېبې کلکول، پېبې خرپیل.

**رذالت** (rezālát) نر.م. رذالته، پستي، سپېنانه، کچوتي، کچکي، ناکسي.

**رذیل** (razíl) ص. نر.م. پست، کچه، فاسد.

**رذیلانه** (razīlāná) ق. د رذالت، د رذیلتوب، د رذالت په ډول.

**رزم** (rázam) نر.م. (ج. رزمونه) جګړه، شخړه.

**رزمته** (razmatá) ښځ.م ۱) شومه، ورځني خواړه، ارګانه، ورځنی جیره؛ ۲) بسنه، بسیا.

**رزمنوال** (razmanwā́l) ا. رزمه‌وال، نفقه‌رسانډ، نفقه‌رسوونکی، تنخواخور، متکفل.

**رزمنه** (razmána) ||. نفقه، تنخوا، روزي.

**رزمي** (razmí) ص.نب. د رزم، د حماسي، د جګړي.

**رژ** (ríž) نر.م. (طب.) ریژ، د لېوني سپي ناروغي.

**رژند** (ražánd) ص. نر.م ۱) رژېدونکی، تویېدونکی؛ ۲) کولېدونکی.

**رژول** (ražawə́l) مص.مت. ۱) رېژول، رجول؛ ۲) کړلول، دوړول، مېده مېده کول.

**رژېدل** (ražedə́l) مص. ل. ۱) تویېدل، رېژېدل، رالوېدل، تلېدل؛ ۲) مېده کېدل، دوړېدل.

**رژیسور** (ražisór) نر.م. (هن) .رژیسر، ستیج مېنیجر، مدیر، عامل؛ په تیاترکي د لوبغاړو مدیر یا سرپرست.

**رژیم** (ražím) نر.م. ۱) (حکومتي) لاره، قاعده، دول، روش، شکل، سبک، شېوه؛ حکومتي سیستم، د حکومت طرز، د حکومت نوع.

**رس** (ras) نر.م. ۱) روزي، خواړه، آذوقه؛ ۲) مرسته، ۳) د یوه اضافي بوټي د کوتلي تخم لو پانو وچه کړي ترخه عصاره ده؛ ٤) جوهر، خوز، عرق؛ ۵) ص. نر.م. ګېډو، خېتور؛ ٦) نبنځ.م. ج. یو دول خاوره ده.

**رسا** (rasā́) ص. نب. ۱) بالغ، رسېدلی؛ ۲) لسور؛ ۳) لایق، ځیرک؛ ٤) سم، سیخ، نیغ.

**رسالت** (risālát) نر.م. خبر رسول، پیغام رسونه، پیغمبري، استاځي توب.

**رسالدار** (rasāladā́r) نر.م. رساله دار؛ ۱) پخوا به یې په عسکري کي د یوې وړې سپرې تولګی مشرته ویل کېده.

**رساله** (rasālá) نبنځ.م. ۱) وړوکي مجموعه، کوچنی کتاب؛ ۲) د سپرو یوه قطعه.

**رسالیندی** (rasālindáy) نر.م. لیندی ویشتونکی، بله غشي ویشتونکی.

**رسام** (rassā́m) ص. نر.م. (ج. رسامان) انځورګر، څېره کښونکی، څېره کښ، رسم کښونکی..

**رسامي** (rassāmí) نبنځ.م. انځور ویستنه، انځور کښنه، رسم ایستنه، څېره رسمونه.

**رستوران** (rastūrā́n) نر.م. (ج. رستورانتونه) رستورانت، د خوراکي موادو د رانیولو او خوړلو ځای.

**رسته** (rastá) (ج. رستې) رده، کتار، قطار، صف.

**رسد** (rasád) نر.م. ۱) برخه، حصه، ونډه، قسمت؛ ۲) د خوراکي شیانو مغازه؛ ۳) د لو وخت.

**رسلیک** (raslík) نر.م. (ج. رسلیکونه) رسید، پاروخطی، سند، تمسک.

**رسم** (rásam) نر.م. (ج. رسمونه) ۱) دود، رواج، دستور؛ ۲) انځور، تصویر، د یو شي صورت؛ ۳) د یو سونه پاکه شوي رشه.

**رسم الخط** (rasmulxát) نر.م. لیک دود، معیاري لیک، آرتوګرافي.

**رسمونی** (rasmaū́nay) نر.م. ګرنډي مال، پایمال، د غنمو هغه ګرنډي چي د رشي د پاکېدو په وخت کي لولړ پاتې شي.

**رسمي** (rasmí) ص. نب. ۱) د قاعدې، د عرف، د عنعني؛ ۲) حکومتي، دولتي، سرکاري.

**رسمیت** (rasmiyát) نر.م. رسمي جنبه لرنه.

**رسمېدل** (rasmedə́l) مص.ل. انځورېدل.

**رسند** (rasánd) نر.م. ۱) د ناوې د آس مخصوص جلو؛ ۲) هغه رنګه دسمال چي خسرګنۍ یې د زوم د آس د غاړي لپاره ورکوي.

**رسنی** (rasanáy) نبنځ.م. فرایع.

**رسوا** (raswā́) ص. نب. ۱) پیکړي، بې آبرو، لوڅ؛ ۲) معلوم، ښکاره، څرګند، جوت.

**رسوب** (rusū́b) نر.م. خره، خړوبی، کونوبی، ختېدل.

رسوخ (rusūx) نر.م. ۱) مخ‌روبی، اعتبار، عزت، منلتیا؛ ۲) ثابت، ټینګ، محکم، استوار.

رسول[1] (rasūl) نر.م. ۱) پیغمبر، دخدای استازی؛ ۲) استازی، قاصد.

رسول[2] (rasawál) مص.مت. ۱) ورل، سپارل؛ ۲) ترسره کول؛ ۳) لوورل، جګول.

رسولی (rasūláy) ښځ.م. هغه زخه یا مېخک چې د لاسو یا پښو په ګوتو کې راخېژي.

رسونه (rasawána) ښځ.م. ۱) ورنه؛ ۲) ترسره کونک، بشپړونه؛ ۳) پخونه؛ ٤) د کمال په لور خوځونه.

رسوم (rusūm) نر.ج. د رسم جمع، وګ. رسم.

رسی (rasáy) ښځ.م. بیاسته، رسه، پړی، بدریشه، لوی او غټ پړی، لوی بدریژه.

رسید (rasīd) نر.م. سند، رسلیک، چیټی.

رسېدل (rasedál) مص.ل ۱) رسېده، ترسره کېدل، بشپړېدل؛ ۲) مج. پخېدل (د غلې، مېوې...)؛ ۳) ځوانېدل؛ ٤) ورسپارل کېدل.

رسی والا (rasaywālā) ص. نر.م.ج. رسی خرڅوونکی، د رسی څښتن یا خاوند.

رش (raš) نر.م. ۱) پېروی، د شېدو سر، قیماق؛ ۲) د لرې بوره؛ ۳) مېده ګې، پوډر؛ ۳) وړې وړې دانې، نېنکې، زخې، ګرمکې؛ ٤) خیری؛ ۵) ګاډه شریت؛ ٦) څګ، کپ، قف.

رشاد (rašād) ص. نر.م. ۱) ځوان، رشد موندلی؛ ۲) پرلاري سم؛ ۳) مقاومت؛ ٤) بریالی، کامیاب، بریالیتوب.

رشادت (rašādat) نر.م. زړورتیا، ځوانمردي، راستي.

رشتلی (raštalay) نر.م. تلی، پاتې شوني، د درمنده پاتې.

رشته (rištá) ښځ.م. (ج. رشتې) ۱) تار، مزی؛ ۲) څانګه، مسلک، تخصص؛ ۳) اریکی.

رش چای (raščāy) ۱. پېروي چای، تورچای.

رشد (rušd) نر.م. ۱) نمو، وده، جسمي او ذهني انکشاف؛ ۲) غوړېدنه، رسېدنه، غټېدنه.

رشقه (rišqá) ښځ.م. رشکه، ریشکه، شپشۍ، شفتلو غوندې بوډول واښه دي.

رشک (rašk) نر.م. ۱) پم، پونی، د پوست پورول ناروغي ده؛ ۲) ککړ، غش، ګډ، لړلی.

رشکی (rašakáy) ښځ.م. ورهرشه، کوچنی رشه، ورکوټی درمند.

رشکین (raškín) ص. نر.م ۱) مشوش، مغشوش؛ ۲) ګډ، ککړ، لړلی.

رش لری (rašláray) ص. نر.م. کیسه مال، خیری پاک.

رشوت (rišwát) نر.م. بډې، رشوه.

رشه (rašá) ښځ.م. (ج. رشې) ریشه، راشه، پاک شوی درمند.

رشید (rašíd) ص. نر.م. ۱) وده موندلی، د ودې خاوند؛ ۲) پرلاري سم، رښتینی؛ ۳) زړور.

رښ (raș) نر.م. شیره، عصاره، څربه، څړنباب.

رښتنګلوي (rastangalwí) ښځ.م. ۱) سپېڅلي، صداقت؛ ۲) دوستي.

رښتمني (rastmaní) ښځ.م. ثبوت، تحقیق.

رښتنی[1] (ristánay) ص. نر.م. صادق، سپین.

رښتنی[2] (rastaní) ښځ.م. رښتېنولي، صداقت.

رښتونی (ristūnay) ص. نر.م. رښتنی، صادق، سپین، رښتینی.

رښتیا (restyā́) ښځ.م. رشتیا، صداقت.

رښتیا پال (restyāpāl) ص. حقیقبال، رښتیا پالونکی.

**ریښتیاپالنه** (restyāpalána) ا. حقیقت پالنه، حقیقت پلنه.

**ریښتیامل** (restyāmal) ص. ریښتین، ریښتینی، ریښتونی، حقپال.

**ریښتیانی** (riṣtyānáy) ص. نر.م. د ریښتیا، د حقیقت، په ریښتیا اړوند.

**ریښتیاوالی** (riṣtyāwā́lay) نر.م. سپینوالی، ریښتیاتوب، صداقت، د دروغوالي ضد.

**ریښتیاوین** (restyāwín) ص. واقعبین، حقپال.

**ریښتین** (riṣtín) ص. نر.م. ج. رښتین، صادق، سپین، ریښتونی.

**ریښتینواله** (riṣtinwā́la) ښځ.م. راستي، صداقت، اخلاص.

**ریښتینولي** (riṣtinwalí) ښځ.م. د یوې خبرې سپینونه، د یوې موضوع دروغ او ریښتیا معلومونه.

**ریښک** (raṣk) نر.م ۱) کرښه، خط، لیکه؛ ۲) نښه، اثر، علامه، نښکه.

**ریښکه** (ráṣka) ښځ.م ۱) کرښه، ریښک؛ ۲) توتنی، پترکی؛ ۳) تشنج، هیجان.

**ریښکی** (raṣkáy) ښځ.م. ریښکي، ریښه، ریتاره، د توکر اوږده یا کمکی توټه.

**ریښیدل** (rasedál) مص.ل. تریدل، ترهیدل، وریدل، بیریدل، داریدل.

**رصد** (rasád) نر.م. ۱) مراقبت کول؛ ۲) څارنه؛ ۳) لاره، طریق؛ ٤) ساتونکی، محافظ.

**رصد خانه** (rasadxāná) ښځ.م. هغه لوړ ځای چې د ستورو او سیارو څارنه کیږي.

**رضا** (rezā́) ښځ.م. ۱) خوښه، اختیار، موافقت؛ ۲) انتخاب، غوره کونګ، چاڼ؛ ۳) ص.نب. راضي، خوښ، قانع.

**رضاع** (reẓā́c) ښځ.م. رودنه، د مور له تي څخه د شیدو خوړنه.

**رضاعت** (reẓāʿat) نر.م. رضاعه، رضاع، شیدې رودنه، د مور له تي څخه د شیدو رودنګ.

**رضاعي** (rezāʿí) ص. نب. هغه دوه ماشومان چې د یوې ښځې تی یې رودلی وي (خو مور او پلار یې سره بېل وي).

**رضاکار** (rezākā́r) ص. نر.م. ج (ج. رضاکاران) داوطلب، هغه څوک چې په خپله خوښه کوم کار یا کومې قرباني ته چمتو شي.

**رضامند** (rezāmánd) ص. نر.م. ج. راضي، رضا، قانع، خوښ.

**رضایت** (rezāyát) نر.م ۱) رضامندي؛ ۲) اجازت، رخصت؛ ۳) خوښي، خوښه، میل.

**رطل** (ratál) نر.م. ۱) د مایعاتو د وزن یو مقیاس دی چې ۸٤ مثقاله کیږي؛ ۲) د میو پیاله؛ ۳) احمق.

**رطوبت** (rutūbát) نر.م. ۱) لندبل، لمدبل، نمجنوالی، خیشتوالی؛ ۲) لمدښنه، تازګي.

**رعایا** (raʿāyā́) نر.ج. د رعیت جمع.

**رعایت** (raʿāyát) نر.م. ۱) مراعات، لحاظ، خاطر، پاس لرنه؛ ۲) څارونه؛ ۳) څرول؛ ٤) مهرباني، نازونه؛ ۵) د چا کار ترسره کونه، رسیدګي.

**رعب** (rúʿab) نر.م. بېره، ویره، ډار، رووب، خوف.

**رعد** (raʿd) نر.م. تبا، ۱) تالنده؛ ۲) تندر، صاعقه.

**رعنا** (raʿnā́) ص. ښځ.م. ۱) خیالي؛ ۲) ځان مني، متکبره، خودخواه ښځه؛ ۳) ښکلې.

**رعیت** (raʿyát) نر.م. ج. پاسلي، تابع، تبعه، اتباع، رعایا، عوام؛ تر ادارې لاندې.

**رغ** (rağ) ص. نر.م. ۱) ښکاره، څرګند؛ ۲) نر.م. د غره لمن، راغه؛ ۳) چاره، جوړه، موافقه.

رغا (ragā́) ښځ.م. ۱) رغاونه، رغېدنه، جوړېدنه؛ ۲) زړه صبرونه یا صبرېدنه.

رغاندل (ragāndə́l) مص.ل. ۱) کسرېږه ایستل؛ ۲) نر.م. د مستو د مېلو یا ښاریلو اوازو.

رغاو (ragā́w) نر.م. رغاوه، رغېدنه، زړه صبرونه، اړېکې پرېکونه، یو له بله لاس اخیستنه..

رغاوني (ragāwanī́) ص. رغنده، سازنده ودانیز، تعمیري.

رغاوني پښويه (ragāwanipṣóya) (گر.) رغاونيز گرامر.

رغاوني ژبپوهنيه (ragāwanižabpohána) گر. جوړښتي یا ساختماني ژبپوهنه.

رغاوني غونډال (ragāwanigondā́l) (گر.) جوړښتي یا ساختماني سیستم.

رغاوه (ragā́wa) ا. ودنه، صنعت، صناعت.

رغاويز (ragāwī́z) ص. صنعتي، صناعتي.

رغاويزاوښتون (ragāwizawuṣtún) ا. صنعتي انقلاب.

رغاونيز (ragāwanī́z) ص. نر.م. ۱) پرتمین، شاندار؛ ۲) ښایسته، ښکلی، ډولي.

رغبت (ragbát) نر.م. ۱) غوښتنه، میل، ځیله، علاقه؛ ۲) خوښه، مینه لرنه مئوسټي.

رغبولي (ragbóli) ښځ.ج. یو ډول خوشبویه نبات دی خلک پاني وچوي او په شلومبو کې اچوي.

رغدی (ragdáy) ص.نر.م. دروهلی، چالاکه.

رغريوبی (ragaryobáy) نر.م. د کښت پیره دار.

رغړند (ragaṛə́nd) ص. نر.م.ج. ۱) شړوی، غړو؛ ۲) رغړېدونکی، تښلېدونکی.

رغړندوکی (rğaṛandū́kay) نر.م. لرلک، هغه گردی شی چې ماشومان یې رغړوي.

رغړول (r ğaṛwə́l) مص.مت. ۱) کړلول، تیلول؛ ۲) لت پرلت اړول ۳) خوله کنگالول؛ ٤) غولول.

رغړی (ragaṛáy) ښځ.م. ۱) گاډی، بیره، ازابه لرونکې وسیله ده چې خاوریې په کې وړل کېږي؛ ۲) ص. ښځ.م.ج. تخې او سپینې سترگې.

رغړيدل (r ğaṛedə́l) مص.ل. ۱) کولېدل، تښلېدل؛ ۲) لت پرلت کېدل؛ ۳) غرغره کېدل (اوبه)؛ ٤) غولېدل، خطا وتل؛ ٥) د ډېوال چپه کېدل.

رغښت (ragáṣt) نر.م. ۱) لت پرلت، لوټکې؛ ۲) رغېده، څفاسته؛ ۳) کولېده، تولېده؛ ٤) ف. د رغښتل استمراري ماضي؛ ٥) نر.م. جوړښت، جوړېدنه، رغېدنه.

رغښتل (r ğaṣtə́l) مص.ل ۱) رغړېدل، کولېدل؛ ۲) لوټ په لوټ اوښتل؛ ۳) د ډېوال چپه کېدل.

رغښتی (r ğáṣtay) صف. نر.م. رغړېدلی، رغښتلی، تښلېدلی.

رغښتي (ragaṣtī́) ص. ساختماني، جوړښتي.

رغ کړی (rağkáṛay) صف.نر.م. روغ کړی، جوړ کړی، ساز کړی، ښه کړی.

رغلی (rağálay) نر.م. نغری، ديگدان.

رغندی (rağánday) نر.م. دزنې او مرې ترمنځ برخه.

رغنه (rağéna) ا. مسکینده، ترمیم، رغون.

رغوس (ragū́s) نر.م. تور ورغومی، تورسرلکی.

رغول (ragawə́l) مص.مت. ۱) جوړول، سازول؛ ۲) شفا ورکول؛ ۳) نقاشي کول؛ ٤) مج. په دښمنۍ کې ځان خلاصول؛ ٥) مص.ل. زړه صبرول، اړېکې شلول؛ ۲) جوړول، گنډل.

رغون (ragū́n) ا. وگ. رغنه.

رغه (ragā́) ښځ.م. وگ. راغه.

رغی (rağáy) ص. نر.م ۱) الیږ ژور؛ هغه ډنډ چې ډېر لې ژور وي؛ ۲) نر.م. رغونه، جوړښت.

رغی (rağáy) ښځ.م. تورکی، تول شوی لوگی.

رغېدل (rağedə́l) مص.ل. ۱) شفا موندل؛ ۲) جوړېدل سازېدل؛ ۳) ګنډل کېدل؛ ٤) اړیکه پرې کېدل، دوستي او خپلوي پرېښودل.

رفاء (rifā́) ښځ.م. اتفاق، نېږدېوالی.

رفاقت (rafāqát) نر.م. ۱) ملګرتیا، ملګرتوب، اندېوالي؛ ۲) یارانه، تاړاچونه.

رفاه (rafā́h) ښځ.م. آرامي، هوساینه، سوکالي.

رفرنس (rifrṅns) نر.م. ریفرنس؛ ۱) مستندنه، مراجعه، د علمي او ادبي مراجعاتو ځانګړی کتاب، پام اړونه؛ ۲) یادونه، مأخذ.

رفع (raf'ə) ښځ.م. ۱) لیرې کونګ، ایسته کونه، حذفونه؛ ۲) جګونه، لوړونه، پورته کونګ.

رفو (rafū́) نر.م. ۱) پنځری، ګرمل، ګنډنه رېو، پنځرک، ترمیم؛ ۲) پیوند، ګنډ، پینه.

رفیع (rafī́'ə) ص. نر.م. ج. ۱) لوړ، هسک، جګ؛ ۲) د لوړې مرتبې یا درجې خاوند، شریف.

رفیق (rafī́q) ص. نر.م. ۱) ملګری، مل، دوست؛ ۲) دیوه فکر، د یوه اند؛ ۳) یار، محبوب.

رقابت (reqābát) نر.م. ۱) سیالي، سونده (و.ګ. رقیب ۱)؛ ۲) څار، څارنه، ساتنه؛ ۳) انتظار.

رقاع (reqā́') نر.م. د رقعه جمع؛ ۱) لنډې لیکنې؛ ۲) لیکونه؛ ۳) پینې؛ ٤) د یوه شي څیرې شوې برخې؛ ۵) د اوو لیکونو څخه یو ډول لیک دی.

رقبه (raqabá) ښځ.م. ۱) پراخوالی، مساحت؛ ۲) غاړه؛ ۳) مریی، غلام؛ ٤) هغه ځمکه چې یو چا ته د هغه تر مرګه پورې ورکړه شوې وي.

رقت (reqát) نر.م. ۱) نازکي؛ ۲) نرمي، لطافت؛ ۳) مهرباني، زړه سوی، رحم؛ ٤) شرم.

رقص (ráqəs) نر.م. و.ګ. رخس.

رقعه (roqʻá) ښځ.م. (ج. رقعې) ۱) خط، لیک؛ ۲) د کالو پینه؛ ۳) خ. یو ډول لیک دی.

رقم (raqám) نر.م. ۱) راز، ډول، قسم؛ ۲) انځور؛ ۳) لیک؛ ٤) عدد، نښه؛ ۵) پټ لیک.

رقوم۲ (ruqū́m) نر.ج. د رقم جمع؛ رقم لیک، یو ډول لیک دی چې هندسي اعداد او عوندې وي.

رقیب (raqī́b) نر.م (ج. رقیبان) ۱) حریف، رخی، سیال؛ ۲) څارو، ساتونکی، مراقب.

رقیق (raqī́q) ص. نر.م. ج. اوبرن، نری، اوبلن.

رک (rak) ص. نر.م. ۱) څرګند، ښکاره، جوت؛ ۲) رډ، ډانګ، پېیلی؛ ۳) بېخي، بالکل.

رکاب (rekā́b) نر.م. (ج. رکابونه) ۱) کړیب، یوه فلزي کړۍ ده چې د آس د زین دواړو خواوو ته راځړېږي.

رکابدار (rekābdā́r) ص. نر.م. جلودار، شاطر.

رکبه (rakbá) ص. نر.م. کبې، د ورشو یا شرځای ساتونکی، د کروندې یا فصل ساتونکی.

رک پک (rakpák) ق. بالکل، صریح او صاف، بېخي پاک او صاف.

رک روغ (rákroğ) ص. نر.م. روغ رمټ، روغ جوړ، بېخي جوړ.

رکړه (rakṛá) نر.م. وروړکه، ورورجانه، روکی.

رکښ (raks) نر.م. کرښه، نښه، اثر، خاپ، علامه، نښانه، رکښه، نښکه.

رکښه (ráksa) ښځ.م. ۱) نښکه، رکښ، نښه، علامه؛ ۲) په غره کې نری لار.

رکن (rókən) نر.م (ج. رکنونه، ارکان) متنه، بنسټ؛ ۲) مهم جز، سترتوک؛ ۳) د هر شي لویه برخه؛ ٤) لوی کار؛ ۵) د قوم مشر.

رکوتر (rkūtár) نر.م. ۱) غونهان، ناتوول شوی لرګی؛ ۲) مج. سوټی، لوړ، کوټک، ډنډه.

رکود (rukū́d) نر.م. ځای په ځای دریدنه، تپ دریدنه، دریدنه (د باد یا لویو).

**رکیبی** (rakebáy) نبغ.م. ۱)رکابي، بشقاب؛ ۲)نالبکی، نعلبکی.

**رکیک** (rakík) ص. نر.م. ج. ۱)سپک، بې ادبه؛ ۲)سست، بېکاره، ضعیف.

**رګ** (rag) نر.م. ۱)د ژوي په وجود کې نرۍ نل ډوله مجرا چې وینه او لنف پکې تېرېږي؛ ۲)فکر، نظر؛ ۳)رګی، لړیکی، رشته.

**رګ الوتنه** (ragalūtə́na) ا. د (زړه) درزا، ترپا، تربا.

**رګړی** (ragə́ray) نر.م. له تي بېل شوی ماشوم.

**رګ وپلې** (ragupléy) ا. پلـې او وژې، پلې او رګونه.

**رګپوهنه** (ragpohə́na) ا. د رګ پېژندنه، رګپوهه.

**رګ وهل** (ragwahə́l) مص. مت. ۱)د نونګ (نېشتر) په وسیله د بدن د وینې لېول؛ ۲)مج. بولې کول، متیازې کول.

**رګه** (rága) نبغ.م. ۱)لاره، واټ، جاده؛ ۲)نښه، نښانه، علامه؛ ۳)د تګ یو منځوي حالت.

**رګی** (ragáy) نر.م. رشته، خپلوي، قرابت، خښي.

**رګي** (ragí) ص. نب. ساړه وهلی، سورتود، ابګیر. چې پلاني رګي شوی دی.

**رمان** (rumā́n) نر.م. وګ. رومان.

**رمباړه** (rambā́ṛa) نبغ.م. ۱)د ښاروي آوازونه؛ ۲)مج. په اوږده آواز سرچیغه یا ناره

**رمبکتیا** (ramabaktyā́) نبغ.م. اداره، انضباط.

**رمبکه** (rambóka) نبغ.م. تېښته، تېښی، جوکه، راتوکېدلی فصل.

**رمبکی** (rambakáy) نر.م ۱)رمباړه؛ ۲)اړیکی، هغه سړی چې د یوه قوم یا یوې سیمې څخه غوره کېږي او د خلکو د خبرولو یا د امنیت د ساتلو دنده ترسره کوي.

**رمبوسی** (rambosáy) نر.م. راموسی، رامرسی، هغه هوسی چې مشک لري.

**رمبه** (rambá) نبغ.م ۱) برمه؛ ۲)یو اوسپنیز تېره آله ده چې په للون او ځښاوه کې کار اخلي.

**رمبی** (rambáy) نر.م ۱)وګ. رمبه۲)؛ ۲)د چمبار د کار یوه تېره آله ده چې څرمن پرې غوڅوي.

**رمټ** (ramát) دروغ د کلیمې سره یو ځای د تاکید مفهوم لري او د بشپړ روغ مانا ورکوي.

**رمز** (ramz) نر.م. (ج. رمزونه، رموز)؛ ۱)په پټه ویل؛ ۲)راز، پټه خبره، د زړه خبره.

**رمق** (ramáq) نر.م. ۱)آخرنی سلګی، وروستی دم؛ ۲)توان؛ ۳)لږه خواړه؛ ٤)د پسونو ګله.

**رمل** (rámal) نر.م. (ج. رملونه) ۱) پاسته ریګ؛ ۲) د یوه علم نوم دی چې د هغه سره کېدای شي د چا طالع وکتل شي؛ ۳) د ژړو مکعبونه دي چې په وړاندوینه کې کار ځني اخلي؛ ٤) د شعر د یوه بحر نوم دی؛ ۵) لږ باران؛ ٦) ډېرښت؛ ۷)د وحشي غوايي د پښو کړښې.

**رمنډ** (ramánd) ص. نر.م. ج. لوڅ، لغړ، برېنډ.

**رمول** (ramawúl) مص. مت. ۱) ترول، داړول؛ ۲)ښاروی څرځای ته بوول، پوول.

**رمه** (ramá) نبغ.م (ج. رمې) ۱) غله، دوزو، پسونو ... ګله؛ ۲)زوه، رمې، نو، خوه؛ هغه مواد چې له زخم څخه راوځي.

**رمه وال** (ramawā́l) ص. نر.م. د رمې خاوند.

**رمی** (ramáy) نبغ.م. رمه، زوه، خووه، نو.

**رمي** (ramé) نبغ.م. د پیچ په ناروغۍ کې هغه سپین مواد چې د ډکو متیازو سره خارجېږي.

**رمېدل** (ramedə́l) مص. ل. ۱)تربدل، داربدل، وېربدل؛ ۲)ښاروی څرځای ته بوول کېدل، پوول کېدل.

رمه يي (ranayí) ص. گله يي پسه، هغه پسه چي په رمه کې دي.

رنبی (ranbáy) نر.م. (ج. رنبي) و.گ. رمبی.

رنج (ranj) نر.م. (ج. رنجونه) کړاو، ربړ، تکليف.

رنجرومه (ranjrúma) ښځ.م. رنجوني، رنجنوني، رنجومه، رنجلومه، د رنجو کڅوړه.

رنجک (ranják) نر.ج. باروت، د توپک ميده دارو.

رنجکانی (ranjkáṇay) نر.م. د رنجو تيره.

رنجکه (ranjúka) ښځ.م. چلوبي، يو ډول سابه دي چي تاندوله هم ورته وايي.

رنجکی (ranjkáy) ښځ.م. د توپک د دارو کڅوړه.

رنجنی (ranjanáy) ص. رنجوته اړوند سرمه يي.

رنجه (ránja) ښځ.م. (ج. رنجي) ۱) خـرخـوری، ريتاړه، تريشه، وړه او نرۍ توکړ؛ ۲) کالي.

رنځ (ranj) نر.م. ۱) ناروغي، ناجوړي؛ ۲) کړاو.

رنځپوهنه (ranjpohéna) ا. د ناروغيو علم.

رنځره (ranjrá) نـر.ج. رانجيره، تنـزره، د لمنځي دوني د جررو تبل

رنځغاښي (ranjğāṣay) نر.م. انغښه، خجور، روغن جوشي، يو ډول کولچه ده.

رنځکه (ranjáka) ښځ.م. ۱) گونگی، ډنډوري، دانگوروري، ونبکالی؛ ۲) يو ډول سابه دي.

رنځور (ranjúr) ص. نر.م (ج. رنځوران) رنځمن، رنځري، ناروغ، ناجوړه، مريض.

رنځورغاړی (ranjūrğāṛay) ص.نر.م. رنځبدلی، دايمي ناروغ.

رنځورول (ranjūrawál) مـص. مت. نـاروغـه کول، ناجوړه کول، په رنځ اخته کول.

رنځوريار (ranjūryár) ص. رنځورمل، تيماردار.

رنځوريدل (ranjūredál) مص. ل. ناروغ کـېدل، ناجوړه کېدل.

رنځول (ranjawúl) مص. مت. ۱) کړول، ځورول؛ ۲) ناروغي اوړودول؛ ۳) خبره اوږدول.

رنځوونکی (ranjawūnkay) ص. ربـړوونکی، ځوروونکی.

رنځه (ránja) ښځ.م. ۱) و.گ. رنجه؛ ۲) ريخي، ريغ، ريخړبدنه، د ښاروي بهېدنه.

رنځېدل (ranjedál) مص. ل ۱) ناروغي دوامداره کېدل؛ ۲) کړېدل، ځـورېدل؛ ۳) کومه خبره يا موضوع اوږېدل؛ ٤) په نري رنځ اخته کېدل.

رند (rand) ص. نـر.م. ۱) ځـيـرک؛ ۲) دروغلی، درغونکی؛ ۳) بې پروا؛ ٤) تېز، چالاک.

رندکه (radáka) ښځ.م. داړه، پشکه، دوره؛ د ويښو يا اوبو پواړه (داړه).

رنده (randá) ښځ.م. رينده، تووړونی، د ترکانۍ يوه آله ده.

رندي (randí) ښځ.م ۱) ځيرکي؛ ۲) دروغتنه، حيله؛ ۳) بې پروايي، لاقيدي؛ ٤) چالاکي، تېزي.

رنـډ (ranḍ) ص. نـر.م. ج. ۱) خـړي، سرتمبه؛ ۲) اصرار کوونکی، بيا بيا غوښتونکی.

رنډه (rənḍa) ښځ.م. ۱) مېروبنه، د کوندې مقابل؛ ۲) غريبه، بې وزلې؛ ۳) يو ډول ونه ده.

رنډېدل (randedál) مص.ل. خړي کېدل، سرتمبه کېدل؛ ۲) ټېل کېدل؛ ۳) په تکرار سره غوښتنه کېدل؛ ٤) مېروبنه کېدل.

رنگ (rang) نـر.م. (ج. رنگونه) ۱) لون؛ هغه کيفيت چي د يو شي لـه ظاهره معلـوم شي؛ ۲) فز. هغـه اثر دی چي په سـترگه کې د نـور د انعکاس لـه کبله منځ ته راځي؛ ۳) راز، ډول، رقم، شان؛ ۲) څېره، بڼه، شکل، قواره.

رنگارنگ (rangāráng) ص. نر.م. ج. ډول ډول، قسم قسم، راز راز، رقم رقم، رنگ په رنگ.

**رنګ پنګ** (rangpáng) ص. نر.م. ج. په رنګ لړلی، په رنګ ککړ، لړلی.

**رنګټ** (rangát) نر.م. ينګټ، اينګټ، اينکۍ؛ په تاز سره ژوېدنه.

**رنګتی** (rangátay) نر.م. اورغالی، اوجاغ، اجاق، نغری، هغه فلزي نغری چې درې پښې لري.

**رنګرېز** (rangréz) نر.م. (ج. رنګرېزان) صباغ، هغه څوک چې جامې یا ټوکران رنګوي.

**رنګرېزي** (rangrezí) ښځ.م. ۱) رنګ تويونه؛ ۲) د رنګرېز کسب.

**رنګړی** (rangṛáy) ص. نر.م. رنګی بړينګی برنګړ، وانګی، هغه فصل چې ګڼ نه وي.

**رنګژړی** (rangžáṛay) ص. نر.م. ۱) رنګ ژېړی، رنګ زېړی، خجل؛ ۲) نر.م. ملامتیا، خرتیا.

**رنګوټ** (rangúṭ) نر.م. ټوکی، ټوکی عسکر.

**رنګول** (rangawə́l) مص. مت. رنګ ورکول، د رنګ په وسيله د يو شي ظاهري بڼه اړول.

**رنګه** (rangá) ص. نب. رنګلره، رنګ لرونکی.

**رنګي** (rangí) ص. نب. ۱) رنګه، رنګلره، ملون؛ ۲) دولي، رنګېز؛ ۳) ښځ.م. رنګرېزي.

**رنګېدل** (rangedə́l) مص. ل. رنګ اخستل، رنګ کېدل.

**رنګېز** (rangéz) ص. نر.م. ج. ۱) ښکلی، دولي، ښايسته، رنګېز؛ ۲) رنګلره، رنګه.

**رنګين** (rangín) ص. نر.م. ج. ۱) رنګارنګ، رنګلره، رنګ په رنګ، دول دول؛ ۲) ښکلی، رنګېز، دولي؛ ۳) رنګه، رنګلره.

**رنګين تال** (rangintál) ا. بېړۍ تال، سره زرغونه.

**رنه** (rə́na) ښځ.م. مثلث دوله پټی، درې ګوټی پټی.

**رڼ** (raṇ) نر.م. لومه شرمن، کېڅه شرمن.

**رڼا** (raṇá) ص. ښځ.م. (ج. رڼاګانې) ۱) روښنايي، رڼايي؛ ۲) روښانه، روڼه، رڼه، روڼ.

**رڼاګی** (raṇāgáy) ښځ.م. شين غاړی، پور ورو خړه مرغۍ ده.

**رڼايي** (raṇāyí) ښځ.م. ۱) روڼايي، روښنايي، روڼوالی؛ ۲) مج. سوکالي، آرامي.

**رڼغونې** (raṇaǧúne) ص. ښځ.م. تندرتيا، ليدرنا.

**رڼکی** (raṇakáy) نر.م. ۱) د غوړو شانته راوتلی هوکی؛ ۲) خلېدونکی، روڼ؛ ۳) ښکلی.

**رڼکۍ** (raṇakə́y) ښځ.م. بلورينه ماڼګه، ښيښه يي ماڼګه.

**رڼوب** (raṇób) ا. رڼوبی، شفافي اوبه.

**رڼوبی** (raṇóbay) نر.م. رتې اوبه، مقطري اوبه.

**رڼوڅای** (raṇoǰáy) نر.م. رڼوڅی، څړو، رڼا، هغه ځای چې کوچيان په خپلو کډيو کې د رڼا لپاره اور په کې بلوي.

**رڼوزی** (raṇúzay) نر.م. خفيفه رڼا، سپکه رڼا.

**رڼوکی** (raṇúkay) نر.م. ټپک، تندرکی، رڼګه، اجلغی، سحر، ډډونکی.

**رڼول** (raṇawə́l) مص. مت. ۱) روښانه کول، رڼا کول؛ ۲) پاکول؛ ۳) ښيښه په ويښه تېرول؛ ۳) تېرول، ورانول، د تېرول مقلوب؛ ۲) لېږل، رابېلول، راتېرول، لوږول، راشکول.

**رڼه** (raṇá) ص. ښځ.م. ۱) د روڼ مؤنث شکل، روڼه، شفافه؛ ۲) رېچه، د سپېږ هګۍ يا تخم.

**رڼېدل** (raṇedə́l) مص. ل. ۱) تېرېدل، ورانېدل؛ ۲) راجلا کېدل، شوکېدل، لوېدل، راتېدل.

**رو** [۱] (ro) ق. ۱) کراره، سوکه؛ ۲) ښځ.م. سلوي، روح، لروا؛ ۳) وګ. چست.

**رو** [۲] (raw) نر.م. ۱) نرۍ لاره؛ ۲) انډوخرا پورول لويه ده؛ ۳) روان، جاري؛ ٤) مج. تجويز.

**روا** (rawā́) ص. ښځ.م ۱) حلال، د حرام ضد، جایز، مشروع؛ ۲) مناسب، وړ.

**رواج** (rawā́j) نر.م. (ج. رواجونه) دود، دستور، رسم، عنعنه، لاره، باب، تداول، موډ.

**رواجول** (rawājawә́l) مص. مت. بابول، مروجول، دودول، شایع کول.

**رواجي** (rawā́jī) ص. نب. د دود، د رواج، رواج ته منسوب، مروج، شایع.

**رواجېدل** (rawājedә́l) مص. ل. بابېدل، عامېدل، رواج مونډل، دود کېدل، شایع کېدل.

**روادار** (rwādā́r) ص. نر.م. لوروونکی، پېرزو کوونکی، د پېرزو خاوند.

**رواش** (rawā́š) نر.م. ج. سخاربل، شوکری، ریې، پېنې، یو ډول تریو نبات دی چې د نهر یې په پاڼه او ومه ډول خوړل کېږي.

**رواشه ډوډۍ** (rawāšaḍoḍә́y) ښځ.م. شېتې، پاستې، چپاتې په نازکه او نرۍ ډوډۍ.

**روان** (rawā́n) ق. ۱) چالان، تلونکی، په حرکت کې؛ ۲) بهاند، جاري.

**روانول** (rawānawә́l) مص. مت. ۱) چالانول، په حرکت راوستل؛ ۲) بهول، جاري کول.

**رواني** (rawā́nī) ص. نب. روحي، داروا، د روان، په روح یا شعور اړوند.

**روانېدل** (rawānedә́l) مص. ل. ۱) چالانېدل، متحرک کېدل ۲) بهېدل؛ ۳) تلل، حرکت کول؛

**روایت** (rawāyә́t) نر.م. (ج. روایتونه، روایات) له چا څخه د یوه خبر یا حدیث نقلونه.

**روایتي** (rawāyatī) ص. نب. د روایت، په روایت اړوند.

**روب** (rob) نر.م. ۱) عزت، ابرو؛ ۲) پرتم، شان و شوکت، دبدبه؛ ۳) سام، وېره، اثر.

**روبنا** (robә̄nā́) ښځ.م. د ږېرنا مقابل، مخېنا، ابریا، اوبریا؛ د یوې ټولنې د روحیاتو، افکارو او عقایدو جوړنګ.

**روپک** (rūpák) نر.م. مو. د یوه مشهور تال نوم دی چې یوه لګه، یو درت او یو درت برام لري.

**روپندی** (rūpandә́y) نر.م. یو ډول ګانه ده چې ښځې یې د سینې د پاسه غوړندوي.

**روپۍ** (rūpә́y) ښځ.م. ج. پیسې، سکه، پول.

**روپیه** (rupyá) ښځ.م. ۱) د امیر شېرعلي خان د وخت پولي واحد؛ ۲) د هند، پاکستان، سیلون، نیپال او برما پولي واحد.

**روتون** (rotun) ا. تیخور تون، شوده خور.

**روټ** (roṭ) نر.م. ګردې، پنډه، خړه ډوډۍ ده.

**روټاک** (roṭā́k) ص. نر.م. ۱) بېباکه، بې پروا؛ ۲) شوم، کنجوس، ممسک.

**روټاکتوب** (roṭāktób) نر.م. ۱) روټاکوالی، بېباکي؛ ۲) شومتوب، کنجوسي.

**روټه** (róṭ(a)) ښځ.م. (ج. روټې) اوربشېنه ډوډۍ.

**روټۍ** (roṭә́y) ښځ.م. ډوډۍ، مړی، ټیکله.

**روټۍ غپ** (roṭә́yğáp) ص. نر. م. ج. ډوډۍ غپ، حریص، اروا وږی، وږسترګی.

**روجایي** (rūjāyí) ښځ.م. سوزنی، کټ ښاند.

**روچه** (rawčá) نر.ج. یو ډول سپین کرچني کوچني انګور دي چې تر نورو انګورو مخکې پخېږي.

**روځباره** (rwajbā́ra) ښځ.م. ورځنۍ اجوره، ورځ مزدوري، روزمزدوري.

**روځپاڼه** (rwajpā́ṇa) ښځ.م. روزګار ژوند، ګوزاره.

**روح** (r(ū,o)h) نر. ښځ.م. ۱) اروا، د جسم یا مادي مقابل، په ژوندیو موجوداتو کې حیاتي اساس یا اصل او د تحرک قوه.

**روحاً** (rūhan) ق. ذهناً، معناً، له روحي لحاظه.

**روحاني** (rūhānī) ص.نسب. ۱) د روح، روحي؛ ۲) مذهبي لارښود؛ ۳) پارسا؛ ۴) معنوي.

**روحانيون** (rūhāniyūn) نر.ج. مذهبي خلک، مذهبي پېشوايان، مذهبي اشخاص.

**روحي** (rūhī) ص.نسب. ۱) د روح، په روح اړوند، د ارواړ؛ ۲) د شعور، د مغز، د کړو وړو.

**روحيات** (rūhiyāt) نر.م.ج مع. جرأت، مورال.

**روحيه** (rūhiyā) ښځ.م. (ج. روحيې) ۱) جرأت، مورال؛ ۲) وضعه، وضعيت.

**روخ** (rux) نر.م (ج. روخونه) ۱) مخ، مقابله، مخامخ ۲) برابري، ورغ سمېدنه؛ ۳) رخ، په شطرنج کې هغه دانه چې په کونج کې ايښودله کېږي.

**روخی** (ruxáy) نر.م. د قبلې لوری، د قبلې پلو، د قبلې حوا.

**رود** (rud) نر.م. (ج. رودونه) ۱) خوړ، لګړ، سم؛ ۲) سيند، سين، درياب، بحر.

**رودبار** (rudbār) ص سر م. ۱) د سيند، د رود؛ ۲) رودي، هغه شکې چې له رود څخه اوبه يې.

**رودل** (r(o)ṛal) مص. مت. ۱) رول، روول؛ ۲) شېدل؛ ۳) رېيل، لوکول.

**رودونی** (rudūnay) نر.م. بې موره وری.

**روده** (rawdá) ښځ.م. ۱) لاره، سرک؛ ۲) نښه، علامه، اثر؛ ۳) نر.ج. رووړ؛ ۴) شيپښته؛ ۵) لوکاوه؛ ۶) اربنه.

**رودي** (rudí) ص. نسب. د رود، په رود اړوند.

**روده** (rūda) ښځ.م. ۱) الويه کولمه؛ ۲) د پوستکي يا بدن د پاسه نول شوی خيرې.

**روده مست** (rudamást) ص. نر.م. ۱) چېرګر، فقير، ګدايي ګر؛ ۲) حوار کېږجن.

**رودی** (rūday) نر.م. بودول توپک دی.

**رورو** [1] (rorō) ق. ورو ورو، سوکه سوکه.

**رورو** [2] (rāwrāw) ق. ژرژر، وندي وندي.

**روړه** [1] (roṛá) ص. نسب. ۱) کلک، سخت، ټينګ؛ ۲) وچکالي، سوکړه.

**روړه** [2] (roṛá) نر.م. ګبوله وږدی، ګبوړ، وږی.

**روړی** (roṛáy) نر.م. ۱) انګولا، د سپي کسوله؛ ۲) ريبع، ژغل، کار، غتي شکې، جغل.

**روزګار** (rozgār) نر.م ۱) د ورځو مجموعه، ژوند؛ ۲) زمانه، نړۍ؛ ۳) ګوزران؛ ۴) فصل، موسم؛ ۵) کسب، کارپېشه.

**روزل** (rozál) مص.مت. ۱) تربيه کول؛ ۲) پالل.

**روزلی** (rozálay) صف. نر.م. ۱) تربيه شوی؛ ۲) پاللی.

**روزمانه** (rozmāná) ښځ.م. کوند، د حيواناتو لګون وخت.

**روزنپوهاند** (rozanpohand) I. د روزنپوه، د روزنې (تربيې) عالم، آموزګار.

**روزنپوهنه** (rozanpohana) . د تربيې علم، د روزنې علم.

**روزنتون** (rozantún) نر.م. د روزنې ځای، ورکتون.

**روزونکی** (rozūnkáy) فا. نر.م ۱) تربيه کوونکی؛ ۲) پالونکی؛ ۳) پرستار، سرپرست.

**روزنی** (rozunay) ص. نر.م ۱) روزني، د تربيې؛ ۲) تربيه کوونکی، روزونکی.

**روزنيز** (rozaniz) ص. تربيتي، تربيوي، د تربيې اړوند.

**روزي** (rozí) ښځ.م. ۱) شوري، رزق، خواړه؛ ۲) قسمت، برخه.

**روزينه** (rozína) ښځ.م. توښه، ورځني خواړه.

**روژتي** (rožatí) ص.نسب. روژه دار، روژه نيوونکی.

**روژه** (rōžá) ښځ.م. (ج. روژې) صوم، د اسلام د دين له پنځو بناوو څخه دريمه بنا ده.

روژه کالی (rožǝkālay) نر.م. صائم الدهر، هغه شوک چې پوره کال روژه ونیسي.

روژه ماتی (rožamátay) نر.م ۱) د روژې ماتولو وخت، د افطار وخت؛ ۲ روژې ماتولو خواړه.

رووړ (rūẓ) ص. نر.م. روږدی، اموخته، عادي، بلد، اشنا.

رووړ تیا (rużtyā) ا. و.گ؛ روږدوالی.

روږدوالی (rūẓdwālay) نر.م. روږدېدنه، اموخته کېدنه، روږدتوب، بلدتیا، بلدېدنه.

روږدول (rūẓdawəl) مص. مت. روږدی کول، عادت ورکول، اموخته کول، معتادول، بلدول.

روږدی (rūẓday) ص. نر.م. (ج. روږدي) بلد، عادي، اموخته، اشنا.

روږدېدل (rūẓedəl) مص.ل. عادت کېدل، اموخته کېدل، ولډېدل، بلدېدل، اشنا کېدل.

روږي بوږي (rūẓibūẓi) ص. نب. ۱) خېږ پېږ، مېده مېده، ریږې ریږې.

روست (rost) ص.نر.م(ج. رواسته) ۱) وروست، خورین؛ ۲) خوسا، پوده.

روستاری (rūstāray) نر.م. (ج. روستاري) ۱) لاخه، وروستاري، سفکس، یوه ضمیمه ده چې د نورو کلیمو په پای کې نښلي..

روستاري (rūstāri) ښځ.م. هغې پتې چې دخره ترلکی لاندې تېره او سرونه یې په کټې نښلي.

روستنی (rūstanáy) ق. م. (ج. روستني) آخري، وروستنی، آخرین، د ټولو په پای کې.

روستوالی (rwastwalay) نر.م. ۱) وروستوالی، خوساوالی؛ ۲) خورین والی، زیات پخوالی.

روسته (rūsta) ق. و.گ. وروسته.

روستېیل (rūstebál) ق. شاته، روسته، وروسته، ترشې، اوستریل.

روش (rawiš) نر.م(ج. روشونه) ۱) چلند، چلښت، گوزاره، چلېدنه؛ ۲) دود، دستور.

روشنفکر (rošanfikar) ص. نب. و.گ. روښاند.

روشي بوتی (rūšaybūtay) نر.م. شیبشتو غونډې پر غرنی بوټی دی.

روښان (rosān) ص. نر.م. ج. ۱) روښانه، روڼ، ځلانده؛ ۲) څرګند، ښکاره؛ ۳) نر.م. د پښتنو مبارز شخصیت چې، په پیر روښان مشهور و.

روښانتوب (rosāntób) نر.م. روښنايي، رڼایي، روښانتیا.

روښانتیا (rosāntyā) ا. و.گ.: روښانتوب.

روښاند (rosānd) ص. نر.م. ۱) روښان اندی، روشنفکر، پوه؛ ۲) د مترقي پوهې خاوند.

روښانول (rosānawəl) مص. مت. ۱) رڼا کول، رڼول؛ ۲) ښکاره کول، جوتول.

روښاني (rosāni) ص. نب. ۱) د روښان، روښان ته منسوب؛ ۲) د پیر روښان د نهضت لاروی.

روښانېدل (rosānedəl) مص. ل. ۱) رڼا کېدل؛ ۲) جوتېدل، څرګندېدل؛ ۳) ځلېدل.

روښنايي (rosnāyí) ښځ.م. رڼایي، نور، ځلا.

روښه (rosá) ښځ.م. حلوا، وریشه، ورېلې.

روښه وال (rosawāl) ص.نر.م. روښي، حلوایي، هغه څوک چې حلوا پخوي یا خرڅوي.

روښه ونه (rosawána) ښځ.م. د کېلې ونه.

روضه (rawzá) ښځ.م. ۱) باغ، بڼ؛ ۲) ګلزار، ګلستان؛ ۳) شنېلې، سبزه زار، شنه.

روغ (roğ) ص. نر.م. ۱) جوړ، سالم، تندرست؛ ۲) سم، بې خوږه؛ ۳) صادق، بې جنجاله.

روغبر (roğbár) نر.م. ستړي مشي، روغ جوړ.

روغتون (roğtún) نر.م. شفاخانه، د ناروغانو د علاج او درمل ځای.

**روغتیا** (rōğtyā́) ښځ.م. روغوالی، روغتوب، جوړوالی، جوړتیا، صحت، حوږښت.

**روغتیا پال** (rōğtyāpā́l) ص. نـر.م. د عامې روغتیا هغه مامور چې د خوراکي شیانو صحي څارنې دنده لري.

**روغتیا پوهنه** (rōğtyāpōhaná) ا. صحت پوهنه، د روغتیا عالم.

**روغتیا ساتنه** (rōğtyāsātaná) ا. روغتیا ته پاملرنه.

**روغتیامل** (rōğtyāmál) ص. د روغتیا ملګری، وګ. روغتیا پال.

**روغتیاوال** (rōğtyāwā́l) ص. سرطبیب، مشر ډاکټر (طبیب).

**روغتیایي** (rōğtyā́yī) ص. د روغتیا اړوند.

**روغ جوړ** (rōğjóṛ) ص. نر.م. روغ رمټ، بـالکل روغ، صحیح سالم، روغ رمټ، روغ رمی.

**روغلیک** (rōğlík) ا. روغه لیک، سوله لیک، راضي نامه.

**روغني** (rōğaní) ص. نب. ۱) د غوړیو، د غوړو؛ ۲) هغه دوډۍ چې په کې غوړي اچول شوي وي.

**روغنیات** (rōğaniyā́t) نر.ج. ۱) ګریس، ویکم، تېل، غوړي؛ ۲) د حربي او غیر حربي وسایطو او وسلو محروق او غیر محروق مایع مواد.

**روغ نیتي** (rōğnyatí) ښځ.م. سپین نیت، اخلاص، صداقت، مینه، پاک نیت.

**روغوال** (rōğwā́l) ص. د روغې منځګړی، پخلا کوونکی.

**روغوالی** (rōğwā́lay) ص. نر.م. روغتوب، روغتیا، جوړوالی، سلامتي، جوړتیا.

**روغول** (rōğawə́l) مص. مت. ۱) جوړول، شـفا ورکول، سـه کول، سازول؛ ۲) سمول، ترمیمول؛ ۳) پخـلا کـول، جـوړه راوستل؛ ٤) رغول، بخښل، د دښمن جزا بخښل.

**روغه** (rōğá) ښځ.م. (ج. روغې) ۱) جوړه، سوله، پخلاکېدنه، صلح، موافق؛ ۲) ص. ښځ.م. د روغ مؤنث؛ ۳) سمه، ساکره، درسته، صحیح.

**روغه وال** (rōğawā́l) ص. نر.م. منځګړی، درې منځګړی، دریمګړی، هغه څوک چې د دوو دښمنو ترمنځ روغه راولي.

**روغه کوونکی** (rōğakawúnkay) ف. نر.م. مرکچي، هغه څوک چې سوله یا روغه کوي.

**روغېدل** (rōğedə́l) مص. ل. ۱) جوړېدل، شفا موندل، سازېدل، صحت موندل؛ ۲) ترمیمېدل، سمېدل؛ ۳) عفو کېدل، بخښل کېدل؛ ٤) پخلا کېدل، جوړه راوستل.

**روف** (rawū́f) ص. نـر.م. رؤوف: ۱) مهربان، مشفق؛ ۲) د لوی څښتن یو صفت دی.

**روک**[1] (rūk) ص. نـر.م. ۱) پاک زړی، صـدق، بې آلایشه؛ ۲) بې وته، بې غشه؛ ۳) ښـرګند، جوت، واضح، کره.

**روک**[2] (rōk) نر.م. د بره کې (برکه) له توکـر څخه جوړ شوی پتلون.

**روک**[3] (rwák) ص. نر.م.ج. ۱) روک، غایب، له نظـره نیهـام؛ ۲) الـوزول، کـېول؛ ۳) د ملي شتمنۍ غلا، اختلاس، بدعنواني.

**روک پوک** (rúkpūk) ص. نر.م. وګ. رک پک.

**روکو** (rōkó) نر.م. د مشـر ورور لقب.

**روکه خبره** (rūkaxabə́ra) ص. ښځ.م. ښرګنده او روښه خبره، ربښتیا خبره.

**روکه روپۍ** (rūkarūpə́y) ص. ښځ.م. ناقلبه روپۍ، هغه روپۍ چې بدله او کوټه نه وي.

**روکی** (rōkáy) نـر.م. ورروکی، د ورور مصغر.

**روگ** (rug) نر.م. (ج. روگونه) ۱) د ښېلی تسمه، د کمربند تسمه، پټی؛ ۲) دسنیو پرتوک.

**روگ بوگ** (rughbúg) ص. نر.م. ج. روگې بوگې، شیرې ویرې، شیرې پیرې، بړه بړه.

**روگه** (rwúga) ښځ.م. وروه، ورگه، ورگیې، کیکه، رغانځه، یو ډول حشره ده.

**روګی** (rawgáy) نر.م. د رو مصغر، نری لاره.

**رول** (rol) نر.م. ۱) نقش، سهم، برخه، پارټ، عمل؛ ۲) قاعده، اصول، مقررات؛ ۳) کره، کری.

**روم** (rawam) ف. چوېم، دروډلو او رولو څخه د مفرد متکلم جوړه شوې صیغه.

**روماتیزم** (romātízím) نر.م. رماتیسم، د بندونو درد، د مفصلو درد، د مفصلو باد.

**رومال** (rūmā́l) نر.م. دسمال، رومیال، ریمال.

**رومان** (romā́n) نر.م. (اد.) رمان، رومانس؛ حکایت، داستان، افسانه، ناول؛ د واقعي پېښو او حوادثو کیسه چې هیجان راپاروي.

**رومانتیک** (rūmāntík) ص. نر.م. ج. رمانتیک ۱) داستاني؛ ۲) قهرمانی دوله اتل؛ ۳) تخیلي شاعرانه؛ ۴) موهوم، خیالي، احساساتي.

**رومي** (rumi) نر.م. ۱) رومي عددونه، هغه حروف چې د عددونو پر ځای کارېږي؛ ۲) باتینګر.

**رون** (rūn) نر.م. (ج. رنونه) ورون، پتون.

**رون** (rown) ق. رون، وار، نوبت، شل، چل.

**روند** (rawánd) ص. نر.م. جاري، بهاند، روان، تلونکی، رهي، روند.

**روندی** (rawandáy) ص. نر.م. ۱) اله سه، اسهال شوی؛ ۲) روند، تلونکی، د تګ په حال کې.

**رونسانس** (rūnsā́ns) نر.م. رنسانس؛ بیا ناله ۵ سر؛ ژوندی کېدنه، حیاتي تجدید، نوی ژوند. دصنعت، پوهنو، هنرونو او ادبیاتو ستره احیا

**رونق** (rawnáq) نر.م. ۱) ښېوالی، سمسوالی؛ ۲) امیج، خوند؛ ۳) ښکلا؛ ۴) پرتم، شان؛ ۵) پرمختیا؛ ۶) ځلا، ځلېدنه.

**رونګ** (rūng) نر.م. هغه لرګی چې د سپاري د کوندې په منځ کې وي.

**روني** (ronáy) ښځ.م. تی رودونکې نجلۍ.

**روڼ(۱)** (ráwaṇ) ق. ۱) وار، پلا، ځل؛ ۲) نر.م. نظم، ترتیب؛ ۳) یو ډول د توپ ګولۍ ده.

**روڼ(۲)** (rūṇ) ص. نر.م. (ج. رانه) ۱) ځلاند، ځلند، روښان؛ ۲) ښکاره، څرګند.

**روڼاندی** (rūṇánday) ص. روښاندی، روښانفکر، روښان خیاله.

**روڼ خپلواک** (ruṇxpə́lwāk) مخنی خپلواک (واول)، د خولې د تشې په مخنی برخه کې ادا کېدونکی واول.

**روڼکی** (rūṇkáy) نر.م. وګ. رنکی.

**روڼګه** (rúṇga) ښځ.م. (ج. روڼګې) رنګه، تپک، ښته، شقیقه، د غوږ او تندي ترمنځ برخه.

**روڼګی** (rūṇgáy) نر.م. ۱) د غوږ شانه وتلی هـ … ګی؛ ۲) د روڼ(۲) مصغر.

**روڼګی** (rūṇgí) ښځ.م. ۱) ریچه، دسپیې هګۍ؛ ۲. … روڼ مصغر.

**روڼل** (rūṇál) مص. مت. رڼا کول، روښانه کول.

**روڼلی** (rūṇə́lay) مصر. نر.م. (ج. روڼلي) رڼا شوی، روښانه شوی، روڼل شوی.

**روڼوالی** (rūṇwā́lay) نر.م. روښنایي، رڼایي.

**روڼول(۱)** (rūṇawúl) مص. مت. ۱) روښانه کول، رڼا کول؛ ۲) رب ته ښکاره کول؛ ۳) پاکول؛ ۴) شپه په وېښه تېرول؛ ۵) دعوا فیصله کول.

**روڼول(۲)** (rawṇawúl) مص. مت. … ؛ ۲) ترتیبول، منظمول.

**روڼوونی** [1] (rūṇawūnay) نر.م. هغه آله چې په رڼا کولو کې کار ترې اخیستل کیږي.

**رونوونی** [2] (rawṇawūnay) نر.م. ۱) منظمونکی و تنظیم آله، ۲) د ولړ شی.

**رونه** (rūṇa) نر.م ۱) روښانه، د رون مؤنث؛ ۲) رڼي، یو ډول غرنی نبات دی.

**رونه سترگه** (rūṇastarga) ښځ.م. رڼه سترگه، د سبا سترگه، سهار سترگه، د سهار ستوری.

**رونی** (rūṇay) ص.نر.م ۱) صیقل؛ ۲) اونی، رڼی، وروني، اوربني.

**روڼی** (roṇay) ښځ.م. په تې پوري جینی.

**روڼېدل** [1] (ruṇedál) مص.ل. ۱) روښانه کېدل؛ ۲) رڼا ته پکاره کېدل؛ ۳) پاکېدل.

**روڼېدل** [2] (rawṇedál) مص.ل. ۱) په ولړ کېدل، په نوبت کېدل؛ ۲) ترتیبېدل، منظمېدل.

**روول** [1] (rawawál) مص. مت. رودل، چوشل.

**روول** [2] (rawawál) مص. مت. جاري کول، عادي حالت ته اړول، چالانه کول.

**روونی** (rawūnay) فا.نر.م. رودونی، رودونکی، په تې پوري، شیدې خورونکی، تی خور.

**رووي** (rowí) ف. روي، رودي، له تي څخه شیدې خوري، د مفرد غایب صیغه ده.

**رووی** (rowáy) نر.م. د دوی شخولی (طبراق).

**روه** (roh) نر.م. پښتونخوا، پښتونستان، د پښتنو ټاټوبی.

**روهستان** (rohstān) د پښتنو ټاټوبی، د پښتنو هیواد.

**روهني** (rohaní) ښځ.م. مو. د شمسي ټر له ۲۲ گڼو درجو څخه د یوې درجې نوم.

**روهي** (rohí) ص.نب. ۱) روه ته منسوب، پښتون؛ ۲) نر.م. آروهي، د سندرو ویلو په وخت کې له لوړې نه سُر څخه تر اووم سُره پورې داواز جگول.

**روهېدل** (rohedál) مص.ل. ۱) رویېدل، د غرلي جنگ کول، غوږ کول؛ ۲) نر.م. رویېدل، صبيي، وزي او بچیان سره یو ځای اولزونه کول.

**روهیله** (rohilá) پښتانه، پښتون قام، پښتون ټبر.

**روهیلی** (rohhiláy) پښتون، د روه استرگی، روه مېشت، د روه اوسېدونکی.

**روی** (ráway) ص. نر.م. ۱) زورور، تېز، شوخ، رند؛ ۲) خراب، سپک؛ ۳) روی، حریص؛ ۴) بلا؛ ۵) زوره، یو ډول وېني څښونکی چنجی.

**روي** (rawí) اد. ۱) د رودلو د مفرد غایب صیغه ده؛ ۲) د قافيې اصلي حرف چې د قافيې مدار گڼل کیږي؛ ۳) پري؛ ۴) باراني وريځ؛ ۵) پرېمانه او خوړې لوبه؛ ۶) ساقي؛ ۷) سېراب.

**روي** (ráwe) ښځ.م. بلا، شیشکه.

**رویبار** (roybár) ص. نر.م. و.گ. رېبار.

**روي توب** (rawitób) نر.م. ۱) روی توب، روی والی، چالاکي؛ ۲) سپکوالی؛ ۳) حریص.

**رویداد** (ruydád) نر.م. ۱) پېښه، واقعه، حادثه؛ ۲) ماجرا، شخړه، مناقشه.

**روېدل** (rawedál) مص.ل. ۱) بیا بیا وېل کېدل؛ ۲) جاري کېدل؛ ۲) مص. مت. شیدې رودل. شیدې روول.

**رویزه** (rwíza) ښځ.م. وروشی، ورابانې؛ هغه څه چې د هلک له لورې د جلکۍ کورته ورځي او له ناوې سره بېرته راځي، دلوړنه.

**رویمال** (ruymál) نر.م. و.گ. رومال.

**رویه** (rawiyá) ښځ.م. (ج. رویې) سلوک، گوزاره، چلند، چلېبت، وضعیت.

**رویي** (royí) ص.نب. د جستو، له جستو څخه جوړ، د زینکو، د زینک.

**رهبان** (ruhbān) نر.م. راهب، پارسا، عابد.

رُهبانیت (ruhbā́niyat) نر.م. د راهب او راهبي طریقه یا ایین: ۱) دنیا پرېښودنه؛ ۳) انزوا؛ ٤) دلذایذو څخه ځان ژغورنه.

رهبر (rahbár) ص. نر.م. لارښود، سرغندوی، سرغندول، سروال، پېشوا، رهنما، لیډر.

رهته (rahátа) ښځ.م. آرامي، سوکالي، راحت.

رهټ (raháṭ) نر.م. لرټ، ارهټ، ارهټ.

رهدار (rahdár) ص. نر.م. ج. وګ. رادار (؟).

رهزن (rahzán) ص. نر.م. راهزن، لاره وهونکی، شوکمار، قطاع الطریق، باندیت.

رهګذر (rahgūzár) ص. نر.م. ۱) لاروی، په لاره تلونکی؛ ۲) امله، نظر، درک، لحاظ.

رهن (ráhan) نر.م. (ج. رهنونه، رهان) ګرو، ګروي.

رهنما (rahnamá) ص. نب. ۱) لارښود، سروال، رهبر، لیډر؛ ۲) د لارښود، د لارښوونې.

رهي (rahí) ق. روان، په حرکت کې، په یون کې.

رهېدل (rahedál) مص.ل. اتېدل، ینګېدل.

رهیل (rahél) نر.م. ریل، مرحل، د ضرب (×) د نښې غوندې یو لرګین آله ده چې په پورتنۍ برخه کې قرآن مجید پر اېږدي او تلاوت یې کوي.

ري (ré) ښځ.م. ۱) د «ر» توري اواز او تلفظ؛ ۲) مو. ریکب، رکهبه، په ختیځه موسیقۍ کې له لوړه ګونو سرو څخه دوهم سُر.

ری (ráy) نر.م. ۱) رایه، رأی؛ ۲) فکر، سوچ؛ ۳) مج. د چای قیمت.

ریا (۱) (riyā́) ښځ.م. ځان ښودنه، تظاهر، منافقت.

ریا (۲) (rayā́) ښځ.م. انګېښنه، د خره انهېدنه او ناري.

ریاست (riyāsát) نر.م. ۱) دیوه وزارت د تشکیل لویه اداره؛ ۲) مشري؛ ۳) دولت، حکومت.

ریاسي (riyāsí) ص. نب. نر.م. (خ.) ریاسي لیک، یو دول رسم الخط و چې د مامون الرشید په وخت کې یې رواج درلود.

ریاشه (riyāśá) ښځ.م. رشه، ریشه، هغه برمن چې پاک شوی او اخستلو ته چمتو وي.

ریاضت (riyāzát) نر.م. ۱) د نفس د پاکولو لپاره ریږګالنه؛ ۲) د تفکر او عبادت لپاره ګوښه کېښستنه؛ ۳) تمرین؛ ٤) کوښښ، زیار.

ریاضي (riyāzí) ښځ.م. (ج. ریاضیات) ۱) حساب هندسه، جبر او مقابله؛ ۲) هره هغه پوهنه چې د کمیتو او عددو سره سروکار لري.

ریاکار (riyākár) ص. نر.م. ۱) ریاکوونکی، ځان ښکاروونی، تظاهرکوونکی؛ ۲) منافق.

ریبار (raybár) ص. نر.م. (ج. ریباران) ۱) اروبیار: د درو کورنیو ترمنځ د خپلوۍ د رامنځ ته کولو سری؛ ۲) قاصد.

ریبځ (rebáj) ښځ.م. ریبځونی، جارو، جاروب.

ریبځ بوټی (rebajbuṭay) نر.م. ترخه، پنی، هغه بوټی چې جارو ترې جوړیږي.

ریبځی (rebājay) ص. نر.م. چټلر، جاروکش.

ریبدل (rebdál) مص. مت ۱) ریبل، لوکول، لوول؛ ۲) غوځول، پرې کول.

ریبدون (rebdún) نر.م. یوه غته ونه ده چې سرور ګل کوي: خوږ بوی لري.

ریبل (rebál) مص. مت. ۱) ریبدل، لوکول، لوول؛ ۲) غوځول، پرې کول.

ریبلیکه (reblīká) ا. مایل خط، ریبه کرښه.

ریبند (rebánd) ص. نر.م. ۱) ریوند، سم، نیمغ؛ ۲) هغه لاره چې په غره کې اوږده تللې وي؛ ۳) ښکنګن، کوږ، منحني.

ریبندتوب (rebándtōb) نر.م. ۱) ریبندتیا، ریوندتوب، ریندتیا، ریبندوالی؛ ۲) اوږدوالي، اوږدي؛ ۳) ښکنګن توب؛ ٤) کوږوالی.

ربندول (rebandawal) مص.مت. ۱) ربندول، ربوندول؛ ۲) اوارول؛ ۳) ځنګزنول؛ ۴) کږول.

ربنده لار (rebandalar) نښ.م. ربونده لار، هغه نرۍ لار چې په غره کې کږه وږه تللې وي.

ربندېدل (rebandedal) مص.ل. ۱) ربندېدل، ربوندېدل؛ ۲) اوارېدل؛ ۳) ځنګزېدل؛ ۴) کږېدل

ربنه (rebana) نښ.م. (ج. ربنې) ۱) ربنده، لو کول، ربودنه، لونه؛ ۲) غوځونه، پرېکول.

ریپړی (ripray) نښ.م. ۱) لیپړی، ختې، چکړ؛ ۲) خړه، خړوبې.

• ریتاړه (ritara) نښ.م. ریخه، خرخوری، ربتانګه، چیږه، ربنبکۍ، روتاړه، لوتاړه.

ریتم (ritam) نر.م. ۱) وزن، آهنګ، تال، ضرب؛ ۲) میزان، سُر؛ ۳) سجع؛ ۴) قاعده، روش؛ ۵) درجه، اندازه.

ریتې پیتې (ritepite) ص.نب. ۱) څیري پیري، څیرې ویرې؛ ۲) ګارې وارې.

ریټ (ret) نر.م. (ج. ریټونه) نرخ، بیه، قیمت.

ریټه[1] (reta) نښ.م. یو ډول ونه ده چې غوندې دانې کوي او د صابون پرځای استعمالوي.

ریټه[2] (reta) نښ.م. و ګ. روټه.

ریج [1] (rej) نر.م. و ګ. رژ.

ریجه (reja) نښ.م. ژوندری، یوه آله ده چې زرګران د زرو تارونه پکې وباسي.

ریچ (ric) نر.م. ۱) کاڼ، جغل، شګې، وړې تیږې؛ ۲) ص.نب. میده میده، ذره ذره.

ریچ پیچ (ricpic) ص.نب. ریچې ریچې، میده میده، ریچ ریچ.

ریچ پیچس (ricpes) نر.م. ریچوغ، هغې پرمنځې چې غابنونه یې د تار په واسطه تړلې وي او د سر له ویښتانو څخه ریچې پرې راوباسي.

ریچن (rican) ص.نر.م. ریچې لرونکی؛ هغه څوک چې سر یې له ریچو څخه ډک وي.

ریچه (rica) نښ.م. د سپیږي هګۍ.

ریچې ریچې (ricerice) ص.نب. ۱) ریچ ریچ، میده میده، ذرې ذرې؛ ۲) له ریچو ډک.

ریحان (ray han) نر.م. ۱) بوېری، بیری، کشمالې؛ ۲) هره شنه او خوشبویه ګیاه؛ ۳) ص.نر.م. ریحان لیک، ثلث ته نږدې یو ډول لیک دی.

ریخ (rix) نر.م. ۱) دست، سیره، اوبرن غایطه مواد؛ ۲) پنجاق، یو ډول لوبه ده.

ریخاړي (rixari) نښ.ج. ریخ. سیري، نرم اوبه لرونکي دستونه.

ریختاړه (rixtara) نښ.م. ۱) ریخاړي، سیري، ریخ؛ ۲) ریتاړې او شکېدلې جامې.

ریخچاړي (rixcari) ص.نب. خیرن او بېرسر.

ریخک (rixak) نر.م. ۱) ریخی، ریخړی، د وزو او میږو د ریخ مرض؛ ۲) د غوزو یو ډول لوبه ده

ریخل (rixal) مص.ل. ۱) ریخ کول، دستونه کول؛ ۲) مج. کار ترې ویجاړېدل، کار ترې شړېدل.

ریخول (rixawal) مص.مت. بهول، په ریخ راوستل، د نسه ایله کول، په دستونو کول، اسهالول.

ریخه (rixa) نښ.م. ۱) ریتاړه، خرخوری، چیږه؛ ۲) ربنبه، د قناویز هغه ټوټه چې ورېښم پرې ګنهل شوي وي.

ریخي (rixi) ص.نب. و ګ. ریخن.

ریخی (rixay) نر.م. سېږي، اسهال، د څارویو بهېدلو او له نسه کېدلو ناروغي.

ریخېدل (rixedal) مص.ل. سېرنېدل، بهېدل، اسهالېدل، د څارویو بهېدل.

ریدوان (redwan) نر.م. ربدون، یو ډول ونه ده.

ریدی (reday) نر.م. خاتول، غاتول، یو ډول ګل دی.

ري ري (rere) ښځ.م. د اوبنو د رابللو ناري.

ريړ (rer) نر.م(ج. ريړونه) کنار، چپل، لين، قطار.

ريږم (reram) نر.م. (ج. ريږمونه) ريمان، مرجان، يو دول سور غمي دی.

ريږی (reray) نر.م. هغه پسه چې د تندي د پاسه سپين خاپ ولري.

ريږ (rez) نر.م. ۱) د جل (قزلاق) او نورو مرغيو اولز؛ ۲) له ونو څخه د مرغيو رابنکته کېدنه؛ ۳) ريښ. برف کوچ؛ ٤) توېيدنه، غورځېدنه؛ ۵) ص. نر.م. ذري ذري، ميده ميده؛ ٦) ور. د وروستاري په توګه کليمو په پای کې راځي؛ ۷) اراشي، د وارو ښوېيدنه.

ريږش (rezas) نر.م. ريزښ، سرو وهل، والګی، زکام، يو ساري ناروغي ده.

ريږ مريږ (rezmarez) ص. نر.ج. ۱) ذري ذري، ميده ميده؛ ۲) دل شوی، نابود شوی.

ريږه (reza) ښځ.م. وره، ميده، ماته.

ريږون (rezawan) نر.م. ۱) رژون، ريږونه، ميده کول؛ ۲) توريونه، څيونه.

ريږېدل (rezedal) مص. ل. ۱) رژېدل، توېېدل؛ ۲) شېنېل، له کوم دانه دار شي څخه داني بېلېدل

ريږد (rezd) نر.م. لړزه، ريږدېدنه، خوځېدنه.

ريږدان (rezdan) نر.م. ترېدنه، ريږدېدنه، خوځ لړزېدنه، ښورېدنه.

ريږدله (rezdla) ا. خمکريږد، زلزله.

ريږدله مېچ (rezdlamec) ا. د زلزلي مې زلزله سنج.

ريږدن (rezdand) نر.م. ريږدېدنه، لړزېدنه.

ريږدول (rezdawal) مص. مت. ترول، لړز

ريږدېدل (rezdedal) مص. ل. لړزېدل، ښ خوځېدل، منجېدل، ترېدل.

ريږوی (rezway) نر.م. د پسونو يا وزو اوازونه.

ريسرچ (risarc) نر.م. پلټنه، تحقيق، تتبع.

ريښ (res) نر.م. د ريښلو طرز او طريقه.

ريښا (resa) ص. نب. باوري، اعتباري، معتمد، اعتمادي، د اعتبار ور.

ريشمب (risab) نر.م. و.ګ. ريکب.

ريشخند (risxand) نر.م. پيشاره، ملنډه.

ريښل (resal) مص. مت. وريښل، ورتل، ريسل، وريسل، ورې سنې کول.

ريښکاره (riskara) ښځ.م. د جوارو د وريو د دانو کتار.

ريښم (resam) نر.ج. و.ګ. وريښم.

ريښمانګی (resmangay) ص. نر.م. وريښمين، د وريښمو.

ريښم چنجی (resamcanjay) نر.م. وريښم چينجی، د وريښمو چينجي.

ريښه[1] (risa) ښځ.م(ج. ريښي) ۱) جره، وليې، وله؛ د بوټي يا ونې هغې برخې چې په ځمکه ننوځي؛ ۲) ګر. محور ستم، د کليمو هغې برخې مختاري او وروستاري ورسره منبلي؛ اد. ښځ. اساس؛ ٤) اصل، آر.

(ra ښځ.م. چيره، ريتاره، هغه توکر په وخت کې يې ښځوته ورکوي.

ښځ.م. رنجه، کښيده، د ښځو د کميس وريښمو يو دول ګنډل شوی نقش ده.

(risarisa) ص. ښځ.م. توټې توټې،

(rifrandan) نر.م. رفراندوم، رفرندم، خلکو نظر غوښتنه.

(rifora) نر.م. رفورم، اصلاح، تصحيح، تهذيب.

ریکاټ (rikat) اتر.م. تیکلی، گراماقونی ریکارد، یو ریکارد دی چې اواز په کې ثبت وي. ي.

ریکارډ (rikard) نر.م. (ج. ریکارډونه) ریکرډ، ۱) سابقه، تیر شوي کرایف؛ ۲) درجونه، درج؛ ۳) په لوبو یا ورزشونو تر ټولو لوړه درجه چې د یو چا په نامه ثبت شي؛ ۵) اثرګند هر یا لیتوب.

ریکب (rikab) نر.م. (صو.) رکیبه، د اوره ګوټو سرو شخه د دوو هم سر نوم.

ریکشا (riksa) ښځ.م. کوچنۍ موټر دوزله نقلیه وسیله ده.

ریکلام (riklam) نر.م. رکلام، ۱) خبرونه، اعلان، اګاه کول، اعلامونه؛ ۲) شهرت، نوم.

ریګ (reg) نر.م. ج. ۱) سول. شګه، د سره سولول شور او متلاشي شور تیږو سره ایله توکي.

ریګبومه (regboma) ص. نب. ریګي، شګلنه، سرلینه، هغه ځای چې ډېرې شګې ولري.

ریګریشن (regresan) نر.م. ۱) اشانه تلنه، قهقرایي مسیر؛ ۲) بیرته منځ ته راتلنه، عود.

ریګماهي (regmahay) نر.م. شګ کب، یو ډول ماهي دی چې په وچه او لوبو کې ژوند کوي.

ریګویدا (regwida) نر.م. رګوید؛ ۱) اریایي معلوم سرودونه د (ویدي سرودونو) یا یوانۍ: (ویدا) په نوم و یاد یږي.

ریګي (regi) ص. نب. ریګبومه، شګلن. . ر ګ.

ریل (rel) نر.م. اورګاډی، تیرین، ګاډی، په ... نسنیه وسیله ده.

ریل (ryal) مص. ل. ۱) ریهیل، نبي جاري، نيږندنه، د خره ناري او انهاري؛ ۲) و ګ. رهیل.

ریلوني (relunay) نر.م. یې موره وري.

ریله (rela) ص. نر. ښځ.م. رودي، رودبار، ... خلک یا څمکه چې د سهند شخه ګټه اخلي.

ریمان (riman) نر.م. ریوم، مرجان، یو ډول سره داني دي چې په مزي کې یې پیي او ښځې یې د ښکلا لپاره استعمالوي.

ریمن (reman) ص. نر.م. ۱) خیرن، ناولي؛ ۲) بدرنګه بدشکله، بدقواره.

ریمن (rayman) ص. نر.م. ګټور، فایده من.

ریمنتوب (remantob) نر.م. ۱) خیرنتوب، خیرنوالی، ریمنتیا، ریمنوالی؛ ۲) بدرنګي.

ریمنول (remanawal) مص. مت. خیرنول، ناولي کول، چټلول.

ریمنیدل (remanedal) مص. ل. خیرنیدل، ناولي کیدل، خیرنیدل، چټلیدل.

رینجکه (rinjaka) ښځ.م. یو ډول سابه دي.

رینجل (rinjal) مص. ل. سرنیدل، دستونه کول، اسهالیدل.

رینجن (rinjan) ص. سرن، ریخن، ریخ وهونکی.

رینجه (rinja) ښځ.م. ریخ، دستونه، بیره.

رینده (rinda) ښځ.م. و ګ. رنده.

رینګ (ring) نر.م. ۱) د ژړا اواز؛ ۲) حلقه، کړۍ؛ ۳) د بوکس لوبو ځای.

رینګت (ringat) نر.م. رینګهار، د ژړا اواز.

رینګن (ringan) ص. نر.م. ژړیدونکی.

رینګه (ringa) ښځ.م. ۱) کتار، چیل، سلسله؛ ۲) د ناروغ ز ګیروی یا ژړا اواز.

رینګیدل (ringedal) مص. ل. ۱) رینګی کول؛ ۲) په مراوي اواز سره ز ګیروی؛ ۳) ډېر ژړیدل.

رینه (rina) ښځ.م. یوه تیږه لو کي سري اله ده چې حصار د ستني کار ځني اخلي.

ریني (rinay) نر.م. سوریخن شارو.

ریوا (riwa) ښځ.م. (مو.) د سمیشور د مت په اساس د بیرو (بهرو، بهیرول) پوه راګتي ...

ریودل (rewdal) مص. مت. ۱) وګ. ریبل؛ ۲) رودل، روول؛ ۲) سر لوړی کول، لوړول.

ریوړی (rewṛay) بنځ.م. لیږدی، یو ډول ګردي خواږه خواره دي.

ریوک (riwak) ص. نر.م. غیرک، هوښیار او چالاکه ماشوم.

ریون (rewan) ص. نر.م. ۱) رودونکی، روونکی؛ ۲) نر.م. د غوا د لوشلو طرز او طریقه.

ریون (riyen) نر.م. وړانګه، شعاع.

ریوند (rewand) ص. نر.م.ج. وګ. ریبند.

ریونده لیکه (rewandalika) ښځ.م. کږه وږه لیکه، منحني لیکه. وګ. ریبلیکه.

ری وهل (raywahal) مص. مت. فکر کول.

ریي (rayi) ق. رمي، روان.

ریی (rayay) نر.م. وګ. رواش.

ریېدل (rayedal) مص. ل. ۱) اتېدل، د خره اتېدل؛ ۲) مج. قهقهه، په لوړ اواز خندل.

ریېل (rayel) نر.م. وګ. رهېل.



ړ (re) سغ.م. د پښتو الفبې اتلسم توری دی. د جمل په حساب کې «ر» غوندې «۲۰۰» ابجدي زوربت لري.

ړانځړه (ranʒra) نر.ج. رانځړه. د لمنځې ونې تېل ... غوړ.

ړبنړ (rabaṛ) ص. نر.م. لېږو. لېږجن. لیاړجن.

ړپ (rap) نر.م. ۱) اویجنه ختهه. لیږی: ۲) سرینناکه ...: ۳) د تلنو او ژبې د لګېدو اواز: ۴) ګاټه شربت: ۵) پرنډ: شوې رینه: ۷) اوبه د خاوره.

ړپند (rapand) ص. نر.م. ړپېدونکی. پوست. اوبلن.

ړپندبسواک (rapandbewak) اګر. اوبلن ړپند او ...ګرسر سبواک (کانسوبېت).

ړپول (rapawal) مص. مت. ۱) سوروول. محول: ۲) د ژبې او تالو د نګهېدو اواز.

ړپېدل (rapedal) مص. ل. ۱) چېچل. بېسوریدل. مسحېدل. په حرکت راتلل: ۲) څېبې وهل.

ړت (rat) ص. نر.م. ۱) هغه څه چې ترکیبې زیات او بې نظمه وي: ۲) سست پست: ۳) و ګ. رټ.

ړت ړیري (ratzıray) ص. نر.م. ۱) پېرور: ۲) دارن. ناکاره. چتې.

ړټ (rat) نر.م. نارنجي رنګ.

ړچ (rac) نر.م. لقېدنه. ریږدېدنه. بنوریدنه.

ړچند (racand) ص. نر.م. ړچېدونکی. لقانک.

ړچول (racawal) مص. مت. بښوروول. ریږدول. خوځول. ړنجول. مینجول. منجول. لقول.

ړچېدل (racedal) مص. ل. بښوریدل. ړکېدل. ریږدېدل. مینجېدل. لقېدل. په حرکت راتلل.

ړخبنی (raxbanay) نر.م. ۱) ارخی. د کټ بازو: ۲) د کټ چوکاټ.

ړزول (razawal) مص. مت. د تېلو سره د ښاروبو علاج کول.

ړزېدل (razedal) مص. ل. په تېلو ښاروبو درملنه.

**ړقول** (rəqawul) مص. مت. خوځول، رچول.

**ړک** (rak) نر.م. و.گ. ږچ.

**ړکول** (rakawul) مص. مت. و.گ. ږچول.

**ړنبوسه** (ranbosa) ښځ.م. ۱) اوماچ؛ ۲) لېتي.

**ړنجه** (ranja) ښځ.م. د غابې رېښه، ولېي.

**ړندبښت** (randbaxt) نر.م. ړوندوالي، نابينايي.

**ړندکی** (randakay) نر.م. د ړوند مصغره بڼه.

**ړندول** (randawal) مص. مت. سترګی ایستل، له سترګو شخه بې برخي کول.

**ړندون** (randun) نر.م. نابينايي، و.گ. ړوندتوب.

**ړنده** (randa) ص. ښځ.م. د ړوند مؤنث شکل.

**ړنده ترهګري** (randatrahgari) ا. ړوند تروريزم، دهشتګري.

**ړنده چرګه** (randacarga) ښځ.م. پياوه، شکنه، تودوبی، ښورواګی.

**ړنده مږه** (randamaza) ښځ.م. يو دول مږه ده.

**ړندېدل** (randedal) مص. ل. بې سترګو کېدل.

**ړنګ** (rang) ص. نر.م. ۱) ويجاړ، وران، خراب؛ ۲) وير، خپور؛ ۳) نری، پوست، نرم، ناروب.

**ړنګ بنګ** (ranghang) ص. نر.م. ۱) مست، نشه؛ ۲) د ناز او نخرو تګ.

**ړنګتوب** (rangtob) نر.م. ړنګتيا: ۱) ورانی، خرابي؛ ۲) نری توب، پوستوالی، نرموالی.

**ړنګری** (rangray) ښځ.م. د چيلم نل، د چلم نی.

**ړنګول** (rangawal) مص. مت. ۱) ورانول، ويجاړول، خرابول؛ ۲) د کوشيو خلاصول.

**ړنګی** (rangay) ښځ.م. رينګی، لنګی، لنونګی، وربښمينه لونګی.

**ړنګی** (rangay) نر.م. ۱) ژړا، انګولا؛ ۲) ص. پوست ۳) رنګی، رينګی، رنګړی؛ ۴) اوبلن، اوبرن.

**ړنګېدل** (rangedal) مص. ل. ورانېدل، خرابېدل، ويجاړېدل، بربادېدل، نړېدل.

**ړوز** (roz) نر.م. اروب، لېتي، ريز.

**ړومبېزېزه** (rumbziza) ص. ښځ.م. نوې لنګه شوې، اول زايه (غوا يا...)، بولې بوتر.

**ړومبنی** (rumbanay) ص. نر.م. لومړنی، پخوانی، مخکېنی، وړاندېنی.

**ړومبی** (rumbay) ص. نر.م. مخکې، پخوا.

**ړوند** (rund) ص. نر.م. بې ديده، د سترګو له ديد شخه بې برخي، په سترګو تپ تور.

**ړوندتوب** (rundtob) نر.م. ړندوالي، ړوندوالي.

**ړوندچرګ** (rundcarg) نر.م. د ماشومانو لوبه ده.

**ړوندول** (rundawal) مص. مت. ړوندول، د سترګو يا ديد شخه محرومول.

**ړوندېدل** (rundedal) مص. ل. د سترګو يا ديد شخه بې برخي کېدل، له سترګو خلاصېدل.

**ړه** (ra) نر.م. و.گ. زړه.

**ړی** (ray) نر.م. ايری، جنګي او بېکروړ پسه.

**ړې** (re) ښځ.م. د «ړه» توری تلفظ.

**ړۍ** (ray) ښځ.م. دښاروېو د شړلو يا هی کولو اواز.

**ړيمباخه** (rimbaxa) ښځ.م. زوه او ورسته توکر، ورسته رنجه، خورينه رنجه.

**ړينګړ** (ringray) ص. نر.م. ړنګی، رنګی، رنګړ، رينګی، د ګڼ ضد.

**ړينګی** (ringay) نر.م. ړنګی، د ک دسترخوان.

**ړينګي** (ringi) نر.ج. تال شکال، د کور سامان.

# ز

**ز** (ze) ښځ.م. د پښتو الفبې نولسم توری دی. ابجدي ارزښت يې اووه دی.

**زا** (za) ښځ.م. ۱) د ښارونو د لنګېدو وخت؛ ۲) زلو، د کاريز د اوبو زيم؛ ۳) جر، زاکښ، زابر.

**زابر** (zabar) نر.م. زاکښ، جر، هغه وياله چې د جهزاري ځمکې لوبه په کې رواني وي.

**زاخکه** (zaxaka) ښځ.م. يو خوږ غوښې مرغی ده چې خوراک يې اينځر دی.

**زار** (zar) نر.م ۱) جار، ځار، قربان؛ ۲) فرياد، زلري؛ ۳) ص. نب. لالهانده، پرېشانه؛ ۴) نر.م. بدبختي، بدمرغي؛ ٤) افسوس، دريغ، حسرت؛ ٥) وروستاړي ده لکه: جهزار.

**زار بوټی** (zarbutay) نر.م. غرنی سپېلنی.

**زارخند** (zarxand) نر.م. زهرخند، جبري ذېري، د حوت د شلمې نه وروسته اووه ورځې چې سخته يخني په کې وي.

**زار زار** (zarzar) ص. نب. په چيغو چيغو، په کوکو.

**زارزمګی** (zarzamagay) نر.م. يو ډول سابه دي.

**زارزنګی** (zarzangay) ښځ.م. منغوټې، کاګوره، يو ډول بېدياني بوټی دی.

**زارمری** (zarmaray) ص.نر.م. ۱) په زهر وژلی، زهر وژلی؛ ۲) مج. بدمرغی، بدبخته.

**زارموره** (zarmora) ښځ.م. و.ګ. زهرموره.

**زاره** (zara) ښځ.م. تريخی، ترخی، د صفرا کڅوړه، د صفرا کيسه.

**زاره ترکی** (zaratrakay) ص. نر.م. ۱) زلوه چاودی، زړه چاودی؛ ۲) مج. ډېر سخت.

**زاره چاودی** (zaracawday) ص. نر.م. ۱) و.ګ. زلوه ترکی؛ ۲) مج. زيارکښ؛ ۳) غمجن.

**زاري** (zari) ښځ.م. (ج. زارۍ) ۱) ځيګ ځيګی، عذر، زوا؛ ۲) فرياد؛ ۳) غوښتنه.

**زاریدل** (zaredal) مص.ل. ځاریدل، قربانېدل.

**زارمبوی** (zarambuy) نر.م. زلرونې، لته بوی، د تورکله سوځېدو څخه پیدا شوی بوی.

**زاړند** (zarand) ص. نر.م.ج. له خپلې رمې جلا شوی پسه یا وزه.

**زاړه پلوري** (zaraplorey) ص. لیلامي پلورونکی، کباړي.

**زاړه واړه** (zarawara) ص. نر.ج. ۱) لوی واړه، ټول، ګرد (انسانان) ۲) نر.ج. له کاره لوېدلي.

**زاړه والا** (zarawala) ص. نر.م.ج. لیلر، هغه څوک چې زاړه شیان خرڅوي.

**زاړی** (zaray) ص. نر.م. ۱) زوړی، مېینه فصل؛ ۲) هغه فصل چې لو ته نیژدې وي؛ ۳) پخوا؛ ٤) د ځاروي بچی.

**زاړې** (zare) ص. ښځ.م.ج. زاړی لوښي، زاړې لوښ؛ هغه ځاروي چې د لنګون یې څو میاشتې وتلي وي او شیدې یې پر وچېدو وي.

**زاړو** (zazu) ق. زاوزو، لورمرو، خامخا، حتما.

**زاږه** (zaza) ص. نر.ج. څیره، لوی، غټان.

**زاغ** (zag) نر.م. یو ډول معدني ماده ده چې دوه ډوله وي: تور او سپین زاغ.

**زاغاوی** (zagaway) ښځ.م. یو ډول مارغه دی.

**زاغچکه** (zagcaka) ښځ.م. کاغې، کاغه، کارګه، زاغچه، وراغه.

**زاغزوغ** (zagzug) ص. نر.م. چوغلګر، غماز.

**زاکښ** (zakas) نر.م و ګ. زابر.

**زاګی** (zagay) ښځ.م. کوشی، د شپنو یو ډول بالاپوش دی چې له لیمڅي څخه یې جوړوي.

**زالبند** (zalband) نر.م. د اوبو زنګون بند.

**زام** (zam) نر.م. ۱) ګمان، ګومان، قیاس؛ ۲) د «وزه وایم» لنډ شکل.

**زامده** (zamda) نر.ج. زونده، یو ډول بې ګله نبات دی چې په جبر کې پیدا کېږي.

**زامن** (zaman) نر.ج. د «زوی» جمع.

**زامه** (zama) ښځ.م. (ج. زامې) ژامه، ژامنه، برغبې، کرغبېکنغبې، کنجکې، زانهورې.

**زانغولی** (zangolay) نر.م. وروکی کلنګ، مېښی، کیې، کاې.

**زانګل** (zangal) مص.ل. زنګل، تال خوړل.

**زانګو** (zango) ښځ.م. (ج. زانګوګانې) ۱) ځانګو، پینګو، د ماشومانو د زنګولو آله؛ ۲) دسیند نه د پورې وتلو وروکې هوایي آله ده.

**زانګوکی** (zangokay) نر.م. اوبناره، اوبېکی، د بې بې اوبنه، یو ډول زرغونه خزنده ده.

**زانګونکی** (zangunkay) فا. نر.م. زنګېدونکی، تال وهونکی، تال خوړونکی.

**زاني** (zani) ص. نب. ۱) زناکوونکی، زناکار؛ ۲) د زنا، په زنا پورې اړوند.

**زانه** (zana) ښځ.م. ځانه، یو ډول مرغه دی چې اوږدې پښې، اوږده غاړه او تېره مښوکه لري.

**زاو** (zaw) نر.م. ۱) نم، نږ، رطوبت؛ ۲) زاه، زا، زاوی، هغه ځای چې اوبه کش کوي.

**زاوزات** (zawzat) نر.م.ج. زوزاد، زاوزاد، زوزات اولاد.

**زاوزو** (zawzu) ق. ۱) حتمي، خامخا، هرومرو؛ ۲) د ناچارۍ، چارناچار، زازو، اجباراً.

**زاولن** (zawlan) ص. نر.م. ۱) و ګ. ژاولن؛ ۲) بې کاره، لټ، تنبل؛ ۳) بې خولې، عاجز.

**زاوله** (zawla) ښځ.م. (ج. زاولې) و ګ. ژاوله.

**زاوی** (zaway) نر.م. ۱) یو ډول تیږه ده چې د لرښو د جوړولو لپاره یې له ځاوري سره یو ځای کوي؛ ۲) زا، نو، زیم، زلو.

**زاویل** (zawel) نر.م. زول، ځول، دوامداره واوره او باران چې ساړه او یخني ورسره وي.

**زاویه** (zawiya) ښځ.م. (ج. زاویې) کونج، کنج، گوټ؛ (هن.) هغه شکل چې په یوه نقطه کې د دوو مستقیمو کرښو د تقاطع څخه جوړیږي.

**زاهد** (zahid) ص. نر.م. (ج. زاهدان) پرهېزگار، متقي. تقوا لرونکی، پارسا.

**زاهدي** (zahidi) ښځ.م. پرهېزگاري، تقوا داري.

**زایپه** (zayipa) ښځ.م. ښځه، ماینه، ماندینه، کډه، کورودانې، ارتینه.

**زایچه** (zayica) ښځ.م. ۱) د منجم پیشگویي؛ ۲) د نوي ماشوم د برخلیک وړاندوینه.

**زاید** (zayid) ص. نر.م. ج. زائد؛ ۱) ډېر، د پاسه؛ ۲) اضافه، علاوه، زیاتگی.

**زاید تجنیس** (zahidtanjis) نر.م. (بد.) یو صنعت دی چې د متجانسو کلیمو څخه د یوې کلیمې په سر، یا منځ یا پای کې یو توری زیات راځي.

**زایر** (zayir) ص. نر.م. سیلاني، زیارت کوونکی.

**زایل** (zayal) ص. نر.م. ج. نیست، نابود، له منځه تللی، ضایع، لیري.

**زایلول** (zayalawal) مص. مت. نیست کول. نابودول، له منځه وړل، زهول، ضایع کول.

**زایلېدل** (zayaledal) مص. ل. نیست کېدل، نابودېدل، له منځه تلل، ضایع کېدل.

**زبات** (zbat) نر.م. ۱) ښېگڼه، ښېگړه، ښېگي، احسان منت، زباد، د احسان یادونه؛ ۲) ثابت، ټینگ.

**زباتل** (zbatal) مص. ل. پاسلل، پاستل، پاسهلل، احسان باروړل، ښېگي او ښه یادول.

**زباتند** (zbatand) ص. زباتگر، زباتوونکی، بابتوونکی.

**زباتول** (zbatawal) مص. مت. ۱) مص. ل. رگ. زباتل؛ ۲) اثباتول، ثبوتول، زبادول.

**زباد** (zbad) نر.م. و.گ. زبات.

**زبادول** (zbadawal) مص. مت. زباتول، ثابتول.

**زبادون** (zbadun) نر.م. ثبوت، ثبات.

**زبادېدل** (zbadedal) مص. ل. ثابتېدل، اثباتېدل.

**زباني** (z(a,u)bani) ص. نب. شفاهي، په خوله، په ژبه، د ژبې.

**زبده** (zubda) ص. نب. مهم غوره زبردست، وتلی

**زبر** (۱) (zabar) ص. نر.م. قوي زورور ۱) د حیواناتو د زور او قوت د وصف لپاره لکه زبرغوی؛ ۲) داړونکی سپی، ۳) قوي زورور، پر سړی؛ ٤) تاکیدي صفت د زبر (کلمې وروسته راځي.

**زبر** (۲) (zbar) نر.م. زوتونه، یادونه، حافظې ته سپارنه

**زبرځواک** (zabarzwak) نر.م. ابرقدرت ستر ځواک

**زبردست** (zabardast) ص. نر.م. ج. ۱) زبردسته، زورور، غښتلی؛ ۲) وتلی؛ ۳) ماهر.

**زبروگر** (zabarwagar) ص. ا. ستر صېوه، لوی سړی.

**زبره** (zabra) ښځ.م. یو ډول بوټی دی.

**زبگه** (zabga) نر.ج. د غره شپیشتي، غرنی رشقه.

**زبله** (zabla) ق. و.گ. ځبله.

**زبون** (zabun) ص. ۱) خوار، ذلیل؛ ۲) نر.م. خوند، ذایقه، مزه؛ ۳) ژبه.

**زبونکی** (zabunkay) فا. نر.م. څوروونکی، ضرر رسوونکی.

**زبون وهلی** (zabunwahalay) ص. نر.م. ۱) وارخطا، دلر شوی؛ هغه څوک چې له ویرې څخه یې ژبه بنده شوې وي؛ ۲) وری.

**زبېرگی** (zbergay) نر.م. زگېروی، فریاد.

**زبېښ** (zbes) نر.م. ۱) جذبونه؛ ۲) چوپېنه، چوشنه.

**ږبښتک** (zabesak) اِ. ښېښک، اسنثمار.

**ږبښناکګر** (zabesnakgar) ص. ښېښناکګر، اسنثمرګر.

**ږبښل** (zhesal) مص. مت. ۱) چوپل، ښبښل؛ ۲) جذبول، رابښکل؛ ۳) انجوړول، نښتېښل، اومه تر يو ځاى ښکل؛ ٤) خوړل، ښبل.

**ږبښند** (zhesand) ص. نر. م. ج. ۱) چوپونکى؛ ۲) جذبوونکى، جاذب.

**ږبښنه** (zhesana) ښځ. م. ۱) ښبښنه، چوپنه؛ ۲، جذبونه، ۳) نښتېښنه؛ ٤) خوړنه.

**ږبلل** (zhelal) مص. مت. و ګ. ږبښل.

**ږبنګى** (zhengay) نر. م. کورېونى، حبشګ، ژبونکى.

**زپ** (zap) ص. نر. م. ضعيف، کمزورى، زور.

**زجاجيه** (zujajiya) ښځ. م. شفافه جلاټيني ماده دچې د سترګو په دننه کې وجود لري.

**زجر** (zajar) نر. م. (ج. زجرونه) ۱) کړاو، ځور، تکليف؛ ۲) زورونه، فشار، شکنجه.

**زحف** (zahf) نر. م. (عس.) په لنډو فاصلو کې د منفرد نعر د تقرب يو شکل دى.

**زحمت** (zahmat) نر. م. کړاو، ربړ، تکليف.

**زحمت کښ** (zahmatkas) ص. نر. م. زيارکښ، زيارايستونکى، خوارې کښ.

**زحمتي** (zahmati) ص. نب. ۱) و ګ. زيارکښ؛ ۲) مشکل، هغه څه چې زياته انرژي غواړي.

**زخته** (zaxta) ښځ. م. کپوله، ښېښته، يو نبات دى چې په غرونو کې پيدا کېږي.

**زخم** (zaxam) نر. م. (ج. زخمونه) ۱) ټپ، پرهار؛ ۲) ځارخوړى، کرزنى، شرخاو، بغرى، ګردار.

**زخمي** (zaxmi) ص. نر. ښځ. م. ټپي، پرهاري، براري، پرهارمن.

**زخمه** (zaxma) ښځ. م. شهباز، شاباز، ورکوټى لرګى دى چې د رباب د ډملو په وخت کې يې په ګوتو کې نيسي او هغه په ترنګوي.

**زخن** (zaxan) ص. نر. م. ج. خنډلرونکى، زخداره.

**زخن شعر** (zaxanssr) اِ. زخه وال شعر، غوټي شعر، سکته لرونکى شعر، مات شعر.

**زخه** (zaxa) ښځ. م. ۱) غوټه، خنډ، ګنډه؛ ۲) وړوکى شنه يا توره دانه چې بدن باندې راخېژي؛ ۳) د ټوپک جوړک.

**زخيره** (zaxira) ښځ. م. و ګ. ځېرمه.

**زد** (zad) نر. م. ۱) د ميند لاره يا مسير؛ ۲) اثر، اغېز.

**زدايت** (zadayat) نر. م. خټه، اصل، کورنى، ټبر.

**زدلاندى** (zadlanday) نر. م. ترنښي لاندې.

**زدوول** (zadawal) مص. مت. زدېيل، صيل، سولول، منبل، رسپيل.

**زدويل** (zdoyal) مص. مت. و ګ. زدوول.

**زده**[1] (zda) ص. نب. په ياد، په حافظه کې، ضبط، حفظ، زده شوي.

**زده**[2] (zada) ص. نب. ۱) تکبدلى، وهل شوى، ځپلى؛ ۲) غمجن؛ ۳) لګېدلى، داغي شوى؛ ٤) معلوم؛ ٥) ور. زخمى، د ورو ستاړي په دول د نوم په پاى کې راځي، لکه: غمزده.

**زده کړوځى** (zdakrozay) اِ. د زده کړې کورس.

**زده کړه** (zdakra) ښځ. م. زده کول، پوهېدنه، آموزش، د پوهنې يا مهارت حاصلول.

**زده کړه وال** (zdakrawal) اِ. د زده کړې خاوند. تعليميافته.

**زده کړيال** (zdakryal) اِ. زده کوونکى، شاګرد، پوهنبال.

**زده کول** (zdakawal) مص. مت. ۱) يادول، ضبطول؛ ۲) تعليم کول، پوهه حاصلول.

**زده کوونکی** ( zdakawunkay ) نر.م. شاگرد، معلم، طالب، محصل.

**زده کېدل** ( zdakedul ) مص.ل. ضبطېدل، یادېدل، د پوهنې یا مهارت حاصلېدل.

**زر** ( zar ) نر.م. ج. ۱) و گ. سره زر؛ ۲) و گ. سپین زر؛ ۳) روپی، سکه؛ ۴) ق. ژر، تند، په بېړه.

**زراعت** ( zarasat ) نر.م. کرنه، کرهنه، کر، کښت، کرونده (و گ. کرهنه).

**زراعتي** ( zarasati ) ص.نب. د زراعت، د کرنې د کرهنې، د کښت، په زراعت پورې اړوند.

**زرافه** ( zarafa ) ښځ.م. اوږدې پرانګ، یو تی لرونکی او شخوند وهونکی څناور دی.

**زرامی** ( zramay ) نر.م. څاڅکی، قطره.

**زرب** ( zrab ) نر.م. ۱) شدت؛ ۲) غلبه، بېرې؛ ۳) پرتم.

**زربرخ** ( zarburax ) نر.م. ۱) د زرو پانه، زرورق؛ ۲) سپلګه، ابرک، شګو ګل..

**زربوزی** ( zarbozay ) نر.م. یو ډول ګنډون دی چې ښځې یې د ګلابتونو څخه جوړوي.

**زربی** ( zarbay ) ښځ.م. په ګومېزه کې د خبتو په تغییر سره بله رده.

**زربی** ( zarbay ) نر.م. یوه آله ده چې د بوټ یا څپلې د وندنې پرې سوري کوي.

**زربیانګ** ( zarbyang ) نر.م. یوه آله ده چې سوچې پرې ځرمن نرۍ کوي او یا یې پرې پستوي.

**زربېره** ( zarbera ) ښځ.م. یو ډول ګیاه ده چې وچ شوې یې د پوزې د نسوار په ډول استعمالوي.

**زرپانه** ( zarpana ) ا. زرینه پانه، زرورق.

**زرپښ** ( zarpax ) ص. نر.م. زرګر، جوهري.

**زرپېړلی** ( zarperlay ) نر.م. زرخرید، په بیه اخیستی شوی (مریی).

**زرترزره** ( zartarzara ) ق. ژر تر ژره، فورا، د بېړه.

**زرتشت** ( zartast ) نر.م. و گ. زردېښت.

**زرتله** ( zartala ) ا. کنډ، د زرو تللو تله.

**زرتوکی** ( zartukay ) ا. زربفت، زربافت.

**زرچاڼ** ( zarcan ) ص. زرولون، زرشوی.

**زرچوبه** ( zarcoba ) ښځ.م. و گ. کورکمن.

**زرخ** ( zarj ) ص.نر.م. زرز، شین وشمه سور.

**زرخې سترګي** ( zarjestarge ) ښځ.م. ج. سرې شنا ورګې سترګي (مېښې).

**زرخی** ( zarjay ) ښځ.م. ۱) لوښه، زرنی، بدبویه ختـه یا چیکړ؛ ۲) نر.م. هغه پسه چې د غوږونو او سترګو د خوا و شا وېښتان یې ژېړ وي.

**زرڅانګه** ( zarcanga ) ا. زرینه څانګه.

**زرڅانی** ( zarcanay ) ص. زرڅاندی، زرولونی، زرشو.

**زرخېز** ( zarxez ) نر.م. ج. و گ. حاصل خېز.

**زردار** ( zardar ) ص. نر.م. شتمن، بډای، دولتمن.

**زردالو** ( zardalu ) نر.م. ج. (ج. زردالان) منډته، خوبانی، زېړ غنجې، یو ډول خوږه مېوه ده.

**زردکه** ( zardaka ) ښځ.م. ۱) زېړانکه، ژړانکه، یوه مرغۍ ده؛ ۲) ګازره، ګاجره..

**زردوم** ( zardum ) ص. نر.م. زهر قاتل.

**زردانګی** ( zardangay ) نر.م. کروه، د فاصلې یو واحد دی چې دوه کیلومتره کېږي.

**زرزپو** ( zarzapo ) ښځ.م. ناڅاپه وهنه، ناڅاپه ګوزار.

**زرزري** ( zarzari ) ص. نسب. ۱) زریاف، زرین؛ ۲) تلولی، وارخطا؛ ۳) مټردد، زړه نازړه.

**زرزی** ( zarzay ) نر.م. ځرځی، زرځی، هغه پسه چې غوږونه او د سترګو خوا یې ژېړ وېښتان لري.

**زرغا** ( zarga ) ص.نب. ځالېز، شین، تازه، زرغون.

**زرغاله** ( zargala ) ښځ.م. ښځه په نفاس کې.

**زرغون** (zargun) ص. نـر.م. ج. ۱) يو رنګ دی چې د طيف له اړخه د اسماني اوژېړ تمنځ واقع دی، شين؛ ۲) لکه د نوروا تو کېدلو رشقه او شوتلو رنګ؛ ۳) توکېدلی، شين شوی.

**زرغونتوب** (zarguntob) نر.م. ۱) زرغـونتيا، شينوالی؛ ۲) شنه کېدنه، زرغونېدنه، راټوکېدنه زرغونتيا، زرغونوالی.

**زرغونکی** (zargunkay) نر.م. سايه، سا ګ.

**زرغون ګلی** (zargungalay) نر. م. يو ډول بوټی دی چې په غنمو کې راشين کېږي چې لاجوردي ګل لري.

**زرغون مازو** (zargunmazu) نـر.م. د پېرګي په څير د يوې ونې مېوه ده .

**زرغونول** (zargunawal) مص. مت. ۱) سرو هل، شنه کـول؛ ۲) زرغـون رنګ ورکـول؛ ۳) مج. نېکمرغه کول؛ ٤) مج. ډېرول، زياتول.

**زرغونېدل** (zargunedal) مص.ل ۱) شنه کېدل، توکېدل؛ ۲) شين رنګ اخيستل؛ ۳) مج. بختور کېدل، نېکمرغه کېدل.

**زرغونيز** (zarguniz) ص. زرغـونېدونکی، توکېدونکی، شين کېدونکی.

**زرغه** (zarga) ص. بنځ. م. لټې، تمبلې، ناراستې.

**زرق** (zarq) نـر.م. بدن ته د پېچکاري په وسيله د اوبلنې دوا داخلونه.

**زرک** (zark) نـر.م. خـنـېل، يو ډول ځنګلي غـرنی مارغه دی.

**زرکانی** (zarkanay) نر.م. محک، هغه تيږه چې د زرو اصيل والی او کوټه والی ښرګندوي.

**زرکوری** (zarkuray) نـر.م. زرکـوری، د زرکي بچی، د زرک مصغر.

**زرکليزه** (zarklaliza) ا. زرمه کليزه، زرمه سالګره.

**زرکه** (zarka) ښځ. م. (ج. زرکي) د زرک مؤنث.

**زرکيره** (zarkira) ښځ.م. يو ډول تريخ نبات دی.

**زرګر** (zargar) ج. زرګران، زرپښ، هغه سړی چې د زرو يا کانو شحه ګاڼې جوړوي.

**زرګرايه** (zargraya) ص. نـب. زرچنده، زرګرته، زرولري، زرګونه، زرلي.

**زرګري** (zargari) ښځ.م. د زرګر کسب يا پېشه.

**زرګردان** (zargardan) نر.م. يو ډول نبات دی چې تخم يې زهرناکه او وژونکی وي.

**زرګل** (zargwal) نر.م. يو ډول ګل دی.

**زرګنډی** (zarganday) فـا. نـر.م. د زري شـا ګنډونکی.

**زرګوری** (zarguray) نر.م. و ګ. زرکوری.

**زرګونه** (zarguna) ص. نب. زرګرايه، زرچنده، په زرهاوو، په زرګونو.

**زرګونی** (zargunay) ص. نر.م. ۱) زريز، د زرو، د زرو په عدد مربوط؛ ۲) د زرو روپو نوټ.

**زرګه** (zarga) ښځ.م. يو ډول اغزن بوټی دی چې د ګلاب د بوټي ته ورته دی.

**زرګير** (zargir) نـر.م. ۱) د شـرمنې هغې ګوتمې چې غښې ويشتونکی يا مـوچي يې په ګـوته کوي؛ ۲) ص. نر.م. د زورګير لنډ شکل.

**زرل** (zaral) مص. مت. ملمع کول، د زرو آب ورکول.

**زرلښته** (zarlasta) ا. د زرو لښته (ځانګړی نوم).

**زرمشر** (zarmasar) ص. نر.م. د زرو کسانو مشر.

**زرناوی** (zarnaway) ا. زرناو، هزار ناو.

**زرنځه** (zarunja) ښځ.م. لـوشه، بډبوبه او خوسا شوې خټه، زرنې، زرنځې، زرنه.

**زرنډی** (zranday) ښځ.م. زېر زميني، تاکاوي.

**زرنګ** (zarang) ص. نر.م. ځيرک، تېز، چالاک، با استعداده.

**زرنګار** (zarnigar) ص. نر.م. ج. ۱) په زرو سره ښکلل شوی او نقاشي شوی؛ ۲) ښکلی، ډولي.

**زرنګي** (zarangi) ښځ.م. ځيرکي، چالاکي.

**زرنه** (zarna) نر.ج. زرنه، يو ډول تېل دی چې د لمنځي د ونې له ريښو څخه ايستل کيږي.

**زرنی** (zaranay) ص. نر.م. ۱) څري؛ ۲) مخبر.

**زرني** (zarni) ښځ. م. په نظر کې ساتنه، څارنه.

**زرنی** (zaranay) ص. نر.م. ۱) جُذامي، د جُذام په ناروغی اخته(و.ګ. پرنګ[۲])؛ ۲) بې‌خبره.

**زرنيخ** (zarnix) نر.م.سنکيا، ارتال، يو معدني جسم او يو کيمياوي عنصر دی.

**زروبول** (zarobawal) مص. مت. ملمع کول، د زرو اوبه ورکول، د زرو مخ ورکول.

**زروبېدل** (zarobedal) مص. ل. ملمع کېدل، د زرو اوبه ورکول کېدل.

**زره[۱]** (zara) ښځ.م. و.ګ. ذره.

**زره[۲]** (zira) ښځ.م. ۱) زغره، بګتری، يو ډول پوښ (جامه) دی چې د جنګياليو د بدن د پوښلو لپاره د جګړې په وخت اغوستل؛ ۲) د ښېرو، جنګي الوتکو، ټانکونو پاندنی کلک فلزي پوښ چې ګولۍ اغېزه نه پاندې کوي.

**زرها** (zarha) ص. نب. و.ګ. زرو[۱].

**زره پوښ** (zirapos) ۱) زره پوش، موټر ته ورته يو جنګي نقليه وسيله ده؛ ۲) زغروال، په هغه څه چې زره اغوستله شوې وي.

**زری** (zaray) نر.م. ۱) و.ګ. ځری؛ ۲) ص. نر.م. هوښيار، ځيرک، پوه، عاقل.

**زری** (zaray) نر.م. ۱) زرګيز، زرګون، د زرو نوټ؛ ۲) زرېزه، زرمه، زرکلنی، زرکاله.

**زري** (zari) ص. نب. ۱) د زرو، د طلا؛ ۲) زري توکر؛ ۳) ښځ.م. د ستوني يو رلز ناروغي ده.

**زری** (zaray) ښځ.م. د يوه وخت خواړه، د يوه وخت آذوقه، د يوه وخت چيره.

**زريخ** (zarij) ص. نر.م. ج. زري، زرين، د زرو.

**زری ځبله** (zarayjabla) نر.م. ګډه نفقه، د ګډې شومه، د خوراکتوکو شرکت، د څو کسانو ګډ کار نفقه.

**زريز** (zariz) نر.م. ۱) خروسک، خراسک، يو رلز د ستوني ناروغي ده؛ ۲) د زرو روپو نوټ.

**زري زرکه** (zarizarka) ښځ.م. د زرکانو د کورنۍ يو ډول دی چې کبک زري هم ورته وايي.

**زرين** (zarin) ص. نر.م. ج. د زرو، د طلا، زريخ، د سپينو زرو يا سرو زرو څخه جوړ.

**زريره** (zrera) نر.م. يو ډول غرنی نبات دی، رنګ يې خړ او غونډي غونډي داني کوي.

**زريلګ** (zrilg) نر.م. و.ګ. جرلګ.

**زرامبو** (zrambo) ص. نب. ۱) جرامبو، شلم، شوارو؛ ۲) خوږند، ځړېدلی؛ زوان.

**زراميوی** (zrambuy) نر.م. لته بوی، زرموی، د توکر د سوځېدو بوی.

**زربودي** (zarbudi) ا. زربخت، زوروالي، بوډاتوب.

**زرپ** (zrap) نر.م. نرګس، يو ډول ګل دی.

**زرتوب** (zartob) نر.م. زوروالي، رووالي، زربخت، زرتيا، زروالي، زوروالي.

**زرخن** (zarxan) ص. نر.ج. زړه يې غوړي، وراسته او بوږين غوړي، خراب شوي غوړي.

**زرخن توب** (zarxantob) نر.م. زړه يې توب، زرخنوالي، د غوړيو ستغېدنه او خرابېدنه.

**زرخنول** (zarxanawal) مص. مت. غوړو ته زوږ خوند ورکول، غوړي بدبويه او خرابول.

**زرخنېدل** (zarxanedal) مص.ل. غوړي ستغېدل، غوړي بدبويه کېدل، غوړي خرابېدل.

**زرخوږی** (zarxuzay) ص. نر.م. ۱) پەزره زخمي، پەزره خوږ او غمجن؛ ۲) همدرد، خواخوږ.

**زره خوږي** (zarxuzi) بنځ.م. ۱) پەزره زخمي والی، پەزره خوږتوب؛ ۲) همدردي، خواخوږي.

**زرداوه** (zardawa) بنځ.م. د سپیلني پەشهر پسو بوټی دی چې زیړ ګلان کوي.

**زړښت** (zarast) نر.م. زړېدنه، زړوالی، کهولت.

**زړغی** (zargay) بنځ.م. تردد، زړه نازړه توب، بې زړه توب.

**زړغی** (zargay) نر.م. ۱) متردد، زړه نا زړه؛ ۲) له ناروغی نه وروسته اشتها.

**زړکوټی** (zarkutay) نر.م. زړه ټوټه، زوړ ټوکر.

**زړګوتی**(۱) (zargotay) نر.م. د زړه مصغر.

**زړګوټی**(۲) (zargutay) زړوکی، ټیکری، پړونی..

**زړګی** (zargay) نر.م. ۱) زړګوتی، د زړه مصغر؛ ۲) ګران، خوږ، زړه ته نیږدې.

**زړن** (zaran) ص. نر.م. ج. زړور، دلاور، شجاع.

**زړوالی** (zarwalay) نر.م. زوړوالی، زړښت، سپین ږیرتوب، سپین ږیرتیا، بوډاوالی.

**زړور** (zarawar) ص. نر.م. ج. دلاور، شجاع.

**زړورتوب** (zarawartob) نر.م. زړورتیا تړوروالی.

**زړوکی** (zarukay) نر.م. ټیکری، پړونی، لوپټه.

**زړول** (zarawal) مص. مت ۱) استهلاکول، په کراره کراره له منځه وړل؛ ۲) سن زیاتول، بوډا کول.

**زرومبه** (zrumba) نر.م. زرمبوی، زارمبوی، لته بوی، زرومبی.

**زړوېز** (zarwez) م. زړوېی، زوړ لغت، ارکالیزم.

**زړه** (zra) نر.م. (ج. زړونه) قلب.

**زړه او ځیګر** (zraaw zigar) ا م زړه او ینه، ډېر ګران.

**زړه برم** (zrabram) نر.م. د زړه قوت، د زړه زور.

**زړه پوري** (zarapore) ص. نسب. پەزړه پوري، زړه ته نیږدې، زړه ته نیږ.

**زړه پوه** (zrapoh) ص. زړه پوهاند، د زړه د ناروغیو څانګوال (ماهر)، کاردیالوجیست.

**زړه پوهه** (zrapoha) ا. د زړه د ناروغیو پوهه.

**زړه ترکی** (zratrakay) ص. نر.م. و ګ. زاره ترکی

**زړه ترکي** (zratraki) بنځ.م. غمجنوالی، زړه چاودي.

**زړه تورن** (zratoran) نر.م. خواتوری، زړه توری.

**زړه توری** (zratoray) ص. نر.م. زړه تورن، زړه وهلی.

**زړه ټکی** (zratakay) نر.م. زړه خواله، د زړه راز.

**زړه خور** (zraxor) ص. د بل یا خپل زړه خورونکی، ځان خوری، زړه خورینی.

**زړه خوري** (zraxori) ا. زړه خورنه، زړه خورینی.

**زړه خورینی** (zraxwrinay) ص. نر.م. غمجن، پریشانه، ډېر په عذاب، زړه وهلی..

**زړه خوږی** (zraxuzay) ص. نر.م. خواخوږی، زړه سواندی، غمشریک.

**زړه خوږي** (zraxuzi) بنځ.م. خواخوږي، زړه سواندي، همدردي، غمشریکي.

**زړه دره** (zaradara) بنځ.م. و ګ. زوړ؛

**زړه ډغی** (zradagay) ص. نر.م. زړه وهلی... توری

**زړه ډغي** (radagi) بنځ.م. زړه وهنه

**زړه راکښون** (zraraksun) ا. ز... ون، زړه ته نژدېوالی، زړه ته پرېوتل.

**زړه ستړی** (zrastaray) ص. ستړی ستومان.

**زړه سواند** (zraswand) ص. نر.م. زړه سواندی، د ترحم خاوند، د نرم زړه خاوند.

**زړه سواندي** (zraswandi) بنځ.م. زړه خوږي، دلسوزي، زړه سوځونه.

**زږه سول** (zṛaswal) نر.م. زړه خوږي کول، زړه سوی لرل.

**زږه سوی** (zṛaswāy) نر.م ۱) ويرژلی، کړېدلی، غمزده؛ ۲) رحم، شفقت، زړه سواندي.

**زږه شين** (zṛašin) نر.م. خلق تنګی، په تنګ راغلی، عقده اخيستی.

**زږه شينی** (zṛašinay) ص. نر.م. خلق تنګی، په تنګ راغلی، په عذاب شوی.

**زږه غوښتی** (zṛoğuštay) نر.م. په زړه، منلی، خوښ شوی، غوره شوی.

**زږه کول** (zṛakawal) مص. ل. زړور توب کول، جرأت کول...

**زږه کېدل** (zṛakedal) مص. ل. ۱) زړه غوښتل، د يو شي په ور کولو راضي کېدل؛ ۲) هوا کېدل.

**زږه ګرګه** (zaṛagarga) ښځ.م. ۱) ګرګه، کونده، د وني زړه کونده؛ ۲) د ماشومانو يو لوبه ده.

**زږه لوغي** (zṛalwağe) ص. ښځ.م. زړي لوغزه، هغه غواچي د لنګېدو او شيدو ورکولو موده يې ډېره وتلې وي.

**زږه ور** (zṛawar) ص. نر.م. ج. و ګ. زړور.

**زږه ورونی** (zṛawṛūnay) ص. زړه مېنتی، دلبر.

**زږی** (zaṛay) نر.م ۱) و ګ. ژيړی؛ ۲) و ګ. زوني؛ ۳) منډکه، بمبته؛ ٤) مج. نسل خته.

**زږېدل** (zaṛedal) مص. ل. ۱) استهلاک کېدل، مصرفېدل؛ ۲) بودا کېدل، عمر زياتېدل.

**زږي لوغزه** (zaṛelawğza) ص. ښځ.م. و ګ. زړه لوغي.

**زږېه غوږي** (zaṛpağwaṛi) جن. و ګ. زرخن.

**ززغولی** (zazğolay) نر.م. وازګه چې ويلې او غوړ ترې جلا کړی شي نو پاتې شوي جامد مواد ززغولي بلل کېږي.

**زږګی** (zazgay) نر.م. چيرګی، جيشکي، زيرګی، شيشکی، ژيږګی، جيزګی، جوزګی.

**زږه**[1] (zaṛa) ص. ښځ.م. ترخه خبره، تنده خبره.

**زږه**[2] (zṛa) ښځ.م (ج. زوي) شله روپۍ، سپينو زرو سکه ده چې اوس رواج نه لري.

**زږه غاږه** (zaṛāgaṛa) ا. زيږه غاږه، زيږه ږدوږ (لهجه)، شديد لحن، سخته لهجه.

**زشکله** (zāškala) ښځ.م. و ګ. شبکله.

**زښا** (zaṣā) ښځ.م. زښه، کنځله، د کنځلي غوږ.

**زښت** (zaṣt) ص. نر.م. ج. ۱) ډېر، زيات؛ ۲) له نظره بد، له پامه بد، خښت.

**زښت ډېر** (zaṣtḍer) ص. نر.ج. بېخي زيات، بالکل زيات، زښت زيات.

**زښت ښه** (zaṣtṣa) ص. نر.م. ج. بېخي ښه، بالکل ښه، کاملاً ښه.

**زښتيل** (zaṣteyal) مص. مت ۱) خورول، کړول، ربړول؛ ۲) خپه کول، خوابدی کول.

**زعامت** (zaāmat) نر.م. ۱) مشرتابه، مشرتوب، سترتوب؛ ۲) پېشوايي، رهبري.

**زعفران** (zaafrān) نر.ج. زاپران، کنګو، يو بوټي نبات دی چې ژيړ خوشبويه ګلان لري.

**زعيم** (zaim) ص. نر.م. (ج. زعيمان، زعما) ۱) مشر، د قوم مشر؛ ۲) کفيل؛ ۳) ضامن؛ ٤) رئيس.

**زغ** (zağ) نر.م. ۱) جغ، ژغ، يو لرګينه آله ده چې د کار په وخت کې د دوو غوايانو پر اوږو ايښودل کېږي؛ ۲) د غوږيو د سره کولو اواز.

**زغاره** (zğāra) ښځ.م. د غوښتو ورډي، د ګوښتو ووډي، د ږدنو (ايږدن) ووډي.

**زغاست** (zğāst) نر.م. و ګ. شغاست.

**زغاښت** (zğāṣt) نر.م. و ګ. شغاست.

زغال (zuğal) نر.م. ج. وگ. سکاره.
زغبنډی (zağbanḍay) نر.م. وگ. جغنډی.
زغر (zğar) نر.ج. یو ډول حبوب دی چې غوړ او تېل تري وباسي.
زغرپوښ (zğarpūx) ص. زغرګادی، زغره پوښ.
زغرتټری (zğartaṭaray) ص. زغرواسکټ، زغر سینه، سینه زغری.
زغرد (zğard) ص. نر.م. ج. ۱) زغرد، زورور؛ ۲) تېز، تند؛ ۳) چالاک؛ ٤) بېچ، خوندي.
زغردتوب (zğardtōb) نر.م. ۱) زغرتیا، زغرتوب، زغردوالی، زورتیا؛ ۲) تېزي، تندي؛ ۳) چالاکي؛ ٤) بچونه، ساتنه.
زغردتیا (zğardtyā) ا. وگ.: زغردتوب.
زغردول (zğardawál) مص. مت. ۱) زغرډول، زورکول؛ ۲) تېزول؛ ۳) چابکول؛ ٤) بېچول.
زغرساز (zğarsāz) ص. زغره سازوونکی، زغر جوړوونکی.
زغرګاډی (zğargāḍay) ا. زغرورګاډی، زغرپوښ ګاډی.
زغرلی (zğarlay) نر.م. اوبچی، زغره اغوستونکی، زغره لرونکی.
زغرماتی (zğarmātay) ص. زغرماتوونکی.
زغروال څواکونه (zğarawāl jwākūna) ا. زغرور یا زغریال څواکونه، زرهدار قوا.
زغروبی (zğarōbay) ص. نر.م ۱) جابر، روبناک؛ ۲) تعویذ، پغوریبی؛ ۳) خوړونکی سپی.
زغرووی (zğarōway) نر.م. پالهزوان، د پالهز ساتونکی.
زغره (zğara) ښځ.م. زغرد، وگ. زره.
زغره غوټه (zğaraǧūṭa) ښځ.م. کلکه غوټه، سخته ګنډه، ټینګه غوټه.

زغریالی (zğaryālay) نر.م. زغریال، زغروال، زغرور، هغه څوک چې زغره لري.
زغړ (zğaṛ) ص، نر.م. ساتلی، محفوظ، خوندي.
زغړل (zğaṛəl) مص. مت. بچول، ساتل، خوندي کول.
زغرنځه (zağṛanja) ښځ.م. زوغرنځه، پوچه پسته.
زغستل (zğastə́l) مص. ل. وگ. څغستل.
زغل (zğal) نر.م. وگ. ځغل.
زغم (zğam) نر.م. ۱) حوصله، صبر، تحمل؛ ۲) جنبونه، هضمونه؛ ۳) رو. ګالنه، زغما.
زغمل (zğamál) مص. مت. ۱) ګالل، تحمل کول، برداشت کول؛ ۲) جنبول؛ هضمول.
زغمناک (zğamnāk) ص. نر.م. ۱) صبرناک، حوصله لرونکی؛ ۲) جنبناک.
زغمونکی (zğamūnkay) فا. نر.م. ۱) زغمناک، با حوصله، صابر؛ ۲) جنبوونکی.
زغمېدل (zğamedə́l) مص. ل. ۱) ګالل کېدل؛ ۲) جنبېدل؛ ۳) ربدل؛ ٤) غمېدل، اوږدېدل.
زغنځی (zğanjay) ښځ.م. یو ډول نبات دی.
زغوپر (zğūpar) نر.م. بلا، آفت، ټکه، ناورین.
زغومی (zğūmay) نر.م. تندوره، غرومبی، بغری، زخم، ګرداو، ګرداب، څرخاو، چرخاو، ګمنځ.
زغومې (zğūme) ښځ.ج. وچغنه، وزغنه، وژغنه، اوژغوني، د وزو وری.
زغونډی (zğunḍay) نر.م. وگ. زغبنډی.
زغه (zğa) نر.ج. غږ، د غږه هغه ونه یا بوټی چې د هغه له څانګو او لښتو نه کجاوې جوړوي.
زقوم (zaqūm) نر.م.ج. زقم؛ پمنی، پمنګی، توهر، یو ډول تریخ نبات دی.
زک (zak) نر.م. ۱) د غوږو ګوډی، د غوږیوزی، د غوږو مشک؛ ۲) اشناز، شناخ، خیک.

زکات (zakāt) نر.م. ۱) د اسلام د پنځو ستنو څخه یوه ستنه؛ ۲) وده، نمو؛ ۳) پاکي، سپېڅلتیا؛ ۴) صدقه.

زکام (zukām) نر.م. و.گ. ریزش.

زکانه (zakāna) ښځ.م. همه‌شین تکی چې د محرقه د ناروغۍ په جریان کې پیدا کېږي.

زکبوری (zakbūray) نر.م. زرکبوری، زرکونی، د زرکې بچی.

زکندن (zakandan) نر.م. و.گ. څنکدن.

زگ (zag) نر.م. و.گ. شګ.

زگال (zagāl) نر.م. و.گ. شګال.

زگروا (zgarwa) ښځ.م. زګېروی، فریاد، نالښت.

زگول (zagawal) مص. مت. ۱) په شي راوستل، په څګ راوستل؛ ۲) شاربل، مېښل؛ ۳) تر یوه حده د خمیر دانه د اوړو زیاتول.

زگېدل (zagedal) مص. ل. ۱) په څګ راتلل، په کف راتلل، څګ کول؛ ۲) شاربل کېدل، مېښل کېدل؛ ۳) په کاسه کې چې شلومبې وي، دومره ورو‌ړي ماتېدل چې له څنډو یې توي شي.

زګېروی (zagerway) نر.م. فریاد، نالښت.

زګېرل (zgeral) مص. مت. کینډي اچول، غټ غټ تکونه ایستل، خام کوک کول.

زل (zal) نر.م. ۱) ځل، تل، د بارورونکي حیوان د شا کیږه؛ ۲) د خنجر وار، د توري او چړې ګوزار.

زلال[I] (zulāl) ص. نر.م. ۱) پاکي او رڼې اوبه؛ ۲) زنګال، د واوري چینجی.

زلال[II] (zulāl) ص. نر.م. ۱) لیونی؛ ۲) مج. ظالم.

زلالیه (zulāliya) زلاله، مایع ده چې د قرنیې او د سترګې د عدسیې تر منځ موجوده ده.

زلپی (zulpay) ښځ.م. کسونده، زلفی؛ د اوسپنې یوه کړۍ ده چې په دروازه کې تک وهل کېږي او بیا زنځیر پکې اچول کېږي.

زلخوړتوب (zalxūṛtōb) نر.م. زیاته‌لوړه، ډېره‌لوږه، زلخوړتیا.

زلخوړی (zalxūṛay) ص. نر.م. زیات، یږی.

زلخوړي (zalxūṛi) ښځ.م. زیاته‌لوږه، لوږه.

زلزله (zalzala) ښځ.م. ۱) د ځمکې خوځېدنه، د ځمکې لړزېدا؛ ۲) رېږدېدنه، خوځېدنه، بوږېدنه.

زلزله‌سنج (zalzalasanj) نر.م. زلزله‌ټاکونکی.

زلف عروس (zulfiarūs) نر.م. (خ.) یو ډول لیک دی چې د حروفو وروستۍ یې الفه وي.

زلفه (zūlfa) ښځ.م (ج. زلفي) څڼه، زولفه، کوڅی.

زلقېدل (zalqedal) مص. ل. و.گ. ځلېدل.

زلل (zalal) نر.م (ج. زللونه) زیان، تاوان، ضرر.

زلکېدل (zalkedal) مص. ل. و.گ. ځلېدل.

زلما (zalmā) ښځ.م. د ځني توب وخت، ځواني.

زلمکی (zalmakay) ص. نر.م. ځنکی، ځوانکی.

زلموټی (zalmōṭay) ص. نر.م. ځلموټی، نوی زلمی، نوی ځوان، ځنی، ځوانکی.

زلمی (zalmay) ص. نر.م. (ج. زلمیان) ځوان، ځلمی، ځنی، رسېدلی، بلوغ ته رسېدلی.

زلمي‌توب (zalmitōb) نر.م. ځواني، ځنیتوب.

زلند (zaland) ص. نر.م. جابر، ظالم، مستبد.

زلوچه (zaloča) ښځ.م. زلیچه، قالینچه.

زلونه (zalwana) ښځ.م. و.گ. زولانه.

زله (zila) ص. تب. ستړی ستومانه.

زلینه (zalina) ص. ښځ.م. فاحشه، بداخلاقه ښځه.

زم (zam) نر.م. ۱) ګوزار، وار؛ ۲) زخم، ټپ، پرهار؛ ۳) د «زه هم» مخفف.

زما (zmā) ض. د متکلم مفرد اضافي ضمیر دی.

زمام (zimām) نر.م. ۱) واګې، جلو، جلب، عنان، مهار؛ ۲) مسؤلیت، شرمښه.

**زمامدار** (zamāmdār) ص. نر.م. (ج. زمامداران) ۱) واکدار، واکمن؛ ۲) رئیس، مشر.

**زمان** (zamān) نر.م. ۱) وخت، وقت، مهال، شیبه، روزګار، عصر؛ ۲) دهر؛ ۳) اجل، مرګ.

**زمانه** (zamāna) ښځ.م. ۱) وخت، عصر، زمان، پیړۍ؛ ۲) مج. خلک، خلګ.

**زمانه ساز** (zamānasāz) ص. نر.م. هغه څوک چې ځان د وخت له شرایطو سره برابروي.

**زماني** (zamāni) ص. نب. د زمان، په زمان پورې اړوند، د زمان مربوط.

**زمبر** (zambār) نر.م ۱) ګن او ګور ځنګل؛ ۲) کپر، منهاوو، غاښور؛ ۳) لوړ او جګ غر.

**زمبک** (zumbak) نر.م. ۱) زنبق، زمبق، زنبک، سوسن، یو ډول ګل دی؛ ۲) و.ګ. زومبک ۲).

**زمبور** (zambūr) نر.م. مچۍ، ډمبره، غومبسه.

**زمبولی** (zambōlay) نر.م. ۱) ورکوټی جوال، وړوکی غونډی؛ ۲) وړوکې پانې لرونکی څانګه

**زمبه** (zamba) ص. نب. ۱) زنبه، ګنې، ګور، بېړ؛ له وېښتانو ډک؛ ۲) ښځ.م. څمبه، سترګک، د سترګو اشاره، زمبی، زنبی.

**زمبېدل** (zumbedal) مص. ل. ۱) پرلارې باندې کرار کرار تلل؛ ۲) په تنبلۍ سره کار کول؛ ۳) بانه ریبدل.

**زمبېل** (zambel) نر.م زامبېل، زنبېل، یوه آله ده چې په دوو تنو نیول کېږي او خاوري او... په کې وړل کېږي.

**زمچ** (zamč) نر.م. ج. رمچ. و.ګ. خوری[۱].

**زمرد** (zamarūd) نر.م. ج. یو ډول قیمتي معدني شین کاڼی دی چې غمي ورڅخه جوړوي.

**زمرک** (zmarāk) ا. زمرګوټی، زمریچی، ووړ زمری، د ښارندوی هلک.

**زمرلای** (zmarlāy) ص. نر.م. زمریالی، توریالی.

**زمرماتی** (zmarmātay) ص. زمری ماتوونکی، زړور.

**زمری** (zmarāy) نر.م. (ج. زمري، زمریان) ۱) یو قوي او ځیرونکی حیوان دی؛ ۲) ص. نر.م. زړور، دلاور، مېړنی؛ ۳) غبتلی، پیاوړی.

**زمریالی** (zmaryālay) ص. نر.م. زړور، مېړنی، مرنی، تکړه.

**زمریالی نمري** (zmaryālaynamri) ښځ.م. دریشي

**زمرین** (zamarīn) ښځ.م ۱) زامرین، سخت ساړه، ډېره یخني؛ ۲) شبنم، پسرخه؛ ۳) د دورخ هغه برخه چې ډېر سخت ساړه لري.

**زمزم** (zamzām) نر.م. ۱) د په مکه معظمه کې د یوه چینه نوم دی؛ ۲) جن. ددې چینه اوبه.

**زم زموړلی** (zamzmoẓālay) نر.م. مساوی سری، د زخم او ټپ له لاسه ځلی او عاجز سړی.

**زمزمه** (zamzama) ښځ.م (ج. زمزمې) ۱) بونګېدنه، ترنم کول؛ ۲) تالنده؛ ٤) دزمري اواز.

**زمکه** (zmǝka) ښځ.م. و.ګ. ځمکه.

**زمکي غوښه** (zmakǝygwāṣa) ښځ.م. پرېره، ګربلګه، تیتری، مرغېږی.

**زمن** (zamān) ښځ.م. زمنه، وظیفه، ورد، لسوانی.

**زمنه** (zamana) ښځ.م. دنده، وظیفه، کار.

**زمني** (zamanāy) ص. نر.م. وظیفه پېژندونکی.

**زموخ** (zmox) ص. نر.م. ج. زموخت؛ ۱) هر هغه شه چې دخپل خوند سره دخولې عضلات سره راټول کاندي؛ ۲) تنسري؛ ٤) بخیل.

**زموخ والی** (zmoxwālay) نر.م. زموختیا، زموخت والی (تندوالی، تېزوالی).

**زموږ** (zmūẓ) ض. زموني، زمونږه، زموږه، د جمع متکلم اضافي ضمیر دی.

**زمول** (zmwul) اص. نر.م. ج ۱) مړاوی شېته، شیبته، ناتوانه، کمزوری، ضعیف، جینګړ؛ ۲) د مور په نس کې مړ شوی بچی.

**زمولتیا** (zmoltyā́) ښځ.م. زمولتوب؛ مړاوي توب، جینګتوب، زمول والی، جینګړتوب.

**زمولګر** (zmolgar) اص. زمولونکی، مړاوی، (نرمي ترمي) کوونکی، ځپونکی.

**زمولول** (zmolawә́l) مص. مت. ۱) مړاوی کول، کمزوری کول؛ ۲) ځپل، تر فشار لاندې راوستل.

**زمولېدل** (zmoledә́l) مص. ل. ۱) مړاوي کېدل، جینګېدل، شېته کېدل؛ ۲) ځپل کېدل.

**زمه** (zamā́) ښځ.م. و ګ. خوری.

**زمی** (zmay) ښځ.م. یو ډول کوچنی بوټی دی.

**زمېر** (zmer) نر.م. زمېرنه، ساتنه، حفاظت کول.

**زمېری** (zameray) اص.نر.م. ساتونکی، محافظ.

**زمیندار** (zamindā́r) ص. نر.م. ۱) د ځمکې خاوند؛ ۲) نر.م. بزګر، دهقان، شریک.

**زمیني** (zaminī́) ص.نب. ځمکې، د ځمکې پورې اړوند، د ځمکې له لارې.

**زنا** (zinā́) ښځ.م. زناء، زنی؛ ۱) ل. م. بد عمل؛ ۲) اص. د اسلامي شریعت په اصطلاح د ښځې سره د نر ناروا یو ځای کېدو تهوایي.

**زنار** (z(ı,u)nā́r) نرم. کاپسرمزی؛ ۱) یو زنځیر دی چې لور پالونکي یې تر ځېلې ملا تړي؛ ۲) یوه غاړګې ده چې نصارا یې په غاړه کوي.

**زناکار** (zinā́kā́r) ص. نر.م. زاني، زناکوونکی.

**زنانه** (zanā́na) ص. نب. د ښځو، ښځینه.

**زنبر** (zanbā́r) نر.م. و ګ. زنبېل.

**زنبق** (zanbā́q) نر.م. و ګ. زمبک.

**زنبل** (zanbә́l) مص. ل. ځمبل، سترګک وهل، په سترګو اشاره کول.

**زنبنه** (zanbә̀na) ښځ.م. سترګک، د سترګې اشاره.

**زنبورک** (zanbū́rák) نرم. ۱) دوګانه، د تاکرنو هغه لښتې چې ځینې کمې شوې وي او هغه لښتې ریښې وکړي؛ ۲) یو ډول پخوانی غشی؛ ۳) یو ډول توپ ته ورته پخوانی وسلمه.

**زنبه** (zanbā́) ص. ۱) و ګ. زمبه[1]؛ ۲) ښځ.م. سترګک، د سترګې اشاره.

**زنبېل** (zanbḗl) نر.م. و ګ. زمبېل.

**زنجاني کوفي** (zánjā̀nī̀kofi) (خ.) د کوفي لیک په ډولو کې یو ډول لیک دی.

**زنجپیل** (zanjepī́l) نر.م. ج. زنجبیل، زنجفیل، سرند، شوند، یوه ګیاه ده چې په بېخ کې یې یو ډول مرغړې پیدا کېږي چې هماغه زنجبیل دی.

**زنچخی** (zanča̅́xay) نر.م. زنخدان، د زنې د سر منځنی او ژوره برخه.

**زنځ** (zanǰ) نر.م. و ګ. خوری[1].

**زنځه** (zәnǰa) ښځ.م. سرسوبنده، زمڅه، شوبله، یوه ځمکنۍ خزنده ده چې د ېرې پښې لري.

**زنځی**[1] (zanǰay) ښځ.م. د ګانو نری نری او وړې وړې کړی (حلقه).

**زنځي**[2] (zә̄nǰi) ښځ.م. و ګ. زرنځه.

**زنځیر** (zanǰī́r) نر.م. ځنځیر، سلسله، د سره مېښتو فلزي کړیو یوه کتبلونکې لړۍ ده.

**زنځیرخپور** (zanǰirxpor) ا. پوځي بولۍ (قوماندې) د خبرېدو یا خورېدو (تیتېدو) لپاره.

**زنځیری** (zanǰī́ray) ښځ.م. د پښتو هغه تاریخي لیک دود دی چې خوشال خټک جوړ کړی دی.

**زنخدان** (zanaxdā́n) نر.م. و ګ. زنچخی.

**زنخول** (zanxwā́l) نرم. د زړه او ینې (اینه) ترمنځ نری پرده.

**زند** (zand) د زردښت مذهبي کتاب، د اوستا شرحه.

**سامبولی** (sāmbōlay) ص. نسر.م. شامبولی، پرتوګ بهکلی، لوخ کونی، بې پرتوګه.

**سامع** ( sāme ) ص. نر.م. اورېدونی، اورېدونکی.

**سامعه** ( sāme'a ) ښځ.م. ۱) د سامع مؤنث، شنوا؛ ۲) د اورېدو قوه یا آلت؛ ۳) داورېدو حس.

**سامی** ( sāmay ) ښځ.م. د اوسپنې شلګی، د امسا یا ... تیره فلزي سر.

**سان** ( sān ) نر.م. ۱) یو ډول توکر دی؛ ۲) جوړښت، ساختمان، رغښت، اړاو؛ ۳) لیدنه، کتنه، نظر، رسم ګذشت، ننداره.

**سانچه** ( sānča ) ښځ.م. ۱) چنډری، دکارتوسو جوړولو قالب؛ ۲) ص. نب. نوی، نوی نزی، جدید.

**سانحه** ( sāniha ) ښځ.م. حادثه، پېښه، واقعه.

**ساندو** ( sāndū ) ص. نر.م. وېرګر سانديي کوونکی؛ هغه څوک چې سانديي وهي یا ژاړي.

**سانده** ( sānda ) ښځ.م. ژړا، انګولا، فریاد، انبول، د غم ژړا، وېر، د وېر ژړا.

**سانديي** ( sāndi ) ص. نسر.م. سانديي، د وېر شپو مېلمه ي.

**سانګو** ( sānghū ) نسر.م. ۱) اوبهکي، باجه، د شو خوېندلو مېوېنه؛ ۲) بېکاره، تمبل او ږدارن.

**سانډویچ** ( sāndwič ) نسر.م. ساندویچ، یو ډول ساړه خواړه دي.

**سانده** ( sānda ) ښځ.م. ۱) سنده، شرمېکی، ساراني سمسار؛ ۲) ص. نسر.م. مهیمه، هغه مېښه چې د نر سنډا ختلو ته یې زړه کېږي؛ ۳) نر.م. سنډه، د مېښې نر، سنډا.

**سانسکریت** ( sānskrit ) نسر.م. سنسکریت، : نرغوني هندي ژبې او د اینډو آریایي پخوانیو ژبو : یوې ژبې نوم.

**سانسور** ( sānsōr ) نر.م. مطبوعاتي بندیز، یو ډول بندیز دی چې په خپرونو وختوکي پر رادیو، اخبار، نشرات، فلمونو باندې لګېږي.

**سانګه** ( sānga ) ښځ.م. ۱) څانګه؛ ۲) نېزه؛ ۳) د قافلې ګرځنده هیأت.

**سانګی** ( sāngay ) ښځ.م. ښاخي، سکو، سکا.

**سانګی** ( sāngay ) نر.م. وروکی روغتون.

**ساني** ( sāni ) نسر.م. ۱) داحمدشا بابا په وخت هغه چاته استعمالېده چې د نظامي تنظیم چارې په پې سرته رسولې؛ ۲) ص. نب. د سان څښتن، جوړ.

**سان** ( sān ) نر.م. مست غوایي یا آس.

**ساو** ( sāw ) نر.م. باج، ټېکس، مالیه، د سري د سر مالیات، سرانه مالیه.

**ساوار** ( sāwār ) نر.م. (مو.) د غېر او بم والې چې تر پنځو کم او تر اووه زیات نه وي.

**ساونت** ( sāwant ) نر.م. (مو.) سامنت، د بهرت د مکتب مطابق د شري راګ یو پتر دی.

**ساوني** ( sāwani ) ښځ.م. د مېګ راګ یوه راګني ګڼل شوې ده.

**ساونیله** ( sāwnila ) ښځ.م. هغه رسی چې د اوښ د ګونډه کولو وروسته د هغه زنګون پرې تړي.

**ساوو** ( sāwū ) ص. نر.م. ساهو، ۱) آزاد، خپلواک؛ ۲) اصیل، شریف؛ ۳) غلیي، د کور خاوند.

**ساووتوب** ( sāwūtōb ) نر.م. ۱) آزادي، خپلواکي؛ ۲) اصالت، ۳) شرافت؛ ٤) غلیي توب.

**ساوی** ( sāway ) ص. نر.م. قوي نفش لرونکی آس.

**ساویسا** ( sāwisā ) نر.م. باور، اعتبار، یقین.

**ساه** ( sāh ) ښځ.م. و ګ. سا[1].

**ساه پوهنه** ( sāhpōhana ) ښځ.م. و ګ. سایکالوجي

**ساهو** ( sāhū ) ص. نب. ۱) و ګ. ساوو، ۲) نجیب، شریف.

**ساهي** (sāhi) ص.نب. هېرجن، غافل، ناخبره.

**سای** (sāy) نر.م. شېله، نوی، لګه، خوړ.

**سايره** (sāyira) ښځ.م. يو ډول کوچنی مرغی دی.

**سايز** (sāyz) نر.م. ۱) اندازه؛ ۲) رقم، ډول.

**سايقه** (sāyiqa) ښځ.م. سائقه، د سائق مونث، مخ ته شړونکې، سوقوونکې.

**سايکالوجي** (sāykālōji) ښځ.م. اروا پوهنه، ساپوهنه: ۱) روحيات، روانشناسي؛ ۲) د يوه سړي د اعمالو، خواصو، افکارو جونګ.

**سايکل** (sāykal) نر.م. ۱) بايسکل؛ ۲) د پېښو يوه دوره؛ ۳) دور، دوران؛ ۴) د يوه اسماني ستوري مدار؛ ۷) د برق متناوب جريان يو بشپړ ياتام دوران.

**سايکلون** (sāyklōn) نر.م. و ګ. فشار

**سايکو** (sāykō) (مخ.) ۱) روح، اروا، سېلوي؛ ۲) ذهن، مغز، دماغ..

**سايکي** (sāyki) ښځ.م. (رو.) ۱) انساني روح، بشري اروا؛ ۲) دماغ، ذهن.

**سايګي** (sāyagī) نر.ج ۱) شنه مميز، شني وښکي ۲) ص.نب.د سيوري.

**سايل** (sāyel) ص. نر.م. و ګ. سيال[۲].

**ساينس پوه** (sāynspōh) نر.م. ساينتپهست، ساينس دان؛ ۱) طبيعي پوهنو عالم.

**سايه** (sāya) ښځ.م. و ګ. سيوری.

**سايه وان** (sāyawān) نر.م. چترۍ، چتر.

**سايېز** (sāyiz) ص. هغه غږ چې په وينګ کې يې سايېزوالی راځي، لکه په هندي کنسوننټونو (ph.kh.hh او...) کې ستمېده.

**سايېزغږي** (sāyizğari) ا. تنفسي غږي.

**سايېزغونډال** (sāyzğondāl) ا. تنفسي سيستم يا نظام.

**سبا** (sabā) ق. ۱) راتلونکې ورځ؛ ۲) نر.م. سهار.

**سبات** (sabāt) نر.م. ۱) دالان، منډو؛ ۲) هغه بالا خانه چې دري خواوې يې دېوال وي.

**سباګون** (sabāgūn) نر.م. و ګ. سباوون.

**سبا ناری** (sabānāray) نر.م. ناری، د سهار خوراک..

**سباوون** (sabāwūn) نر.م. سهار، ګهيخ.

**سبايي** (sabāyi) ق. ۱) سهار، ګهيخ، سباوون؛ ۲) سباته.

**سبب** (sabab) نر.م. ۱) علت، موجبه، عامل؛ ۲) وسيله، طريق؛ ۳) دخپلوۍ علاقه.

**سبحان** (sūbhān) نر.م. ۱) پاک، سپېڅلی، منزه؛ ۲) د لوی څښتن يو صفت.

**سبر** (sābar) نر.م. سرو، سروي، د سروي ونه.

**سبری** (sābray) نر.م. شوکور، شبکور..

**سبزه** (sābza) ښځ.م ۱) شنېلی، شنه ګياه؛ ۲) شين مغـزي ختکی؛ ۳) سبزه پېغله يا ښځه.

**سبزي** (sabzī) ښځ.م. ترکاري، سابه، يو ډول خواړه دي چې له سابو څخه پخېږي.

**سبسيډي** (sābsiḍi) ښځ.م. سبسيدی، اعانه، مالي مرسته، د پيسو کومک، دولتي مرسته.

**سبق** (sābaq) نر.م. ۱) لوست، درس؛ ۲) پند، نصيحت، ښوونه؛ ۴) جزا، سزا.

**سبک** (sābk) نر.م. ۱) طرز، روش، لاره؛ ۲) اد. د افکارو د بيانولو خاص ډول.

**سبنه** (sabana) ښځ.م. قناعت، سوده، تسلی

**سبوتاژ** (sabōtāž) نر.م. وران کاري، تخريب، په لوی لاس وېجاړونه.

**سبوس** (sabūs) نر.م. ج. ۱) داوړو بوس، د اوړو غوږوکي، سې؛ ۲) دوچې شوي ډوډۍ ټوکړي.

**سبوسک** (sabusak) ص.نر.م. اروا وړی، وروسترګی.

سبونکه (sabōnka) ښځ.م. سابه او گره، دخوړینو وریجو او سبو څخه جوړ شوی خواړه.

سبونی (sabōnay) نر.م. خمیره، د اوړو خمیره.

سبها (sabhā) نر.م. (تا.) د عوامو مجلس، د ریګویدا د عصر د یوې عوامي جرګې نوم.

سبې (sabē) ښځ.م. یو ډول بوټی دی چې پاڼې یې د غنمو د پاڼو په څېر دي او اوښ خوړلې کېږي.

سبیره (sabīra) ص. ښځ.م. سکه، د سکه د کلیمې سره یو ځای د تاکید په ډول استعمالېږي.

سبیل (sabīl) نر.م. ۱) لاره، طریقه، روش، دود؛ ۲) نیمه او سمه لاره؛ ۳) قرباني، نذر.

سپ (sap) نر.م. ۱) د کارپای تهرسونه؛ ۳) د ببډیو په لوبه کې د ټولو ببډیو ګټنه.

سپاچه (sapāča) ښځ.م. سوږیه، صفه، چتره، چوتره.

سپاخه (spāxa) نر.ج. د تو کر یو ډول لاسي ګنډون.

سپارتاک (spārtāk) نر.ج. چیله تاک، سواره تاک.

سپارخول (spārxōl) نر.م. سپارځی، د پال کونده، د پالي کونده.

سپارښت (spārašt) نر.م ۱) سفارش، سپارښتنه، سپارنه، فرمایش؛ ۲) د انګورو د جوېې نه د خاورو راویستل.

سپارښتلیک (spāraštlik) ‖. سپارښتي پاڼه، سفارشنامه.

سپارښتي (spārašti) د سپارښتور، توصیوي.

سپارل (spāral) مص.مت. حواله کول، تسلیمول، ورکول، ورسول.

سپارنځی (spāranjay) نر.م. ګدام، انبارخانه، تحویلخانه.

سپاره (spāra) ښځ.م. ۱) سسپاره، سپار، پال؛ ۲) ناسور، پربلو لوبنتي تپ، سرزمن شوی؛ ۳) و ګ.، سسپاره؛ ٤) نر.ج. سواره، د سپور جمع.

سپاره (spāra) ص. ښځ.م. سوږه، د کور په چارو کې لټه او بېکاره ښځه یا نجلۍ.

سپانچه (spānča) ښځ.م. ۱) دبه، صُفه، چوتره؛ ۲) د سپېلني بوټی.

سپاند (spānd) نر.م. بې قدره، د سپک د کلیمې سره یو ځای د تاکید لپاره استعمالېږي.

سپانده (spānda) نر.م. سپېلنی، ۱) د سپېلني بوټی؛ ۲) د سپېلني د بوټی توري داني.

سپایي (spāyi) نر.م. ۱) سپاهي، عسکر؛ ۲) ص. نر.م. چمتو، تیار، آماده.

سپته (spatá) ښځ.م. او سپنیزه آله ده چې د مزري ښکلي وریاندې جوړوي.

سپخ (spáx) نر.م. و ګ. لپانکې.

سپخول (spaxáwál) مص. مت. سپرخول، غوټه پرانیستل، سپړول، د ګنډل شوې درز او ټکونو سپړل، درز خلاصول.

سپخېدل (spaxédál) مص. ل. سپرخېدل، سپړېدل، خلاصېدل، بېلېدل، د ګنډل شوې درز یا ټک بېرته خلاصېدل.

سپر (spār) نر.م. و ګ. ډال.

سپرانو (saprānō) ص. نب. مو. و ګ. زیړ ٤).

سپرتیا (spartyā) ښځ.م. سپورتوب، سپارلي، سپرلي، سپربدنه.

سپرځی (sparjay) ښځ.م. یو ډول اغزنه ونه ده.

سپرخوټ (sparxwat) نر.م. یو ډول خړه مرغۍ ده چې د پسرلي په وخت کې راپیدا کېږي.

سپرخوځی (sparxōjay) نر.م. هغه سوری چې د کېږدۍ د دوو تاګیو د دوو سپېرخیو ترمنځ پاتې کېږي.

**سپرخی** (sparxāy) نر.م. ۱) سپېرخي، لويه ستن ده چې کېږدی وربانديې ګينده کېږي؛ ۲) ص. نر.م. کلک، وچ، ټينګ (شی).

**سپرخيغ** (sparxīγ) نر.م. لرګی يا فلزي ستن ده چې ښځې خپل ويښتان پرې بېلوي.

**سپرغه** (sparγa) ښځ.م. ۱) د کاريز شاه؛ ۲) ګل، انځور؛ ۳) د اوبو په منځ کې وچ ځای؛ ٤) د پټي ترک يا ترانګه.

**سپرغی** (sparγay) ښځ.م. د اور بڅرکی، د اور ګل، د اور ذره، بڅرکي.

**سپرغېړی** (sparγeṛay) نر.م. هغه کلک ځای چې د پټي د دوو سرونو په منځ کې پاتې کېږي او د وه غلي کولبه وربانديې تېرېږي.

**سپرک** (spərak) نر.م. يو ډول بوټی دی چې ژېړ رنګ ورڅخه په لاس راځي.

**سپرکښ** (sparkaš) ص.نر.م ۱) سپر اېستونکی، مدافع؛ ۲) مج. پسرتېر، مېړنی.

**سپرلنی** (sparlanay) نر.م. ۱) رساله يي، د سپرو پوليسانو يو غوړی؛ ۲) ص. نر.م. پسرلنی، بهاري.

**سپرلنۍ** (sparlanəy) ښځ.م. ۱) رساله، رساله سوار، د پوليسو سواره ټولی؛ ۲) په بدی کې ورکړه شوي پېغله.

**سپرلو** (sparlō) ښځ.م ۱) د آس ځغلونه؛ ۲) د اسانو د ځغلولو ميدان؛ ۳) د سپرو ډله.

**سپرلوبېړی** (sparlōberay) ا. سورلی وړونکي بېړی، مسافر وړونکې بېړی.

**سپرلی** (sparlay) نر.م. پسرلی، بهار، خرمونی.

**سپرلي** (sparli) ښځ.م. سورلي، سپرېدنه.

**سپرمغ** (sparmaγ) نر.م. غورتکی، غورتيی، د غوړو لکه يا داغ.

**سپرمېغی** (spərmeγay) نر.م ۱) و.ګ. سپرمغ؛ ۲) و.ګ. سپرغی.

**سپرمينه** (spərmayna) ص. ښځ.ج. معاير، د کار د قوانينو افراد.

**سپرول** (spərawəl) مص.مت. سورول، سپورول.

**سپری** (spəray) ښځ.م. يو ډول خړ بوټی دی چې په بېرو ناکه څنګه کې شين کېږي.

**سپرېدل** (sparedál) مص.ل. سورېدل، سپورېدل.

**سپرينګ** (spiring) نر.م.و.ګ. پنر.

**سپړ** (spáṛ) ص. نر.م. غوړېدلی، خلاص.

**سپړدل** (spəṛdál) مص. مت. ۱) خلاصول، پرانيستل؛ ۲) سپخول، سپړودل.

**سپړل** (spəṛal) مص. مت. ۱) سپړول، خلاصول، غوړول، پرانستل؛ ۲) سپخول، سپړودل.

**سپړنه** (spəṛana) ا. کيندنه، کښتنه، شرح.

**سپړنيزه ژبپوهنه** (spəṛanizažəbpōhana) ا. تشريحي ژبپوهنه.

**سپړنی** (spəṛanáy) ښځ.م. (تن.) شارحه، کولن، په ليکنښو کې دا نښه ده (:) چې ديوه لفت يا فقري د تشريح يا وضاحت لپاره کارېږي.

**سپړې** (spəṛáy) ښځ.م. پانه، لرګين ميخ دی چې د سپاري تير د کونډې سره پرې ټينګوي.

**سپړېدل** (spəṛedál) مص. ل. ۱) سپنېدل، غوړېدل؛ ۲) سپخېدل.

**سپږجن** (spəẓján) ص. نر.م. سپږن، شپږک، شوک چې سپږې لري.

**سپږمه** (spəẓmá) ښځ.م. سپږمه، تميزی، سپيږمه، سوږمه، د پزې سوری.

**سپږه** (spáẓa) ښځ.م. شپږه، يو وړه خزنده ده.

**سپږی** (spəẓáy) ښځ.م. شپږی، وړه حشره ده چې د غنمو په دانو کې پيدا کېږي او غنم خرابوي.

**سپېښته** (spaṣ̌ta) ښځ.م. ۱) ښېوی، ښجله؛ ۲) ار. ښنسن، ښیاد.

**سپغزه** (spaǧza) ښځ.م. و گ. سپوغزه.

**سپغول** (spǝǧūl) نر.م. و گ. سپېغول.

**سپک** (spǝk) ص. نر.م. ۱) لږ وزن لرونکی، کم وزنه؛ ۲) مج. بې عزته، بې پته.

**سپکاوی** (spǝkāway) نر.م. و گ. سبکه.

**سپک پاسک** (spǝkpāsǝk) ص. نر.م. ښېخي سپک، بې باکه، ډېر سپک.

**سپک سپاند** (spǝkspānd) ص. نر.م. توهین شوی، سپک شوی، بېعزته شوی.

**سپکوالی** (spǝkwālay) نر.م. ۱) سپکتیا، سپکتوب، د تول لږوالی؛ ۲) بې عزتي، سپکونه، توهینونه.

**سپکول** (spǝkawǝl) مص.مت. ۱) کم وزنه کول، تول لږول؛ ۲) بې عزته کول.

**سپکه** (spǝka) ښځ.م ۱) اسپکه، یو ډول بوټی دی؛ ۲) ص. ښځ.م ۱) د سپک مونث؛ ۲) سپکاوي.

**سپکه خوله** (spǝkaxwala) ښځ.م. بې باکه خوله، ډوزنه خوله، سپوره خوله.

**سپکه سپوره** (spǝkaspōra) ښځ.م. بې ځایه خبره، ډوزنه خبره.

**سپکه سترگه** (spǝkastǝrga) ښځ.م. بې احترامي، حقارت، اهانت.

**سپکېدل** (spǝkedǝl) مص.ل. ۱) بې عزته کېدل، توهینېدل؛ ۲) تول لږېدل، وزن کمېدل.

**سپل اغزی** (spalaǧzay) نر.م. اغزکی، یو تریخ اغزی لرونکی بوټی دی.

**سپل غټ** (spalǧaṭ) نر.م. د سپي غول.

**سپلکی** (spalkay) نر.م. هغه پسه چې ښېښې یې سپیني او نور بدن یې سور وي.

**سپلگ** (spilag) نر.م. موره، وزه یې وازده، د وزې او د غوایي د وازگې غوړي.

**سپلگه** (spalga) ښځ.م. د اېرک تېره.

**سپلم** (spalam) نر.م. ۱) گیډره؛ ۲) ص.نر.م. چوغلگر، چغلگر.

**سپلمه** (spalma) ښځ.م. گوگوشتی، گوگوشتو، گوکوشته، قمري، خرته کوتره.

**سپلمی** (spalmay) نر.م. هغه آس چې ښېښې او تندی یې سپین وي.

**سپلمۍ** (spalmay) ښځ.م. ۱) یو تریخ پلن پاڼي خړ رنگه سارانی بوټی دی چې یې هم کري؛ ۲) هغه سپۍ چې وار یې راوړی وي.

**سپم** (spam) نر.م. سلم، د ستني سوری چې تار ترېنه ایستل کېږي.

**سپما** (spamā) نر.م. پس انداز، سپمونه، زېرمه، ذخیره.

**سپمایي** (spamāyi) ص. د سپما اړوند، پاسرایي، زېرمه یي.

**سپمبوټی** (spambūṭay) نر.م. ترخه، یو ډول غرنی بوټی دی.

**سپموک** (spamūk) ص.نر.م. بچت والا، سپمی، بچت کوونکی، پس انداز کوونکی.

**سپمول** (spamawǝl) مص. مت. ۱) بچتول، پس انداز کول؛ ۲) سرېول، درېغول.

**سپمی** (spamay) نر.م. ۱) سپېلومی، سپونی، سپوني، مرسپمی (و گ. سپوني)؛ ۲) ص. نر.م. و گ. سپموک.

**سپمېدل** (spamedǝl) مص. ل. ۱) بچت کېدل، پس انداز کېدل؛ ۲) درېغېدل، سرېېدل.

**سپنخړی** (spanxaṛay) نر.م. اوسپنخړی، اوسپنخټ، د اوسپني خټ.

**سپندخ** (spandax) نر.م ۱) دسنیو یا انځیر غونداری ۲) غونډسکه،پنډوس؛ ۳) ووی،دبوسو خوسی.

**سپندوخه** (spendòxa) ښځ.م. د کینډ لوبه.

**سپنګیر** (spangèr) نر.م. یو ډول بوټی دی چې د چنګک غونډې اغزي لري.

**سپڼ** (spaṇ) نر.م. سوڼ، غږ، حرف، کلیمه.

**سپڼ ختی** (spaṇxàtay) نر.م. په جوال باندې یو ډول منحنی شکله نقش یا انځور.

**سپڼسپڼګی** (spaṇspaṇgay) نر.م. سپڼسکی، د بندونو رګ، عرق الرباط.

**سپڼسکی** (spaṇsakay) نر.م ۱) و ګ. سپڼسپڼګی؛ ۲) یو ډول وابنه دی چې شین ګل کوي؛ ۳) لنډ تار؛ ٤) د میږو او پسونو یو ډول ناروغي ده.

**سپڼسی** (spaṇsay) نر.م. تار، نخ مېزی، رشته.

**سپڼسین** (spaṇsin) ص. نر.م. د سپڼسی، نخي، پنبه یي، تاري.

**سپڼکی** (spaṇkay) نر.م. سپرغی، بڅرکی، د اور ذره، د اور بڅری، د اور سپرغی.

**سپڼول** (spaṇul) مص. مت. ۱) سپڅول، سپړل، سپړل په غور یا دقت سره جلا کول: ۲) څېړل.

**سپڼی** (spaṇay) نر.م. ۱) سپېلوصی،یو ډول جلدي ناروغي ده؛ ۲) په اوبه شوي ځمکه کې وچ پاتې شوی ځای.

**سپڼېدل** (spaṇedèl) مص.ل. ۱) سپړېدل، سپڼل کېدل: ۲) د جامو درز خلاصېدل.

**سپوتکی** (spotakay) نر.م ۱) سپوتی، بې همته، پست سړی؛ ۲) ټیکری، پوړنی؛ ۲) هغه توکر چې د دیګ په سر اچول کېږي.

**سپوتنیک** (spùtnik) نر.م. د ځمکې مصنوعي سپوږمۍ.

**سپوخڅه** (spòxṣa) ښځ.م. و ګ. سپوږغزه.

**سپوخسه** (spòxsa) ښځ.م. و ګ. سپوږغزه.

**سپور** (spòr) ص. نر.م ۱) سوار، سور، د پلي نقیض. ۲) وچ، سپېره، بې غوړو؛ ۳) د سپکې خولې او بدې رویې خاوند؛ ٤) نر.م. ګوډله، دوه سري کولنګ؛ ٥) د غیر زوجي تکثر عامله حجره.

**سپورپوځ** (spòrpawj) نر.م. سپور یا سور لښکر، سواره.

**سپورټ** (spòrt) نر.م. ورزښت؛ هر هغه تمرین چې د خوښۍ، تفریح او د توجه داروني لپاره کېږي

**سپورچلم** (spòrčilam) نر.م. د چرسو چلم.

**سپور خور** (spòrxòr) ص. نر.م. ۱) هغه څوک چې تل بې غوړو او سپېره ډوډۍ خوري؛ ۲) مج شوم، بخیل.

**سپورخولی** (spòrxùlay) ص. نر.م. پوچ خولی، بدژبی.

**سپورسترګی** (spòrstèrgay) ص. نر.م. بې حیا، سپین سترګی، بې شرمه.

**سپورغټه** (spòrğata) ښځ.م. د اور سکروټه.

**سپورغی** (spòrğay) ښځ.م. ۱) یو ډول ونه ده؛ ۲) د دروازې یا وره ګل میخی.

**سپورکه پلی** (spòrkapalay) نر.م. د ماشومانو یو ډول لوبه ده.

**سپور نغری** (spòrnğaray) نر.م. جګ او هسک نغری، د ځمکې د مخ نغری.

**سپوروالی** (spòrwàlay) نر.م. ۱) وچتوب، بې غوړتوب؛ ۲) تر بنګل توب؛ ۳) بد رویه لرنه

**سپورول** (spòrawəl) مص مت ۱) ډوډۍ وچول، کنځ بې غوړو کول؛ ۲) و ګ سپړول.

**سپوره** (spòra) ص. ښځ.م ۱) وچه ډوډۍ؛ ۲) هغه ډوډۍ چې کنځ بې غوړ یې لیږدي؛ ۳) بې کنځه ډوډۍ؛ ٤) مج. سخته او نامناسبه خبره.

**سپوري** (spūre) ص. ښځ. ج. بدي؛ نامناسبې خبرې، دخولې جنګ.

**سپوربدل** (spūredal) مص.ل. ۱) سپربدل؛ ۲) ادرودی وچېدل، کتغ بې غرور کېدل.

**سپوري ستغي** (spūrestaġe) ص. ج. بدورد، نامناسبې خبرې، بدې خبرې.

**سپوږمی** (spōẓmay) ښځ.م. میاشت؛ (جغ.) د سماوي اجسامو څخه یو جسم دی چې دځمکې تمر ګنل کېږي.

**سپوږمی بوټی** (spōẓmaybūṭay) نر.م. یو دول ګردی بوټی دی چې ابې ګل کوي.

**سپوږمی تندره** (spōẓmaytandra) ښځ.م. خسوف، تندره، سپوږمی نیول.

**سپوږمی ګل** (spōẓmaygwal) نر.م. یو دول نقش دی چې د وربښمو سره خامک کېږي.

**سپوږمیز** (spōẓmiz) قمري، سپوږمی ته اړوند.

**سپوږمیز کال** (spōẓmizkāl) اا. قمري کال.

**سپوغان** (spōġān) نر.م. یو دول کرچنی سپین بخن بوټی دی چې سپین ګل کوي.

**سپوغزه** (spōġza) ښځ .. سپورخشه، سپوخسه، سپغزه، سپوخشه، سپوحت، سپوعز، مثانه.

**سپوول** (sapawul) مص.مت. په اسهال کې دبر عمل کول، نس بهول، د نسه زیات ایله کول.

**سپوڼ** (spūn) نر.م. ۱) هجا، تلفظ؛ ۲) هغه دانه یا ورح چې په پوله کې د دوو پنبو ترمنځ ري.

**سپوڼول** (spūṇawul) مص.مت.و ګ. سپنول.

**سپوڼی** (spūṇey) نر.م. سپوږی، سپومی، یو دول جلدي مرروغي ده

**سپوڼېدل** (spūṇedal) مص.ل. و ګ. سپنېدل.

**سپه سالار** (spasālār) نر.م. لوی قومندان، مشر، د لښکر رئیس، سپاه سالار.

**سپږی**[1] (sapay) نر.م. هغه لرګی چې د لرمې څرخ وربانديې تاره کېږي.

**سپږی**[2] (spay) نر.م. یو دول تې لرونکی او له غوښو خوړونکو حیواناتو څخه دی.

**سپیازول** (spyāzawul) مص.مت. اولاد نخسانول، د حمل سقط، اولاد زیانول.

**سپیازه** (spyāza) ص. ښځ.م. بې غایه، هغه ښځه چې اولاد نقصان کړي.

**سپیازېدل** (spyāzedal) مص.ل. زیانېدل، نخسانېدل، نقصانېدل.

**سپیاکه** (spyāka) ښځ.م. ۱) د میوه ووړی؛ ۲) اچه، د لرګي دوه ښاخې.

**سپیتانون** (spitānūn) نر.م. د سپین نژاد خاوند.

**سپیپن** (spipaṇ) نر.م. نسترن، خورج.

**سپیتانه** (spitāna) ښځ.م. ۱) بې غیرتي، پستي؛ ۲) زیات حرص.

**سپیت سپیت** (spitspit) نر.م. یو اواز دی چې پر سپې باندې د سپې دختلو لپاره ویل کېږي.

**سپیټه** (speṭa) ښځ.م. ۱) پانه، فانه؛ ۲) د ښپلیو د اوبدلو سیخک.

**سپیټی** (spiṭay) نر.م. رذیل، پست (سړی).

**سپېټه** (speṭa) ق. ۱) هېڅکله، کورټ، له سره؛ ۲) ساپټه، ټول، تمام.

**سپېڅ** (speċ) ص.نر.م. صاف، خالص، بې غشه.

**سپېڅاند** (speċānd) ص. پاکساز، پاکسازي، خالص خوبي.

**سپېڅل** (speċal) مص. مت. صافول، پاکول.

**سپېڅلتوب** (speċaltōb) نر.م. پاکتوب، پاکلمني، پاکي، عفت.

**سپېڅلتیا** (speċaltyā) ښځ .. ۱) پاکي ستره ګی، صافوالی؛ ۲) تقدس.

**سپېڅلځای** (specəljāy) ! . سپېڅلی ځای، سپېڅلی (مقدس) ځای.

**سپېڅلی** (specəlay) ص. نر.م. ۱) پاک، ستره؛ ۲) صادق، صاف (سړی)؛ ۳) مقدس.

**سپېڅنه** (specəna) ښځ.م. پاککاري، پاکسازي، چاڼونه.

**سپېدار** (spedār) نر.م. سفیدار، یو ډول ونه ده.

**سپېدچه** (sapedča) جن. یو ډول غنم دی.

**سپېدکی** (spedkay) ښځ.م. یو ډول سپین بخن مرغۍ دی چې سر یې پلن او بېخ یې نری وي.

**سپېدلی** (spedəlay) ص. نر.م. ۱) ساده سړی، ماړه؛ ۲) لنډ اندی، لنډ فکره.

**سپېدوداغ** (spedodāğ) نر.م. سپېده داغ، صبح صادق، سپېدې.

**سپېده ۱:** (sapeda) ښځ.م. سفېده، یو ډول سپین پوډر دی چې ښځې یې پر مخ د ښکلا لپاره وهي.

**سپېدې** (spede) ښځ.ج. د سبا رڼایي.

**سپېدې چاود** (spedečāwd) نر.م. سپېده چاود، سهار وختي.

**سپېرخوټ** (sperxwaṭ) نر.م. یو ډول نریع گرجنر بوټی دی چې سپین گل کوي.

**سپېرخولی** (sperxwlay) ص. نر.م. ۱) بدخولی، بد ژبی؛ ۲) شتلی، سپېره.

**سپېرخی** (sperxay) نر.م. ر.گ. سپېرخی.

**سپېرشلی** (sperṣ̌əlay) نر.م. یو ډول سامه دی.

**سپېرکوندکه** (sperkundəka) ښځ.م. ملاگکه، سپېرکونده، کوبله، سپېره کوټه، مرغۍ ده.

**سپېرکی ۱:** (sperkay) ښځ.م.ج. حراني، یو ډول سپېره بوټی دی چې دانو یې کورني دوا ده.

**سپېرکی ۲:** (sperkay) ص.نر.م. ۱) خاکساره سړی؛ ۲) د سپېره مصغر چې د خړ رنگې مانا لري.

**سپېرگل** (sperğal) ص.ص.مت. بکنځل کول، کنځا کول، بدورد ویل.

**سپېرگه** (sperga) ښځ.م. ریاره، کنځا، کنځل.

**سپېرلت** (sperlat) ص. نر.م. ۱) سپېره، په خاوره ککړ، خړ؛ ۲) سست، ناراسته.

**سپېرلکی** (sperlakay) نر.م. هغه بېټ چې عمر یې دوو کلو ته رسېدلی وي.

**سپېرلم** (sperlam) نر.م. خړلمی، سپېره لمی، خړ رنگې نوښیه، خړ گیډه.

**سپېرمخی** (spermaxay) ص.نر.م. سپېره مخی، بدبخت، بدمرغه، بدطالع.

**سپېرمرغی** (spermarğay) نر.م. تپي، سرزېړی، سپېره کتغ.

**سپېرنگ** (spering) نر.م. ر.گ. پیر.

**سپېرنی** (speranay) نر.م. یو ډول حسې بوټی دی چې کوچنی پاڼې لري.

**سپېرونی** (sperunay) نر.م. دنیسي چای، یو ډول نبات دی چې چای غوندې یې ایشوي.

**سپېروونی** (sperawunay) نر.م. سپېره، برنه، سپېره غوني، هغه اوړه چې په هغه کې حیشته شوې اوړه علولي کوي.

**سپېره** (spera) ص. نر.م.ج. ۱) خړ، په خاورو ککړ؛ ۲) خړ رنگه خاني؛ ۳) تناه وران؛ ۴) بدمرغه.

**سپېره توب** (speratob) نر.م. ۱) سپېره والی، بدمرغي؛ ۲) خړوالی، په خاورو ککړوالی.

**سپېره گهیځ** (speragahiz) نر.م. شنه خړه، خړ گهیځ، سور گهیځ، شین سهار.

**سپېري اوبی** (spereobay) ردي، پلمنوی.

**سپېږمه** (spežma) ښځ.م. ر.گ. سږمه.

**سپېس** (spes) نر.م. ۱) (تن.) ر.گ. مناصله؛ ۲) هر. ر.گ. مناظر.

**سپي ستوري** (spistōray) نر.م. فضول، چټي، بدخولی(سړی).

**سپېسته** (spēsta) ښځ.م. تـروه خميره، تروشه خميره، تاګه يا توکه خميره.

**سپېسکی** (spēskay) نـر.م. يو ډول پلن بـوټی دی.

**سپېښته** (spēṣ̌ta) ښځ.م. د نس پرده.

**سپېغود** (spegōd) نر.م. سپيغود، يو ډول غرنی بوټی دی چې سپين ګل کوي.

**سپېغول** (spegōl) نر.م. سپرزه، اسپغول، سپغول، اسفرزه، يو ډول طبي بوټی دی.

**سپېګانه** (spegāna) ښځ.م. وګ. سپيتانه.

**سپېلنی** (spelanay) نـر.م. سپانده، سپلنی، يو ډول بوټی دی چې توري وړې وړې داني کوي.

**سپي لوبه** (spilōba) ا. سپي جنګونه، سګبازي.

**سپي لوبی** (spilōbay) ص. سپي جنګوونکی، سګباز.

**سپي لوښی** (spiloṣ̌ay) سپي خوريه، سپي مخی.

**سپي مخی** (spimaxay) ص.نـر.م. ۱) بې پاسه بې لحاظه: ۲) بې‌شرمه، بې‌حيا.

**سپي مرګو** (spaymargō) ښځ.م. د سپيو ناروغي.

**سپېمه** (spema) ص.ښـځ.م. ۱) هغه سپۍ چې سپي غواړي: ۲) مج. بدلمنه او بې عفته ښځه.

**سپېمه توب** (spematōb) نـر.م. سپېمه والی، سپۍ چې د نر سپي په طلب کې وي.

**سپين** (spin) ص. نـر.م. ج. ۱) سـپين رنګ، د شيدو رنګ: ۲) پوست‌شوی: ۷) عفيف، پاک لمنی: ۸) مج. رښتياني: ۹) روک، صريح.

**سپين اغزی** (spinaġzay) نـر.م. يو ډول سپين بوټی دی چې کوچيان يې د ايرو ښخه د کالـبو د مينځلو لپاره کار اخلي.

**سپيناوو** (spināwu) ص. پاککاري، پرېکړه کوونکی.

**سپيناوي** (spināway) ا. رڼاوي، سپينتن، پرېکړه، داوري.

**سپين باز** (spinbāz) نر.م. ۱) يو ډول باز دی چې سپينې بڼکې لري: ۲) مج. صادق سړی.

**سپين بوټی** (spinbūṭay) نـر.م. يو ډول سپين رنګی بوټی دی.

**سپين پايڅه** (spinpayca) ص. ښځ.م. ۱) پاکه نجلی: ۲) هغه نجلی چې د دوو قومونو ترمنځ د شخړي سبب شي: ۳) سپين پايڅې، هغه ښځه چې يې د واده له شرايطو مېړه ته وسپارله‌شي.

**سپين پټکی** (spinpaṭkay) ص.نـر.م. زيـې شادري، په پښتني ټولنه کې د ملا، اخـوندا و ميا اعزازي لقب دی.

**سپين تاوده** (spintāwda) نر.ج ۱) يو ډول ګردی او سر يې تېره کورت دي: ۲) کورت او غوري.

**سپين ټېکری** (spinṭekray) ښځ.م. هغه ښځه چې د دوو قومونو ترمنځ د جګړي سبب شي.

**سپين چوتار** (spinčawtār) نر.م. سپينه بګړی، سپينه بګړی، (وګ. سپين پټکی).

**سپين ځی** (spinǰáy) نـر.م. سپنځی، قلعي، يو ډول فلز دی چې مسين لوښي پرې سپينوي.

**سپين خړی** (spinxáṛay) نر.م. وګ. سپنخړی.

**سپين خولی** (spinxūlay) ص. نر.م. سره خوله، بې ږيري، هغه هلک چې ږيره يې نه وي راغلې.

**سپين دروی** (spindrōbay) ص. نر.م. ۱) ابنه سړی، مصلح، مخور: ۲) هغه څوک چې سبيبې جامې اغوندي.

**سپين دروتيا** (spindrōbtyā) ښځ.م. عزت، مشرتيا، عزتمندي.

سپین زر (spīnzar) نر-م-ج. نقره، سیلور.

سپین زرلی (spīnzarlay) ص. نر-م. په سپینو زرو پټ، په سپینو زرو پوښل شوی.

سپین زړه (spīnẓṛa) توصیفي ترکیب، صادق، پاک زړی، رښتونی.

سپین ږږوکی (spīnẓaṛūkay) نر-م. ۱) یو ډول بوټی دی؛ ۲) د سپین ږیری مصغر.

سپین ږیرتوب (spīnẓirtōb) نر-م. بوداتوب، زړتوب، سپین ږیرتیا.

سپین ږیری (spīnẓīray) ص. نر-م. ۱) بوډا، زوړ، مسن؛ ۲) مشر سړی.

سپین سبا (spīnsabā) نر-م. ۱) رڼا ګهیځ، رڼا سبا؛ ۲) تالا، لوټ (لکه د کور).

سپین سپېځلی (spīnspecālay) ص. نر-م. پاک، سوتره، پاکیزه، سوچه.

سپین سپرغی (spīnspărğay) نر-م. یو ډول سابه دي چې اومه خوړل کېږي.

سپین سترګی (spīnstărgay) ص. نر-م. بې حیا، بېشرمه.

سپین سر (spīnsăr) نر-م. ۱) هغه سړی چې ویښتان یې سپین وي؛ ۲) بوډا، زوړ (د ښځو لپاره).

سپین سرتوب (spīnsartōb) نر-م. بوداتوب، زړبودیا، زوړ توب، زوړوالی (د ښځې).

سپین سرونه (spīnsarūna) ب. ک. په مرکه کې بې طرفه خلک چې حقیقت ورڅخه څرګندېږي.

سپین شونډوخاني (spīnšūnḍūxāni) نر-ج. یو ډول اوږده سپین رنګي کندهاري انګور دي.

سپین کب (spīnkab) نر-م. شیرماهي.

سپین کت (spīnkat) نر-م. تباشیر.

سپین کشمش (spīnkišmiš) نر-ج. یو ډول خړ انګور دي چې دانه یې روچه ته ورته ده.

سپینکی (spīnkáy) ښځ-م. ۱) انړی وازګه، د نس وازده؛ ۲) توره؛ ۳) د مرغۍ په منځ کې ګل زیړی. ۴) د وازدې وړې وړې توټې.

سپینکی (spīnkáy) نر-م. ۱) سختو، د پسه کولمه له تکېدلي غوښې څخه ډکېږي او وروسته تر وچېدو یې پخوي؛ ۲) پېچ کولمه، غوړه کولمه.

سپین ګهیځ (spīngahīj) نر-م. رڼ ګهیځ، سپین سهار، سپین سوبیل.

سپین لمنې (spīnlamáne) ص. ښځ-م. پاکه ښځه.

سپین لمني (spīnlamanī) ښځ-م. پاکي، عفت، پاک لمني.

سپین لمی (spīnlámay) نر-م. ۱) د لومېږي په شمېر یو ځناور دی؛ ۲) د کوترو یو ډول دی.

سپین مخ (spīnmax) نر-م ۱) ښکلی مخ؛ ۲) مجـ. بې ګناهي، معصومیت.

سپین مخي (spīnmaxi) ښځ-م. بې ګناهي، معصومیت.

سپین مخی (spīnmaxay) ص. نر-م. رښتین، صادق، بېګناه، معصوم.

سپین نینولی (spīnninawálay) نر-م. چلو، چلاو، سپینې وریجې پخول.

سپینوالی (spīnwālay) نر-م. ۱) د توروالي ضد؛ ۲) صفایي، رڼایي؛ ۳) صداقت، رښتینوالی.

سپین وږه (spīnwāẓra) ص. نب. سپین بخن، سپین وښمه، سپین وږمه.

سپین وږوی (spīnwraẓay) ص. نر-م. هغه آس چې وږوږی یې سپین وي

سپینول (spīnawál) مص. مت. ۱) پوست لیرې کول؛ ۲) د لوښو یا خونې یا ... روښانه کول؛ ۳) تصفیه کول، کرمه موضوع روښانه کول.

**سپین ولی** (spinwólay) نر.م. سپیدار، چنار.

**سپین ویل** (spinwayal) مص.مت. رښتیا ویل، صاف و صریح ویل، په ډاګه ویل.

**سپینه** (spína) ښځ.م. ۱) پله؛ ۲) وازده، وازګه؛ ۳) سپین زرو سکه؛ ٤) د سپین مونث شکل.

**سپینه دوره** (spinadúra) ښځ.م. سپین پوډر، د هندوانو د م ړ: سوځولو وروسته پاتې ایره.

**سپیني** (spíne) ښځ.ج. ۱) پلې، د پوندې د پاسه ملې؛ ۲) وازګې، وازده.

**سپینی** (spínay) نر.م. د دعوې پریکړه او فیصله.

**سپین توری** (spintóray) نر.م. تحقیق، اثبات.

**سپینېدل** (spinedál) مص.ل. ۱) پوست لیرې کېدل؛ ۲) د لوښو یا خونو سپینېدل؛ ۳) مج. تصفیه کېدل، څرګندېدل، فیصله کېدل.

**ست** (sat) نر.م. ۱) بلنه، سلا؛ ۲) ناموس، عزت.

**ستا** (stā) ض.م. د تا، د مفرد مخاطب اضافي ضمیر دی.

**ستار** (۱) (sitār) نر.م. صو. سیتار، سه تار، تنبور او سرود ته ورته د موسیقۍ یوه آله ده.

**ستار** (۲) (sattār) ص.نر.م. پټوونکی، پرده پوښ؛ لوی څښتن له صفتونو څخه یو صفت دی.

**ستاره** (sitāra) ښځ.م. ساه، هیبت، وېره.

**ستاړه** (stāṛa) ښځ.م. سوله، پخلا کېدنه.

**ستاژ** (stāž) نر.م. د عملي کار د زده کړې دوره.

**ستاسو** (stāsu) ض.ج. ستاسي، د ستاسو.

**ستالب** (stālab) نر.م. یو ډول بوټی دی.

**ستانه** (stāná) ص.مر.ښځ.م. ۱) روحاني، بزرګ، د روحاني کورنۍ غړی؛ ۲) ص.ج. پاته شوي، پاتې شوي، ځنډېدلي.

**ستاوندي** (stāwandí) ښځ.ج. چنې او بېر ... خبرې، اېلتې.

**ستایل** (stāyal) مص.مت. ۱) صفت کول، ستاینه کول، توصیفول؛ ۲) مج. بد اورد ویل.

**ستایلی** (stāyalay) ستایل شوی، د صفت موصوف.

**ستاینلیک** (stāyanlik) نر.م. تقدیرنامه، تحسین نامه.

**ستاینور** (stāyanwar) ص. د ستاینې ور.

**ستاینوم** (stāynūm) .... صفت نوم، صفت، لقب.

**ستاینومترنګ** (stāynūmtarang) توصیفي ترنګ (ترکیب).

**ستایوال** (stāywāl) ص.نر.م. توصیف کوونکی، مداح، خطیب، ستایونکی.

**ستایوی** (stāywayay) ستاینوم، توصیفي کلمه.

**ستتیک** (statik) نر.م. و ګ. چکلا پېژندنه.

**ستخ** (stax) ص.نر.م.ج. ستوخ، بدخونده خواږه.

**ستدیوم** (stedyūm) نر.م. و ګ. ستېډیم.

**ستر** (۱) (star) ص.نر.م.ج. ۱) لوی، غټ؛ ۲) پراخ؛ ۳) مشر؛ ٤) نر.م. تنکي، تېک، ځنۍ، شقیقه.

**ستر** (۲) (satar) نر.م. پرده، پوده، حجاب.

**ستراو** (satrāw) نر.م. ۱) یو ډول میوه لرونکې ونه ده؛ ۲) د میوې شیره.

**ستر پاسوال** (starpāswāl) نر.م. په پولیسو کې لوړ رتبه چې د عسکرۍ له ستر ... سره برابر ده.

**سترتوب** (startōb) نر.م. سترتیا، لوی والی، پرتم.

**سترجنرال** (starjanrāl) .... سرلښکر، سپه سالار.

**سترچاری** (starčāray) ص. لوی چاری، پښتمن (مغرور).

**سترچاري** (starčārí) لوی چاري، پښتمني، غرور.

**سترغلی** (starǧalay) نر.م. ۱) د سترګو ګاتی؛ ۲) د سترګې کسې؛ ۳) د سترګې پرده.

**سترکوکو** (stárkokō) نر.م. نسترن.

**سترګ ارتاو** (stargaltáw) لبدارتاو، چشم انداز.

**سترګبندي** (stárghandá) ا. کودي کودګري، چشمبندي.

**سترګبېجن** (stárghejan) نر.م. هغه شه چې سترګی اخلي؛ هغه هکلی یا راکښونکی څیز چې د خلکو پام ځان ته راکاږي.

**سترګ توری** (stargtóray) ص. نر.م. ۱) تور سترګی؛ ۲) دسترووي کنایه.

**سترګ خوږي** (stargxúẓi) ښځ.م. د سترګو ناروغي او درد.

**سترګ رپ** (stargráp) نر.م. د سترګو درپ هومره لنده شیبه.

**سترګک** (stargák) نر.م. چشمک، دسترګو اشاره.

**سترګليد** (stargléd) ا. د سترګو لید، د سترګو نظر، چشمدید.

**سترګلینه** (stargléna) ښځ.م. نظر بازي، کتنه.

**سترګن** (stargán) ص. سترګور، سترګي والا، عینکي.

**سترګن کوکو** (stargankóko) نر.م. دنرګس ګل.

**سترګنلی** (stargnaláy) نر.م. د سترګو کاسه، د سترګو د کاتو (مرغنیامه) ځای.

**سترګور** (stargawár) ص. نر.م. ۱) بینا؛ بصیر، د نظر خاوند؛ ۲) مج. عالم، پوه.

**سترګ وری** (stargwə́ẓay) ص.نر.م. سترووری اروا وړی، بد سیلی، حریص، سرابی.

**سترګه** (stə́rga) ښځ.م. د انسان و حیوان د لیدلو او کتلو عضو، د باصري غړی.

**سترګی** (stargáy) ښځ م. ۱) عینکي، چشمي؛ ۲) د ژرندې د شرخ چیرې؛ ۳) چیور، د دروازې لښک؛ ۴) د اوبو د چینې سوری؛ ۵) د بېر منتظر.

**سترګي پر لار** (stargeparlár) ص. څارو، منتظر.

**سترګي تړل** (stargetaṛə́l) مص. مت. پړوند چرګ، د ماشومانو یو دول لوبه ده.

**سترګیز** (stargíz) نر.م. وګ. سترګور.

**سترګي والا** (stargaywālā́) وګ. سترګن.

**سترمېړه** (starmeṛa) ص. ځه ځوان، لوی مېړه.

**سترنج** (satránj) نر م. شطرنج؛ یوه لوبه ده.

**سترنجي** (satranjí) ښځ.م. سترنجی، دري، یو دول نخي نرش دی.

**ستر واخفا** (satrawaxfā) ښځ.م. (عس.) پټونه، نبهامونه: ... د حزو تامونو، وسلو د واقعي وضعیت پټول.

**سترونده** (satarwánda) ص. ښځ.م. مستوره، ستر منه، سراپرده، (ښځه)

**ستروی** (starwáy) نر.م. د مسوپ حشره.

**ستروي** (starwí) ښځ.م. لویي. لویوالی ...

**ستره** (satrá) نر.م. ۱) روی بند پوزنی، توکری؛ ۲) ص. ښځ.م. سراپرده ښځه. ۳) ښځ.م. په کښي کي د څارو ... د ډریدو ځای.

**ستره** (sutrá) ص. نب پ ک. سپېڅلی.

**ستره** (satrə́) ښځ م. ۱) کوده، ګېډۍ؛ ۲) د انسان یا څاروي غوړيدلي پوست.

**ستړېدل** (staṛedə́l) مص. ل لویېدل، غټیدل.

**ستړيوالی** (staṛiwālí) ص. نب. ۱) ستړی مو مانه؛ ۲) یوه کسورني چي تول د ناروغي په ستر کي پراته وي.

**ستړی** (staṛáy) ص. نر.م ستومانه، خسته.

**ستړیا** (staṛyā́) ښځ.م. ستوماني، ستړتیا، نا آرامي، خستګي.

**ستړېدل** (staṛedə́l) مص. ل. ستومانېدل، ستړی کېدل، خسته کېدل.

**ستړی ستومانه** (starəystomāna) ص. نـر.م.
د ېر ستړی ، سخت ستومانه ، توکړتوکر.

**ستړي مشي** (starimaši) بـښ.م. بـه راغلی،
هرکلی، د حال احوال پوښتنه.

**ستغ** (stag) ص.نـر.م. ۱) وگ. سـتـغ؛ ۲)زیـږ؛
۳)شخ، سم؛ ٤) په غره کې نیغه ختلې لاره

**ستغه** (staǵa) ص. ښځ.م. سخته خبره، بده خبره.

**ستګ** (stag) نر.م. سنجاق، ستنک.

**ستل** (satál) نر.م. ۱)بالټی، سطل، د اوبه د ساتلو
یا انتقالولو لوښی؛ ۲)مص.مت. هوارول.

**ستلی** (satálay) مف. نر.م. هوار کړی، اوار کړی.

**ستم**[1] (sitám) نر.م. ظلم، تېری، زیاتی.

**ستم**[2] (stam) نر.م. ستام، ستما، ستمهار، ستمی،
نېسک، سپله هار، تیگا.

**ستما** (stamá) ښځ.م. ستم، ستمی، نېسک.

**ستمن**[1] (satmán) نـر.م. ۱) مـهلـمه پال، مېلمه
پالونکی؛ ۲)بانامرسه.

**ستمن**[2] (stamán) نر.م. ۱)یو ډول تریخ بوټی دی
۲)ص.نر.م. شتمن، بهای، دنیا دار.

**ستمهار** (stamahár) نر.م. د ستمي اواز، د هغې
وهلو اواز، ستمېدنه.

**ستمېدل** (stamedál) مص.ل. سالنډه لنډه کېدل،
ستمی کېدل، په ستمي کېدل.

**ستن** (stan) ښځ.م. ۱)یوه نری وړه فلزي آله ده چې
کالی ورباندې ګنډل کېږي؛ ۲) وګ. پېچکاري
۳)پایه، متېه، ستون؛ ٤)بمبیرکه؛ ٤)نر.م. د
نمنځي، لرګي او نښتر د ونې پانه(پلک).

**ستناو** (stanáw) نـر.م. مانع، خنډ، خنډوونکی،
تالوونکی.

**ستناوه** (stanāwá) ښځ.م. د مشرتوب او شرافت
حق لرنه.

**ستنبه** (stanbá) ص. نـر.م. پـېـچکاري کـوونکی،
ستنه لګوونکی، رګوهونکی.

**ستن بوټی** (stanbúṭay) نر.م. یو ډول وابه ده

**ستنځی** (stanźáy) نر.م. ازځی، ازتون، توليفلی،
زندان، بندیخانه، جېل.

**ستن ستنکی** (stanstankáy) نـر.م. سـتنکی،
سل پانی، ببرکوکو، صد برګ ګل.

**ستنک** (stanák) نر.م. وګ. ستګ.

**ستنکی** (stankáy) ا. سنجاق، ستګ.

**ستنول** (stanawál) مص.مت ۱) ګرځول، راګرځول؛
۲)ایسارول، ځنډول، منع کول.

**ستن وهنه** (stanwahána) پېچکاري، خالکوبي،
تزریق.

**ستنه** (staná) ښځ.م. ۱)په شا تلنه، بېرته تلنه؛
۲) وګ. ستن.

**ستنېدل** (stanedál) مص.ل. ۱)بېرته راګرځېدل؛
۲)منع کېدل، ځنډېدل، معطلېدل.

**ستو** (satú) نر.م. ستوان، تلخان.

**ستو** (staw) نر.م. کوچنی سـوری، تنګه، تنوزه.

**ستو** (satáw) نر.م. یو ډول شيدې لرونکې خړ رنګې
ګیاه ده.

**ستوان** (satwán) نـر.م. تلخان، د وچو توتو تک
وهلي مېده ته تلخان یا ستوان وايي.

**ستوخ** (stux) ص. نر.م. وګ. ستغ.

**ستوخی** (stúxay) نـر.م. تـم، سـتمی، نفسک،
نکو، ستام

**ستودګی** (stuḍgáy) ښـځ.م. یو ډول مربع شکله
شپارس ځنډیز نقش دی چې د ټغرونو په اوبدلو
کې اجول کېږي.

**ستور** (stor) نر.م ۱) د کوترې هومره یوه توره مرغۍ
ده؛ ۲)غټ شاروي، ستر بوده ګان، لکه: اس.

ستوربهري (storbepáy) اِ. فضايي بهري، تشبال بهري.

ستورپكى (storpakáy) ښـغ.م. يو ډول نقش دى چې د كېوزر ته ورته دى.

ستورپوه (storpóh) ص. نر.م. ستوري پېژندونكى، ستور پېژاند، هينت پوه، منجم.

ستورپوهاند (storpohánd) اِ. وګ. ستورپوه.

ستورګى (storgáy) اِ. وروكى ستورى، ستوري ډوله (*) ليكنښه.

ستوروين (storwín) ص. ستوري ليـدونكى، نجومي، ستورپوه.

ستورى (stóray) نر.م(ج. ستوري) ستاره، ستيرى. هر اسماني جرم يا جسم لكه سياره شهاب ثاقب ،ذوات الاذناب، سپوږمى او نور .

ستورى (stūráy) ښغ.م. ګـوښى، مرخيړى، يو ډول غرنى پوښكى دى.

ستورين (storín) ص. د ستورى اړوند، ستوريز.

ستوريونى (storyū́nay) اِ. ستورمزلى، ستور ګرځى.

ستوغ (stug) ص. نر.م.ج. سخت، ستغ، ستيغ.

ستوغه (stū́ga) ص. ښغ.م. سخته، ستغه، زبنته، بده(خبره).

ستوكل (stokál) نر.م. بدنيته، ناغيړه (سـړى)، شرير و ناراسته.

ستوګه (stóga) ښغ.م. سكونت، استوګنه.

ستول (satawál) مص. مت. كمول، تيتول، سپكول، كښېنول، غلى كول، ارامول.

ستولى (satawólay) مف. نر.م. غلى كړى، كرار كړى، آرام كړى.

ستوماتيا (stomāntyā́) ښغ.م. ستړيا، ستړتيا، ستوماني(وګ. ستړيا).

ستومانول (stomānawə́l) مص. مت. ستړى كول، خسته كول.

ستومانه (stomā́na) ص. نـر.ښـغ.م. ستړى، خسته، زيله.

ستومانېدل (stomānedə́l) مص.ل. ستړى كېدل، زيله كېدل، خسته كېدل.

ستومى (stū́may) نـر.م. د ستني سپم، د ستني سوم، د ستنى سپمى.

ستون[1] (stūn) ص. نـر.م. (ج. ستانه) بېرته ګرځېدلى، معطل، ايسار، پاتې شوى.

ستون[2] (sutū́n) نر.م. ۱) برخه، حصه؛ ۲)پايه، ستن، متهه؛ ۳)د سـر تېرو دلـه چې دحركت په وخت كې پر يوه كربه روان وي.

ستونچه (stūnčá) ښغ.م. لستونكى، آستينچه، هغه لستونى چې د ږوږى د پخولو په وخت كې ئې په لاس كوي.

ستونغ (stūnǰ) ص. نـر.م. ج. ۱) كلك، جـګ، ۲)ګران، ورتيږ، د غره څوكه.

ستونغه (stū́nǰa) ښغ.م. ستونزه، معضله، كړاو، كړاک، تكليف، زحمت، ربړ، پرابلم.

ستونزاوارى (stonzawā́ray) ص. مشكل هواروونكى، ربړه هواروونكى.

ستونزمن (stonzmán) ص. ستومانوونكى، ربړوونكى، ګران.

ستونكى (satū́nkay) نر.م. اواروونكى.

ستون ليكنه (sotonlikána) اِ. كالم ليكنه، مقاله ليكنه.

ستونول (stunawə́l) مص. مت. معطلول، ستنول، راګرځول، بېرته راګرځول، ځنډول.

ستونه (stū́na) ښغ.م. رجوع، ګرځېده، ورستنېده.

ستونى (stū́nay) نر.م. حلق، مرى.

**ستونېدل** (stunedəl) مص. ل. ـــ مه گرځېدل، رجوع کول. ســـتېدل.

**ستونيز** (stūníz) ص. نر. م. ج. په ستوني پورې اړوند، د ستوني ـ ستونيز غږ.

**ستوني ستغ** (stunistáɣ) ق. ستوني ســـغ، ستوني ستاک، د شا پر تخته، شا پرڅمکه.

**ستوونکي** (stawūnkay) فا. نر. م. ارامـوونکی، علی کو. نکي. کموونکی.

**ستوه** (stáwa) ښځ. م. ۱) چاره، پېش کوزه، ستوه؛ ۲) نر. م. ستومانه، خپه، خوابدي، بې وسه، ناتوان.

**ستوهېدل** (stohedəl) مص. ل. خپه کېدل، زوېدل، کېدل، زهيرېدل، په عذابېدل.

**ستوي** (stawí) ښځ. م. اب مرواري، د سترګو پر راز ناروغي ده.

**سته** (sta) نر. ج. ۱) اشته، شتمني، دارايي، دولت؛ ۲) ف. شته، دي، د پوهشي د شته والي علي.

**ستهان** (sathān) ور. ستان، يو لاحقه ده چې د ځای، مملکت او هېواد مانا لري.

**سته تيک** (staṭík) نر. م. و گ. بنگلا پېژندنه.

**ستي** (sati) ص. نب. ۱) سوې، کباب شوی؛ ۲) تا. ساتي، سوتي، د هندوانو پر رسم و چې هندي مېرمني ځان هغه اور ته اچاوه چې د مېړه مړی به پې په کې سوځېده.

**ستی**[۱۱] (satáy) ښځ. م. ۱) و گ. ستي؛ ۲) بي بي، مېرمن؛ ۳) هغه ښځه چې حيل سر د پلار په کاله کې سپين کړي.

**ستی**[۱۱۱] (stay) ښځ. ج. شاتره، يو ډول بوټي دي چې د دارو ګانو ځينې اخلي.

**ستېدل** (satedəl) مص. ل. راضي کېدل، خوشاله کېدل، پخلا کېدل.

**ستېزه** (satezá) ښځ. م. ۱) لوړه سطحه، ۲) د غره جګه سطحه.

**ستپ** (satp) ص. نـر. م. ج. ۱) تباه، بـرباد؛ ۲) دېښمن، سندان؛ ۳) پخې مې؛ ٤) د لرګي هغه کونده چې سندان په کې ټينګيږي.

**ستار** (satār) نر. م. ستور، يو ډول تېل دي چې د نښتر يا جنغوزي د ونې له ريښې څخه ويستل کيږي.

**ستاله** (saṭāla) ښځ. م. ستل، تخمين، اټکل.

**ستپ سمټ** (satsamáṭ) نر. م. بېکاره، ناراسته، تمبل، لټ، تنبل.

**ستپ سودا** (saṭsawdā) ښځ. م. تخميني بيه.

**ستک** (saṭák) نر. م. سوټک، لوی چکوش.

**ستک** (sṭik) نر. م. و گ. ستيک.

**ستکوری** (saṭkūray) نـر. م. ۱) په تناره کې څځېدلي ډوډۍ، چکيده؛ ۲) د نباتاتو پاتې شونې بېخ؛ ۳) بنسټ، آر؛ ٤) کـور خرابي؛ ۵) مراوی، وچ شوی؛ ٦) سرکی، د اورسوکې.

**ستکی** (saṭgáy) نـر. م. ۱) کـوچنی سـوټک؛ ۲) نښه، د غلي په ځمېر د لوټو ور کوټي نښه.

**ستمبېخ** (sṭambéx) نـر. م. يو ډول نبات دی چې بېخ پې کچالو ته ورته دی.

**ستمتونی** (sṭamtūnay) نر. م. ستماتونی، لرګي ماتوونکی.

**ستوپ** (sṭop) نر. م. ۱) بخـاری، اوجاغ، اجـاق؛ ۲) اشتوپ، ايشتوپ، ايستوپ.

**ستوټ** (saṭwáṭ) ص. نر. م. تباه، برباد، پوپنا.

**ستوډيو** (sṭudiyó) ښځ. م. د راډيو او تلويزيون د پروګرامونو د توليد و استولو لپاره ديزاين شوي خونه.

**ستول** (saṭawə́l) مـص. مت. ورکـول، تباه کول، بربادول، له بېخه ويستل.

ستنه (sǝnǝ́) بنځ.م. بنسټ، اساس، بنیاد، بنسټ.

ستنه ترنګ (sǝtatarǝ́ng) ا. هغه ترکیب چې له یوه خپلوا ک ویې او یوې ستې رغېدلی وي.

ستنی (sǝtáy) بنځ.م. د چرګ شنی، د تېر شنه.

ستني پتي (sǝtǝ́pǝ́i) ص. نب. ۱) خامخا؛ ۲) ناحقه.

ستېدل (satedǝ́l) مص. ل. تپاوکېدل، برباد بدل، ورک کېدل.

ستېډیم (stediyám) نر.م. ستدیوم، ستودیم، ستودیوم، استدیوم، لوبغالی، د لوبو اجرا کولو ځای.

ستېریوټایپ (stenyotáyp) ص. نر.م. ۱) ط. کلیشه، د چاپ تخته؛ ۲) سو. متحدالماله، یکنواخته کړه وړه یا سلوک.

ستېریوفونیک (stenyofoník) ص. نر.م. ج. (بر.) د اواز د تولید یوه طریقه ده.

ستېشن (steśán) نر.م. ۱) تمځی، د دریدو ځای؛ (لکه د سرویسونو او ریلونو)؛ ۲) د راډیویي او تلویزیوني خپرو د ستولو او اخیستلو ځای.

ستیک (stik) نر.م. ۱) هغه لرګی چې ترې او اورد وي؛ ۲) د هاکي د لوبې لرګی.

ستېنډرډ (stendárd) ستندرډ، ستاندارد؛ ۱) معیار، مقیاس؛ ۲) پایه، بنسټ؛ ۳) بیلګه، نمونه.

سجاپ (sajáp) نر.م ۱) اوږده ریتاره ده چې د جامې څنډو ته یې ورګنډي؛ ۲) د رخچینې یا خولی هغه برخه چې پرکلکي پوري یې ورګنډي.

سجره (sajrá) بنځ.م. سرجه، د واوري کلکېدل.

سجع (sajsa) بنځ.م. مقفی کلام، قافیه لرونکې خبره، د نثر قافیه.

سجل (sijǝ́l) نر.م. ۱) اقرارلیک، د احکامو او عهدونو کتاب؛ ۲) پېژند پانه.

سجیه (sajiyá) بنځ.م. خوی، طبیعت، خُلق.

سچ (sac) ص. نر.م. ۱) خالص، نیره، نوره، سوچه؛ ۲) تول، ګرده سره.

سڅ (sac) ص. نر.م. ج. ګن، ګور، بیر.

سڅه (sacá) بنځ.م. سکره، د مزري بېخ، د مزري د بېخ غوټه، د مزري واک.

سحر (sihár) نر.م. جادو، افسون، کوډې.

سحرامېز (sihramēz) ق. له سحره ډک، جادو وله، له افسون سره مل.

سحرګاه (sahargāh) نر.ښځ.م. سهار مهال، سهار ګېیغ، ګهیځ.

سخ (sax) نر.م. ۱) بخت، طالع، خوبخي، نیکمرغي؛ ۲) بهانه ۳) اد. شاباس، د بر اعلی، د بر ښه.

سخا(۱) (saxā) بنځ.م. ۱) بخشش، خیر، ورکړه، سخاوت؛ ۲) خټیا، د ډېرو خفیف اواز.

سخا(۲) (sxā) ص. نب. خوسا، بوینا ک، ګنده او بدبویه، متعفن.

سخات(۱) (sxāt) نر.م. سکات، اسقاط.

سخات(۲) (saxāt) نر.م. فاتحه، دعا.

سخاته (sxāta) ص. ښځ.م. غته پیته پزه، شلمه پزه، پلنه پزه.

سخاریل (sxārél) نر.م. خرکري، روښ، پیبی.

سخاوت (saxāwát) نر.م. ۱) کرم لرنه، بخشش لرنه، څوانمردي، خیراتونه، خیرات.

سخاوره (sxāwrá) ښځ.م. خساوره، خساوزه، د بدغږ مانع دوا، د زنبق د ګل ریښه.

سخت (saxt) ص. نر.م. ج ۱) مضبوط، ټینګ، کلک؛ ۲) ګران، مشکل؛ ۳) مج. کنجوس.

سختاړ (saxtáṛ) نر.م. ۱) بته رویجي؛ ۲) یو ډول لښتي ده؛ ۳) هر نرم و اوبلن ګړ شیز.

سختاړول (saxtaṛawǝ́l) مص. مت. لښتي کول، اوبلنول، ګړ ګ ډېر و اوبلول، خوینول.

**سختاړېدل** (saxtaṛedə́l) مص.ل. لمبې کېدل، اوملمبه‌ل، حورمنهدل، گوگاوړېدل، سخاړېدل.

**سخت دريځی** (saxtdarʒ́ay) ص. د سخت (سياسي) دريځ او موقف خاوند، توند لاری.

**سخت دله** (saxtdíla) ص. نسب. سخت‌زړی، په زړه سخت، بې عاطفې.

**سخت سری** (saxtsáray) ص.نر.م. سخت‌سر، کلک، ټينګ، سخت.

**سخت سيپارو** (saxtsepārū́) نر.م. د ملاد درد يو ډول دارو.

**سخت گير** (saxtgír) ص. نر.م. ۱) جدي، دقيق، چخړېونکی؛ ۲) مشکل تراش.

**سخت مزاجه** (saxtmizā́jha) ص. نب. سخت طبيعته، عصباني، خوشکني، توند، تاوکی.

**سختوالی** (saxtwā́lay) نر.م. ۱) کلکوالی، ټينګوالی؛ ۲) مشکلتوب؛ ۳) ممسکي.

**سختول** (saxtawə́l) مص.مت. ۱) کلکول، ټينګول؛ ۲) مشکلول؛ ۳) تېزول.

**سخته** (sáxta) ښځ.م. ۱) محروميت، مظلوميت، کړاو؛ ۲) دبر، زبښته، زبښت، بې جوړي.

**سختيا** (saxtyā́) ښځ.م. ۱) تنگسه، خواري؛ ۲) سختي، ممسکي.

**سختېدل** (saxtedə́l) مص.ل. ۱) کلکېدل، ټينګېدل؛ ۲) مشکل کېدل؛ ۳) ممسک کېدل؛ ۴) تېزېدل.

**سخر** (sxar) نر.م. ۱) خسر، د مايني پلار، د مېړه پلار؛ ۲) ببر سر؛ ۳) تېره کاڼي، چوري، چير؛ ۴) انجرېسجر، ګډوډ، بېچل شوی شی.

**سخرگنی** (sxargánay) ښځ.. د خسر کورنۍ، خسرکي، خسرخېل.

**سخره** (sxára) ښځ.م. د ښکې کښولو پړی.

**سخره غوټه** (sxaragū́ṭa) ښځ.م. سخره‌گنډه، ګډوډه شوي غوټه، ړنده غوټه.

**سخری** (sxaráy) ص. نر.م. ټينګ، ثابت.

**سخره** (saxrá) ښځ.م. يو راز غرنی بوټی دی.

**سخره**[(۱)] (saxrá) ښځ.م. ۱) اومه نطفه، اومه جنين؛ ۲) د چاری رسی؛ ۳) مېله، چرچي.

**سخره**[(۲)] (sxára) ښځ.م. ۱) تر، د ويالې يا کاريز کېندلو عمله؛ ۲) سربونډې، ورلګينه.

**سخکوره** (saxkóra) ښځ.م. دوه سرې ترښخ.

**سخن** (saxán) ص. نر.م. طالعمن، نېکمرغه.

**سخواړ** (sxwāṛ) نر.م. پلنه‌پزه، پيته پزه، چيته پزه.

**سخوبی** (sxubáy) نر.م. دبلی، زيونه.

**سخوټ** (sxūṭ) نر.م. ۱) ګردې زخن لرګی؛ ۲) منډلی او ټيټ چاغ سړی.

**سخوټن** (sxuṭán) نر.م. توده ايره، پرندی سخوټن، سخوختن.

**سخور** (saxawā́r) نر.م. نېکمرغه، بختور.

**سخوريز** (sxuríz) نر.م. پښی ته ورته يو ډول بوټی دی.

**سخوريی** (sxwaryáy) نر.م. د سخوريز، د بوټی بيخ.

**سخوښتی** (sxwaṣ̌táy) نر.م. ۱) د خولې کنج؛ ۲) ماکو.

**سخول** (sxwal) نر.م. تلفظ.

**سخوندر** (sxwandár) نر.ښځ.م. سخندر سخوندره، شوان غوبی، شوان خوسکی.

**سخه** (sáxa) ښځ.م. کينه، رخه، حسد.

**سخهار** (saxahā́r) نر.ج. د مال د سېرمو اواز.

**سخی** (saxáy) نر.م. ۱) وګ. سپی؛ ۲) خوسی، خوسکی؛ ۳) د يوې لوبې نوم دی.

سخي (saxí) ص. نب. دسخا څښتن، ښندونکی، بخښونکی، لاس خلاصی.

سد (sad) نر.م. ۱) هوښ، عقل، شعور؛ ۲) دېوال، خنډ؛ ۳) د رخ مقابل، د توپک په میل کې تاو راتاو دېوال.

سدره (sádra) ښځ.م. قلنګ، شکرانه، جاري خیرات.

سخرۍ (saxráy) ښځ.م. واسکټ، تتری.

سدکاو (sadkáw) نر.م. اسهال، چرنتوب، حیضه. له نسه ایله کېدنه، سرن.

سدوبد (sadubád) نر.م. عقل وهوښ، عقل و فکر.

سدول (sadwál) نر.م. لنډ قدی سړی.

سدۍ (sadáy) ښځ.م. پېړی، قرن، د سلو کالو موده.

سدول (sadúl) نر.م. ۱) زور دنګر غوبی؛ ۲) مج. جاهل، تنبل و پنډ سړی.

سر[1] (sar) نر.م. ۱) ککرۍ، کوپړۍ، جمجمه؛ ۲) څوکه، قله؛ ۴) اساس، منشأ؛ ۵) مشر، د سرسړی؛ ۶) مخته، مخکې؛ ۷) شروع، پیل؛ ۸) سورجه، کلکه شوي واوره.

سر[2] (sir) نر.م. ۱) راز، پټه خبره؛ ۲) قلب، زړه؛ ۲) پټ، د علانیت ضد.

سر[3] (sur) نر.م. ۱) مو. سور سُرت، ټیپ، آهنګ، میلوډی، نغمه، ټون؛ ۲) مج. هوښ، شعور؛ ۳) مج. مهارت، استعداد؛ ٤) واک، اختیار.

سراب (saráb) نر.م ۱) سرورخي؛ ۲) و ګ. غلوبی[2]؛ ۲) ع. له نرۍ او د نرۍ له متاع څخه کنایه.

سراج[1] (saráj) نر.م. ځین جوړونکی او خرڅوونکی.

سراج[2] (siráj) نر.م. ۱) څراغ، ډېوه؛ ۲) لمر.

سراج الاخبار (sirājulaxbár) د یوې جریدې نوم و چې د امیر حبیب الله خان د سلطنت پر دور د محمود طرزي په لیکوالۍ چلېدله.

سراج الاطفال (sirājulatfál) نر.م. د یوې جریدې نوم و چې د امیر حبیب الله خان په زمانه کې د محمود بېګ طرزي په لیکوالۍ خپرېده.

سراجه (sarája) ښځ.م. هغه خنډ (زخه، غوټه) چې د تاک په څانګو باندې کېږي.

سراجي (sarājí) ښځ.م. د ځین جوړولو کسب.

سراچه (saráča) ښځ.م. ۱) ووړکی سرای، د کور دننه وره او څانته ابادي؛ ۲) هغه خونه چې د کور د دروازې یا ګاراج په سر جوړه شوې وي.

سرارو (sarāró) نر.م. شریان، د لاس غټ رګ.

سراسر (sarāsár) ق. ټول، له یوه سره تر بله پورې، سر تر پایه.

سراسوتي (saraswatí) ښځ.م. و ګ. سرسوتي.

سراښ (srāṣ) ص.نر.م. حریص، لالچي.

سراښند (srāṣánd) ص. نر.م. حریص، سراهند، نه مړېدونکی.

سراښول (srāṣawál) مص. مت. سراښ کول، ټینګول، تحریص و ترغیبول.

سراښېدل (srāṣedál) مص. ل. حریصېدل، ترغیبېدل.

سراغ (surā́g) نر.م. نښه، نخښه، د یو چا د ځای پوښتنه.

سرافراز (sarafrā́z) ص.نر.م. سرلوړی، مفتخر.

سرامني (srāmaní) ښځ.م. زوه، د زخم اوبه چې څه وینه هم ور سره وي.

سرانداز (sarandā́z) نر.م. ۱) اوږده قالینچه ده چې د توشکې په مخ اچوله کېږي؛ ۲) ص. نر. م. چټک، چالاک؛ ۳) بې پروا، بیباکه.

سرانه (saranā́) ښځ.م. ۱) هغه لرګی چې د دروازې په سر اچول کېږي؛ ۲) د سړی په سر پیسې ټولول.

**سراو** (saráw) ص. نر.م. په سرکې، لومړی، له تولو وړاندې لوبه کول.

**سراوره** (saraóra) ښځ.م. هغه خوليزه چې په اوومه ورځ يې په ناوې پسې وروړي.

**سراوږه** (sráwga) ښځ.م ١) گټه گوټه؛ ٢) د کوچنيانو يو ډول لوبه.

**سراى** (sráy) نر.م. ١) کور، انگړ؛ ٢) هغه ډېرې کوټې يا دوکانونه چې په يوه محوطه کې وي.

**سرايت** (sarāyát) نر.م. ١) اثر، اغېزه؛ ٢) د يوه شي له ترکو څخه د بل شي ټيټېدنه.

**سرابږد** (saréżd) نر.م. بالښت.

**سرايستلی** (sarstálay) ص. وتلی، پېژندلی، مخور، نوموړی، نومړی.

**سراپښی** (sarnéşay) نر.م. سروېږدی، بالښت.

**سرب** (srab) نر.ج. ١) سوربخن، سرمنه؛ ٢) و.گ. سرپ ٤)؛ ٣) چاره، علاج.

**سربادي** (sarbādí) ښځ.م. هغه لېونتوب چې په پېروز خورې څخه پيدا کېږي.

**سربادی** (sarbādáy) ص. نر.م. لېونی، چټی غېږدونکی، چټيات ويونکی.

**سرباز** (sarbáz) نر.م. عسکر، سرتېر، سرتېری، سربښندونکی.

**سربانده** (sarbānda) ښځ.م. ١) سپرغېږی، د پټي سرالال، غړی؛ ٢) هغه ورکوتی پټی چې د غټ پټي سرته پروت وي.

**سربانډی** (sarbānday) نر.م. سرباری، له عادي حالته پورته، سربندي، سرمنډيل، سرماتی، د دېوال ورووستی پخسه.

**سربانډه** (sarbānda) ښځ.م. بدريزه، سربانيزه، هغه ځرمنه چې په جغ پورې تړل کېږي او بيا د سپاري غشي ورباندې کلکېږي، سربانه.

**سربدال** (sarbadál) نر.م. سرگنگسه، گيچ، بېحاله.

**سربدل** (sarbadál) نر.م. جار، قربان، ولاړی، ځار.

**سربداگه** (sarbadága) ص. نب. ١) بې يږه، لچه، لنهغر، اپله گرده؛ ٢) بېحايه لگښت.

**سربر** (sarbár) نر.م. ١) څانگې پرېکول، ځاخ برې؛ ٢) ق. تول، برابر، يوشانته، پوره، سرپه‌سر.

**سربرا** (sarbará) ص. نر.م. ١) سم، برابر، منظم؛ ٢) د کار پای؛ ٣) نامې، د سر (سرې).

**سربل** (sarbál) ا. مخينه، سابقه.

**سربنا** (sarbna) ا. مخبنا، روبنا.

**سربند** (sarbánd) نر.م ١) د وېالې سربند؛ ٢) هغه نري پړي چې کوري، ترنگر او... ورباندې اوبدل کېږي؛ ٣) مېله، بانډه، اپلېند.

**سربندی** (sarbandáy) نر.م. سرمنډيل، سرماتي، د دېوال ورووستي مايله پخسه.

**سربندي** (sarbandí) ښځ.م. د جنگي لاس نيوی، نامزادي، کوژده.

**سربوني** (sarbūnay) نر.م. نولی، خربوری، سوربوني.

**سربه**[١] (sarbá) ص. ښځ.م. خربه، چاغه، غوړنه.

**سربه**[٢] (srabá) ښځ.م. ١) مردلره، لاش، مېږگه؛ ٢) سرېله، قصابي شوی؛ ٣) غوښنه.

**سربېرن** (sarberán) ق. پاخف. پورتني، پرسر.

**سربېره** (sarbéra) ق. مو... د پاسه، پورته، برعلاوه، زياتی.

**سربښت** (sarbést) نر.م. سرسينه، سربښتی، سربښتی.

**سربيه** (sarbáya) ښځ.م. د سر په قيمت، د سر بيه.

**سرپ**[١] (srap) نر.م. ١) سرب، سرپ، يو ډول فلز دی؛ ٢) يوه غرني ونه ده؛ ٣) په لومه کې د مرغې د وزر وهلو اواز.

سرپ[۲] (sarp) اد. صرف، فقط، گوبلي، محض.

سرپاړی (sarpāṛay) نر.م. سرپاغی، د سر و مخ د پدهو او پر سپخو برډول ناروغي ده.

سرپته (sarpáta) ص. ښځ.م. پاکره او سترمنه.

سرپتی (sarpáṭay) ص. سرپوبنلی، هغه چې سر یې پټ وي.

سرپرست (sarparást) نر.م ۱) مربي، روزونکی، پالونکی؛ ۲) اداره کوونکی، موقتي مشر.

سرپری (sarparáy) نر.م. د ساچ په څېر يو ډول مرغی ده چې وزرونه يې سره او نوره توره ده.

سرپرېکړی (sarprekáṛay) ص. نر.م. ۱) سر قربان کړی، توريالی، سرپری؛ ۲) کټ مټ.

سرپرېکول (sarprekawə́l) مص. مت. ۱) سر غوڅول، وژل؛ ۲) پ. ک. لوړه کول.

سرپرکمشر (sarparkməšár) نر.م. بريدګی، يوه عسکري رتبه ده.

سرپښتی (sarpaṣ̌táy) ښځ.م. سرسينه، نازکې تنکۍ پښتۍ.

سرپک (sarpák) نر.م. سرسرۍ، هسې، سطحي.

سرپناه (sarpanáh) ښځ.م. ۱) کور، خونه، منزل؛ ۲) کوډله، جونګړه.

سرپوټکه (sarpuṭáka) ښځ.م. سپېرکوټکه، کوچنی مرغی ده چې په سر بانديې پوپکه لري.

سرپوته (sarpūta) ښځ.م. و ګ. سرپته.

سرپوړی (sarpóṛay) ص. نر.م. و ګ. سرلوړی.

سرپوښ (sarpóṣ̌) نر.م. ۱) سرپوټی، برغولی؛ ۲) پوولس دزی ټوپک.

سرپوښلی (sarpoṣ̌álay) ص. نر.م. پوښلی، سرپټ شوی، پټ.

سرپول (sarpawə́l) مص.مت. مرغی پرول، مرغه د وزرو په رپولو راوستل.

سرپه څېړی (sarpaceṛáy) ق. سرپه چپری، سرپرځری، سرپه څنګه، سرپه څونګه.

سرپه سر (sarpasár) نر.م. ۱) پوره شان، برابر، مساوي؛ ۲) پرتله.

سرپېډل (srapedə́l) مص. ل. په لومه کې د مرغی د پښو په وخت کې د وزرونو وهل کېدل.

سرپين (surpín) ص. نر.م. ۱) سرپی، سرپی، د سرپو جوړ؛ ۲) سرپي ټوپک.

سرتا (sarta) ښځ.م. د پښو د پوزني شا وخوا ګنډل شوي وړ پښمينه ټوټه.

سرتاو (sartā́w) نر.م. سرغړونه، سرکښي.

سرتاوول (sartawawə́l) مص. مت. سرغړول، سرکښي کول، نافرماني کول.

سرترپايه (sartarpā́ya) ق. ترپايه، ټول، تمام، له اوله تر آخره.

سرترلی (sartarálay) سرپتی، سرپټ، سرپسته.

سرترونی (sartarū́nay) نر.م. سرتونی، سرپيچک، کله چک، هغه دسمال چې سرپرې ترې.

سرتمبه (sartamba) ص. نب. و ګ. سرتمبه.

سرترسره (sartarsára) ق. ټول، سراسر، بالکل، له سره تر اخيره، کلاً، کاملاً.

سرتناو (sartanā́w) نر.م. مراند، د مرزاتو د جال سرتناو.

سرتور (sartór) ص.نر.م.ج ۱) سرلوڅ، سرلوڅی؛ ۲) بې عزته، خوار، ذليل.

سرتورول (sartorawə́l) مص. مت ۱) سرلوڅول؛ ۲) بې عزته کول، خوارول، سرتورونه.

سرتوره (sartóra) ص. ښځ.م. ۱) تورسري، سر لوڅي (ښځه)؛ ۲) مج. کونډه.

سرتوري (sartorí) ښځ.م ۱) بې عزتي، سپکونه؛ ۲) کونډتوب.

**سرتوربډل** (sartorebdál) مص.ل. ۱) بې عزته کېدل؛ ۲) کونډېدل، بې مېړه کېدل.

**سرتوني** (sartúnay) نر.م.و.گ. سرتروني.

**سرتي** (sartáy) ص.نر.م. ترهور، سرگردان، وارختا.

**سرتېر** (sartér) ص. نر.م. ۱) زړور، جسور؛ ۲) فداکار، سرتېری جانباز؛ ۳) عسکر.

**سرتېره** (sartera) ص. نر.م. سرتېز، هغه څه چې سر يا څوکه يې تېره او تېزه وي.

**سرتمبگي** (sartambagí) ښځ.م. سرتمبگي، مخالفت، ضديت، سرزوري.

**سرتمبه** (sartambá) ص. نب. سرتمبه، ضدي، مخالف، پر يوې پرخپلې خبرې سخت ولاړ.

**سرتولنه** (sartolána) ا. ستره تولنه، ستره غونډه، سراسري کنفرانس.

**سرټيټوالی** (sartitwálay) نر.م. خجالت، شرمندگي، بدنامي، سرکښته والی.

**سرټيټی** (sartítay) ص.نر.م ۱) اطاعت کوونکی، عاجز؛ ۲) خجل، شرمنده، بدنام.

**سرج** (sarj) نر.م. ځين، زين، د آس زين.

**سرجماعه** (sarjamāʻá) نر.م. سرجماعت، د ټولگي مشر، د صنف کپتان.

**سرجنبښت** (sarjanəʂt) نر.م. د کار او عمل لار.

**سرجه** (sarjá) ښځ.م. سورجه، سرجره.

**سرجي** (sarjí) نر.م. ځين جوړوونکی او خرڅوونکی.

**سرچشمه** (sarčašmá) ښځ.م. ۱) سرچينه، چينه، منبع

**سرچومه** (sarčúma) ښځ.م. ساچمه.

**سرچېړی** (sarčóṛay) ص. نر.م. نسکور.

**سرچينه** (sarčiná) ښځ.م. سرچشمه، منبع.

**سرځوړ** (sarǰwáṛ) ص. نر.م. ج. ځوړی، سرښکته، سرځوړ.

**سرځوړی** (sarǰwáṛay) ص. نر.م. ۱) سرځوړ، شپوه، سرکښته؛ ۲) سرټيټی؛ ۳) عاجز، بې لزاره؛ ۴) خجل.

**سرځوړي** (sarǰwaṛí) ښځ.م. سرځوړی، سرټيټي، سرخمي، سرځوړي.

**سرځي** (sarǰáy) ق. مخکيني، وړاندينی (برخه).

**سرڅارمن** (sarcārmán) نر.م. د پوليس په تشکيل کې تر سمونيار راښکته رتبه ده چې د عسکري د جگتورن او ملکي ٦ رتبې سره برابره ده.

**سرڅارن** (sarcārán) ا. د پوليس افسر، د افغاني پوليس رتبه.

**سرڅپوني** (sarcapúnay) ا. زروکي، څکالکي، اوزني، د سر دسمال.

**سرڅړی** (sarcáṛay) نر.م. يو ډول بوټی دی چې ډنډر يې غټ او پاڼې يې نرۍ دي.

**سرڅوره** (sarcúra) ص.نب. ۱) سرڅور، سرڅوری ۲) د وزن په موضوع کې د دروند مانا لري.

**سرڅوړی** (sarcúṛay) نر.م ۱) سرښکته، سرځوړی؛ ۲) مج. خجل، شرمنده.

**سرڅپېره** (sarceṛa) ښځ.م. مخامخ، مستقيماً، نيغ په نيغ.

**سرڅپړی** (sarceṛáy) نر.م. سرځوړی، سرښکته.

**سرحد** (sarhád) نر.م. بريد، وېش، پوله، پېک، فاصل حد.

**سرحددار** (sarhaddár) ص.نر.م. بريد ساتونکی، د سرحدي چارو مؤظف، د سرحد ساتلو آمر.

**سرحدي** (sarhadí) ص. نب. په سرحد پورې اړوند، د سرحدي سيمې اوسېدونکی.

**سرخاب** (surxáb) نر.م. ۱) سريغ، سرخاوی، يو ډول هيلی ده؛ ۲) سرکي.

**سرخار** (sarxár) ص. نر.م. د اغزو بنديز (احاطه).

**سرخازه** (sarxāza) ابۍ. چاره، برلیک، د قلم شاخته.

**سرخان** (sarxān) نر.م. په وده او خبراتو کې د کارونو پوره مد وسست کوونکی.

**سرخانه** (sarxāna) ښځ.م سری. سرکول، د چلم سرخانه، د چلم توپی.

**سرخانی** (sarxānay) ښځ.م. د اوښانو طویله.

**سرخاوره** (sar xāwra) ښځ.م. د سر پر بنه خلو خاوره.

**سرخ باد** (surxbād) نر.م. سره مخه.

**سرخچه** (sarxča) ښځ.م. ج. ۱) یو ډول سره او تروه زردالو دي؛ ۲) یو ډول غنم.

**سرخرکه** (sarxaraka) ښځ.م. کله خورکه، یو ډول مرغی ده چې د کوچنیو مرغیو مازغه خوري.

**سرخروی** (surxrūy) ص.نر.م. مخ روښی، سرلوری، سرهسکی.

**سرخرینه** (sarxryana) ښځ.م. سرکلونه، سرخرونه.

**سرخس** (sarxas) نر.م. یو ډول بوټی دی.

**سرخط** (sarxat) نر.م ۱) سرلیک، عنوان، سرنامه؛ ۲) سرمشق.

**سرخک** (sarxak) نر.م. یو ډول بوټی دی.

**سرخکان** (surxakān) نر.م. و.گ. شری.

**سرخکه** (sarxaka) ښځ.م. یو ډول توره مرغی ده.

**سرخکی** (surxakay) نر.م یو ډول بوټی دی چې په ریښو یې شیان رنګوي.

**سرخنی** (sarxanay) نر.م ځرخنی، هغه غوچکه چې د کجیري په منځ کې د کورتو او غوړیو د اچولو لپاره وېسته کېږي.

**سرخوړلی** (sarxwaṛalay) ص. نر.م. تباه شوی، هلاک شوی، مړ شوی.

**سرخوروونکی** (sarxuṛawūnkay) فا.نر.م. ستړی کوونکی، خپه کوونکی، شله، سرتمبه.

**سرخوږی**[۱] (sarxwažay) ص. نر.م. مزاحم، تخلف، ړنګوونکی، جنجالي.

**سرخوږی**[۲] (sarxużay) نر.م. سرخوږېدنه، سردردي.

**سرخوش** (sarxoš) ص. نر.م. خوشال. مست.

**سرخول** (sarxwal) نر.م. د خولۍ سر. کله کی، د خولۍ توپی، تبکی.

**سرخوله** (sarxwāla) ښځ.م. د خولۍ پېښه، د خولۍ چنه، د خولۍ پراویز.

**سرخه** (surxa) ص. نب. ۱) سمند آس؛ ۲) ښکلی. سوریخن.

**سرخی** (surxay) ښځ.م. ۱) غاره، څنډه، ژۍ، حاشیه؛ ۲) تریشه، ریناره، لیناره.

**سرخېل** (sarxel) نر.م. میز. سرکرده، مشر.

**سردار** (sardār) ص. نر.م. ۱) مشر، سرکرده، رئیس؛ ۲) قوماندان، د پوځ مشر افسر.

**سردارو** (sardārū) نر.م. ج. و.گ. پاره، اولنو به دغه ماده د ښتراتو د ورک کولو لپاره په سرونو کې اچولو نو ځکه یې سر دارو بلله.

**سردانه** (sardāna) ښځ.م. د سر ورخ، هغه ورخ چې د وبالي په سر کې واقع وي.

**سردرختي** (sardraxti) ښځ.م. د ونو مېوه، د مېوه دارو ونو حاصل.

**سردره** (sardara) ښځ.م. د درې سر، د درې لوړه برخه.

**سردری** (sardaray) ښځ.م. د دروازې د چوکاټ پاسنۍ لرګی.

**سردسېر** (sardsér) ص. نر.م. سره سیمه، سوړ ځای.

**سردم** (sardám) نر.م. دجولا د تنستي خانګری آله (لرګی).

**شاپیانګه** (šāpyā́nga) ښځ. م. ښاپیانګه، شدوبی، بوشیدې لرونکې بوټی دی چې ژیړ ګل کوي.

**شاپیتی** (šāpī́ṭay) نر. م. غوابیژی، کارغه پسکی، کپسی، قپسی، حلزون.

**شاپېټی** (šāpeṭā́y) نر. م ۱) هدف، سیبی، سیمپ؛ ۲) پرشا باندې دورلو بار.

**شاپېری** (šāperáy) ښځ. م. ج. و ګ. ښاپېری.

**شاپینپیکو** (šāpinpikó) ښځ. م. د کرچنیانو یو ډول لوبه ده.

**شات** (šāt) جن. ګبینه، ګبین، انګبین.

**شاتر** (šātar) نر. م. شاطر: ۱) هیرک، هوښیار؛ ۲) چابک، چالاک؛ ۳) جلبي، خدمتګار.

**شاتره** (šātara) ښځ. م. شوتره، پاپره، شاهتره، یو ډول تریخ بوټی او ګیاه ده.

**شاتګ** (šātág) پرشا تګ، رجعت، عقب نشیني، قهترا، قهقرايي.

**شاتګپال** (šātagpā́l) شاتګواله، رجعت پسند.

**شاتګواله** (šātagwā́la) شاتګپاله، رجعت پسندي.

**شاتماغه** (šātamāǧā́,a) ص. ښځ. م. نخره بازه، نخره کوونکې، مکیز کوونکې، قنجی.

**شاتنی** (šātanáy) ص. ښځ. م. وروستنی، ترشا، ترشا؛ د ټولو ترشا.

**شاتوت** (šātū́t) نر. م. ج. شاه توت: یو راز توت دی رنګ یې تور یخون سور یا تک سور وي.

**شاتوري** (šātóray) ص. نر. م. ۱) بې عقله حیران؛ ۲) بې بستري کټ.

**شاته** (šā́t(a,a)) ق. ۱) ترشا، شټ ته، د شا لوري ته؛ ۲) مج. ماته، ماتې، شکست.

**شاته کول** (šātakawə́l) مص. مت ۱) په شا کول، شاته وهل؛ ۲) اهمیت نه ورکول؛ ۳) په مزل کې وروسته پرېښودل؛ ۵) اهېرول.

**شاته کېدل** (šātakedə́l) مص. ل. ۱) وروسته کېدل؛ ۲) دچا مرسته پرېښودل؛ ۳) پښېمانېدل.

**شاتیر** (šātír) نر. م. بش. شاتیره، غراسکی، ریشه، غټ تیر.

**شاټ** (šāṭ) نر. م. (سین.) د یوې صحنې ترکیب او کمپوزیشن.

**شاټپول** (šāṭpawə́l) مص. مت. ۱) شا بېسې ورکول؛ ۲) پارول، لمسول؛ ۳) مج. دعا ورته کول.

**شاټوغتوب** (šāṭuǧtób) نر. م. کمروپ والی، توغرالی، د ملا کمروپ والی، شاټوغرالی.

**شاټوغی** (šāṭū́ǧay) ص. نر. م. کمروپ، کروپ، وودای، دیډی، شاکرویی، شاټیغی.

**شاټیټي** (šāṭiṭ) ښځ. م. و ګ. شاټوغتوب.

**شاټینګول** (šāṭingawə́l) مص. مت. مرسته کول، ملاتړ کول، پره کول.

**شاټینګه** (šāṭínga) ښځ. م. شاټینګی، توسکی، ټینګه، تونګی، کودرک، سنګدان.

**شاټینګی** (šāṭíngay) ص. نر. م. مرستیال، مرستوال، کومکي، مددګار، ملاتړ.

**شاټینګي** (šāṭingi) ښځ. م. ملاتړنه، ملاتړ کول، مرسته، ټنګه.

**شاجور** (šājór) نر. م. ججوره، ججوري، جاغور، د تریک ججوره.

**شاځلمی** (šāʒalmáy) نر. م. و ګ. شازلمی.

**شاځه** (šā́ʒa) ښځ. م. شازه شیاځه: ۱) هغه پلنه تيږه چې د قبر سر او پښو ته یې دروي؛ ۲) هغه لسې تیږه چې د لحد د پټولو لپاره ایښودله کېږي.

**شاخ** (šāx) نر. م. و ګ. ښاخ.

**شاخص** (šāxís) ص. نر. م. ۱) راوتلې، برخه؛ ۲) هغه ستر ګې چې نه رپېږي ۵) هغه نښه چې عسکر د رسمي تېرېدنې یا تعلیم په وخت کې

هغې ته په وارسېدو سره د سلامۍ لپاره سر ګرځوي.

**شاخک** (šaxák) نر. م. ۱) وروکی ښکر: ۲) هغه ښکر چې په هغه سره وینه ایستل کېږي.

**شاخل** (šaxál) نر. ج. د حبوباتو له کورنۍ څخه دي چې د څاروو د خوراک لپاره کرل کېږي.

**شاخله** (šaxalá) ښځ. م. څانګه، ښرانګه، شاخچه.

**شاخېل** (šaxél) ص. نر. م. ۱) اربېزي، چاروکښ: ۲) شاه‌خېل. دواده په شپه د زوم دلوري خلک.

**شادو** (šadó) نر. م. وګ. بېزو.

**شادي** (šadí) نر. م. وګ. بېزو.

**شاډوله** (šaḍóla) ښځ. م. ۱) د کوچنیانو یو ډول لوبه ده: ۲) یو راز ګیا ده.

**شاډیندک** (šaḍindák) نر. م. زنګېده، تال خوړل، په تال کې زنګېده.

**شاذ** (šaz) ص. نر. م. ج. ناویاته، نادر، کمیاب: هغه څه چې لږ پیدا کېږي.

**شار** (šar) نر. م. د چارو یو ډول بوټی دی.

**شاربل** (šarbə́l) مص. مت. ۱) منبل، مېړل، له مستو څخه کوچ او تروي ایستل: ۲) مج. یوه خبره د بره سره پېچل، اوږدول او سپینول.

**شارتي** (šarṭí) ښځ. م. شاتي، شارتي: ۱) جرقه: هغه بخرکی چې دوو برېښنا لرونکو سیمانو له تماس څخه پیدا کېږي: ۲) مج. قهر، غوسه

**شارتېدل** (šarṭedə́l) مص. ل. شاتېدل، شارتېدل: ۱) د برق په سیمونو کې شارتي پیدا کېدل: ۲) مج. عصبي کېدل.

**شارحه** (šarihá) ښځ. م. وګ. سېږنی.

**شارژدافېر** (šaržd̄afér) نر. م. سیاسي چارواکی، ناظم الامور، د مختار وزیر نایب.

**شارع** (šarí) نر. م. ۱) د شرعي څښتن، لارښود: ۲) لاره، لویه لاره.

**شارګر** (šargár) نر. م. پ. ک. شاعر سندرغاړی، مجلسي، سندرپول، بدلزن، شاري ویونکی.

**شارو** (šarú) ښځ. م. وګ. ښارو.

**شاره دا** (šaradá) ښځ. م. ج. په اتمې میلادي پېړۍ کې د یو ډول رسم الخط نوم و.

**شاری** (šaráy) ښځ. ج. شعری، شوری، شاعری، مجلس: في البدیهه شعر ته شاري وايي.

**شارېزی** (šarézay) نر. م. داسې ډیوال چې له تول ښار څخه چاپېره تاو شوی وي.

**شاري ګر** (šarigár) نر. م. مجلسي، شاعر، هغه شاعر چې هم شعر وايي او هم سندري.

**شاړ** (šaṛ) ص. نر. م. ج. ۱) شړ، بې حاصله، نا آباد، شنډ، څمکه: ۲) مج. لټ، سست: ۳) بې ادبه، بې تعلیمه.

**شاړپاړ** (šaṛpáṛ) ص. نر. م. ج. ۱) شړپړ، شاړشپاړ، بې حاصله: ۲) مج. لټ: ۳) بې ډېه، بې ادبه: ۴) بې تعلیمه، بې کسبه.

**شاړتوب** (šaṛtób) نر. م. شړتوب، شړوالی، شنډتوب، شاړتیا، شاړوالی.

**شاړول** (šaṛawə́l) مص. مت. ۱) شړول، بې حاصله کول، شنډول: ۲) بې ادبه کول: ۳) لټول سستول ۴) بې تعلیمه کول، بې کسبه کول.

**شاړه** (šáṛa) ښځ. م. ۱) المېره، لموره، د بام د غاړې موره: ۲) د شاړ مؤنث.

**شاړی** (šáṛay) ص. نر. م. ۱) لټ، کاهل، مټ، تمبل: ۲) زردالو، وګ. شاړي.

**شاړي** (šaṛí) ښځ. ج. هغه زردالو چې بمبنه یې ترخه وي.

**شاړېدل** (šaṛedə́l) مص. ل. ۱) شنډېدل، شړېدل، له حاصله لوېدل: ۱) التېدل: ۳) بې ادبه کېدل: ۴) بې تعلیمه کېدل.

**شـاړي واړي** (šaṛewāṛe) ص. نب. ۱) ګډوډ، بې ترتیبه؛ ۲) الټ؛ ۳) بې ادبه، بې بنده.

**شازادګي** (šazādagáy) بېغ. م (ج. شازادګۍ) شازادي، شهزادګي، شهزادي، د پاچا لور.

**شازاده** (šazādá) نر. م. (ج. شازادګان) شهزاده، پاچازاده، د پاچا زوی.

**شازلمی** (šazalmáy) نر. م. مېړنی زلمی، ناوس، زوم، نږدګری.

**شازه** (šazá) ببغ. م. (ج. شازې) و ګ. شاڅه.

**شاستر** (šastár) نر. م. ۱) د حکمت علم؛ ۲) مو. د موسیقي اساسي کتابونه.

**شاطر** (šāt(i,a)r) نر. م. و ګ. شاتر.

**شاعر** (šāʔir) ص. نر. م. (ج. شاعران) ۱) لاتړول، چندی، شعر ویونکی، شعر جوړونکی؛ ۲) مج. سندرغاړی، سندربول.

**شاعرانه** (šāʔirāna) ق. دشعر، دشاعرۍ، په شعر پورې مربوط.

**شاعروزمه** (šāʔirwázma) ص. نر. م. شاعرډوله، شاعرنما، متشاعر.

**شاعري** (šāʔirí) ببغ. م ۱) شعر ویل، شعر جوړونه، د شعر ویلو فن یا هنر؛ ۲) مج. خیال پردازي.

**شاغوت** (šāğót) نر. م. ګوته، کون ګوتې، اته، ګوته ورکول.

**شاغوتول** (šāğotawə́l) مص. مت. شاغوت کول، ګوته ورکول، ګوتې کول، اته ورکول.

**شاغوتی** (šāğotáy) ببغ. م. یارمخیچی، یو ډول ساراني خړه کوچنۍ مرغۍ ده.

**شافع** (šāfiʔ) ص. نر. م. شفاعت کوونکی، سپارښت کوونکی، سفارش کوونکی.

**شاقول** (šāqúl) نر. م. شاول جهاول؛ یوه آله ده چې د دېوال سموالی او کږوالی په کې څرګندېږي.

**شاقه** (šāqá) ص. نب. ستونزمن سخت، ګران، درونډ.

**شاک** (šāk) نر. م. و ګ. شرک[۲].

**شاکاسه** (šākāsá) ببغ. م. لـوېـه مسي کاسه، د المونیم لویه کاسه.

**شاکر** (šākír) ص. نر. م. ۱) شکر کېونکی، شکر کوونکی؛ ۲) خوښ، رضا، راضي.

**شاکرک** (šākarák) نر. م. یو ډول خـړو نبات دی، دوه تېغونه لري.

**شاکروپ** (šākrúp) ص. نر. م. شاکرپی، شاکړپېه دودی، شاتوغی، شاکوپ، شاتیتی.

**شاکلا** (šākalá) ببغ. نر. م. ۱) ایرا، تېرېدنه، تېری، له حق العبد څخه تېرېدنه؛ ۲) توبه.

**شاکلنګه** (šakulánga) ببغ. م. کرکری، یو ډول ډېره غټه او پیاوړې زانه ده.

**شاکوکی** (šakokáy) ببغ. م. د کرچنیو نجونو یو ډول لوبه ده.

**شاکول** (šakawə́l) مص. ل. ۱) شا اړول، شاګرځول؛ ۲) توجه نه کول؛ ۳) مج. بې پروایي کول.

**شاکونډی** (šakunḍáy) ببغ. م. یو ډول غـرنی وروکی ناک دی.

**شاکي** (šākí) ص. نب. شکایت کوونکی، ګیله من.

**شاګرځ** (šagárǰ) امر عس. شـاګرس! په عسکرۍ کې یو قومانده ده.

**شاګرد** (šagárd) ص. نر. م. زده کـوونکی متعلم، طالب، محصل، هغه څوک چې د کوم فن، کار یا هنر د مهارت له څښتنه زده کړه کوي.

**شاګردانه** (šagardāná) ببغ. م. ۱) هغه پیسې چې رانیوونکی یې شاګرد ته د بخشش په توګه ورکوي؛ ۲) الیکی، چونګی.

**شاګردي** (šagardí) ببغ. م. زده کړه؛ د استاد تر لاس لاندې کار کول.

**شاګرځول** (šagarjawəl) مص. مت. شا اړول، په کار کې لټي کول، کار پرېښودل.

**شاګزی** (šagazáy) نر.م. د اوږدوالي د واحد يعني ګز له دريو ولونو څخه يو دول دی.

**شاګوری** (šagúray) نر.م. ۱) هغه تورکر چې د کميس شاته اچول کېږي؛ ۲) د خرو د کټې موره.

**شاګوم** (šagúm) نر.م. وګ. شګوم.

**شاګی** (šagáy) نر.م. د ښځينه کميس شاته له غاړې څخه ترملا پورې ټوټه.

**شاګی** (šagáy) ښځ. م. ۱) ځونډۍ، پرتې، ختې؛ ۲) د غره لمنه؛ ۳) يوه تخته ځمکه؛ ٤) هديره.

**شال** (šāl) نر.م. (ج. شالونه) د ښځو ورين پړونی، د ښځو نفيس ټيکری.

**شالکی** (šalakáy) نر.م. کوچنوتی شال، ورکوټی شال، د شال مصغر.

**شالګول** (šalagawə́l) مص. مت. ۱) اړاچول، په ښېړه کې ستونې ستغ څملول؛ ۲) مغلوبه کول؛ ۳) دمه کول، ودونګول.

**شالمی** (šalmáy) ښځ. م. ۱) هغه فلزي مرۍ چې ښځې يې د لستونو پرڅنډو باندې ګنډي؛ ۲) يو دول خامک، پوراز ګنډون.

**شالمی وتی** (šalmaywátay) نر.م. مشکنيو وتی، د تورکر يو دول ګردی ځونډی دی چې ګرد چاپېره يې مرۍ ګنډلي کېږي او ښځې يې د کميس په ټکر پورې ګنډي.

**شالنګ** (šaláng) نر.م. رټنه، شړنه، بېکاره کول، له کاره لېرې کول.

**شالنګول** (šalangawə́l) مص. مت. ۱) رټل، شړل، ګوښه کول؛ ۲) ټالول، ځنډول.

**شالنګېدل** (šalangedə́l) مص. ل. ۱) رټل کېدل، ګوښه کېدل؛ ۲) معطله کېدل، ځنډېدل.

**شالوری** (šalóray) نر.م. شاته، شا و خواته، د شا لورته.

**شالوګی** (šalogáy) ښځ. م. چرچره، يو دول ځنځېنه ده، يو راز چوڼکه ده.

**شالولکی** (šalolakáy) نر.م. هغه مېږي چې وزر يې کړي وي.

**شاليد** (šalíd) نر.م. شا ځمکه، پس منظر، زمينه.

**شاليزاره** (šalizára) ښځ. م. شولګره، هغه ځمکه چې شولې په کې کرل کېږي.

**شامت** (šamát) نر.م. ۱) بخت، طالع؛ ۲) برخه، نصيب؛ ۳) نحوست، سپېره والی.

**شامتوره** (šamatóra) ښځ.م. شاهکه، يو دول توره مرغۍ ده.

**شامخه** (šamáxa) ښځ.م. وګ. شموخه

**شامدام** (šamudám) ق. تل، همېشه، هر وخت.

**شام کليان** (šamkalyán) نر.م. مېو. يو راز اګ دی.

**شامکی** (šamakáy) ښځ. م. يو دول مرغۍ ده چې په اوبو کې ډېره پيدا کېږي.

**شامل** (šamíl) ص.نر.م. ج. ۱) داخل، ګډ، شريک ۲) په کې؛ ۳) څېرېدونکی، محيط.

**شاملول** (šamulawə́l) مص. مت. داخلول، ګډول، شريکول، يو ځای کول..

**شاملی** (šamláy) ښځ.م. د يوې ځرنې ګياه نوم دی.

**شاملېدل** (šamuledə́l) مص. ل. داخلېدل، شريکېدل، ګډېدل، يو ځای کېدل.

**شامن** (šamán) نر.م. (تا) شمن، د آسيا د شمال او اروپا د اورولنو کاهن يا کشيش يا جادوګر، د ډېرې د لرغونې دورې د عصر مذهبي ښوونکي چې دم او ورانديني به يې کولې.

**شامنیزم** (šamanízəm) انر.م. د شامني عقايدو پيرو.

**شامه** (šāmá) ښځ. م. د شامې حس، د ويوم حس، د انسان له (۲۲) حسونو څخه يو حس.

**شامي** (šāmí) ښځ. م. ماښامنى؛ ۲) نر.م. ورژلى، د ټکېدلو غوښو يو دول کباب دى.

**شامی** (šumáy) ښځ. م. ج. ۱) سرپستون، قبر؛ ۲) يو ځاىي يا ډله ييز قبر.

**شان** (šān) نر.م. ۱) پرتم، دبدبه؛ ۲) قدر، مرتبه؛ ۳) د خوشخطى وروستى پړاو؛ ۴) اد. څېر، دول، غوندي، رازّ.

**شانتاژ** (šāntáž) نر.م. ۱) چل، چم، خطا ايستنه؛ ۲) حق السکوت (بليک ميل).

**شانته** (šánta) ښځ. م. ۱) د لويو بند، د اوبو تړ؛ ۲) ډکه، شنډى، شانډى.

**شانداره** (šāndára) ص.نب. پرتمين، پرتم لرونکى، عظمت لرونکى، د شان-شوکت څښتن.

**شانډوله** (šānḍóla) ښځ.م ۱) څوڅه د خرواو اسانو د پښو يو راز ناروغتيا ده؛ ۲) اوروونکى، د کرچنيانو يو دول لوبه ده.

**شانډى** (šānḍáy) ښځ. م. ۱) شانتي؛ ۲) ډکه، بندى، شنډى.

**شانکو** (šānkór) ص. نر.م. يوه ساري ناروغي ده چې د مقاربت له لارې خپرېږي.

**شانګوړى** (šāngúṛay) انر.م. محدب، وتلى ځاى، پوک.

**شانګه** (šā́nga) ښځ. م. درې ښاخى، درې ښاخه لرونکى، ښاخى شانګى، ښاخى سکو.

**شانوشانوتيک** (šānušānwtík) ند. د ملګانو د خوشالى کليمې دي.

**شانه وانه** (šānuwānā́) ص. نب. په نخرو تګ، شانه ورانه، مکېزناکه خرامان.

**شاني** (šānē) ق. وګ. شانته.

**شانى** (šānáy) نر.م. يو دول نبات دى.

**شاوخوا** (šawūxwā́) ق. خوا وشا چاپېره، ګرداګرد څلورخواوې.

**شاور** (šawár) نر.م. ۱) دروش؛ ۲) الحبهنه، لمبنه؛ ۳) شيندنه، اوروونه؛ ٤) اوريا؛ ۵) څپه.

**شاوړى** (šawaṛáy) ص. نر.م. نيزه وړى، تترنى، سېلاب راوړى، نيز راوړى.

**شاول** (šawál) نر.م. ۱) وګ. شاقول؛ ۲) وګ. جرثقيل؛ ۳) ېلچه، چارې.

**شاولې واولې** (šāwlewā́wle) ص. نب. ۱) هک پک، حيران؛ ۲) شارې وارې، ګډود؛ ۳) ستړى ستومانه؛ ٤) متأثر.

**شاه** (šāh) انر.م. (ج.شاهان) ۱) پاچا، باچا، پاسوال، تولواک؛ ۲) ښاوى، د واده په شپه زوم.

**شاهانه** (šāhānā́) ق. شاهي، د شاه، د شاه په دول.

**شاه بالا** (šāhbālā́) نر.م. هغه کوچنى چې له زوم سره د واده په ورځ د ناوې د پلار کره ورځي.

**شاهد** (šāhíd) ص. نر.م. (ج.شاهدان) ليدونکى، مشاهده کوونکى، ګواه، حاضر.

**شاهدي** (šāhidí) ښځ. م. وګ. شهادت.

**شاهراه** (šāhrā́h) ښځ. م. لويه لاره، عمومي، ستره او اوږده جاده چې مهم ځايونه سره نښلوي.

**شاهرګ** (šāhrág) نر.م. وګ. ښارګ.

**شاهرود** (šāhrúd) نر. م. وګ. زيتر.

**شاهزاده** (šāhzādá) نر.م. وګ. شازاده.

**شاهزى** (šāhzáy) ص. نر.م. شهزاده، شهزادګى.

**شاهزۍ** (šāhzə́y) ښځ.م. پاسوالزى، شهزادګى، شهزادى، شاهدخت.

**شاهکار** (šāhkā́r) نر.م. شهکار، پخه چاره، پوخ کار، څرګنده او ستره چاره.

**شاهکور** (šahkór) نر.م. ارگ، شاهي ماڼۍ.

**شاهنامه** (šahnāmá) ښځ. م. هغه منثور يا منظوم کتاب چې د تاريخ د شرحې او ملي داستانو په لړه ليکل شوی وي.

**شاهنشاه** (šahinšáh) ص. نسر.م. امپراتور، د پاچاهانو پاچا، د شاهانو شاه، ستر تولواک.

**شاهي** (šāhí) ص. نب. ۱) د شاه، پاچا ته منسوب، د پاچا لروند؛ ۲) پاچايي، تولواکي؛ ۳) ښځ. م. شاهي، پنځه پوله.

**شاهي کوټ** (šāhikóṭ) ص. نسر.م. شاهي کلا، شاهي حصار.

**شاهين** (šāhín) نر.م. ۱) ښين، وتلې لرګی، وتلې دتيه، د ترازو هغه اوږد لرګی چې دواړه پلې ترې راځوړندې وي؛ ۲) نر.م. و ګ. شند.

**شاهي نظام** (šāhinizám) ص. نسر.م. تولواکي نظام، پاچاهي رژيم، سلطنتي حکومت.

**شايد** (šāyád) اد. ښايي، ګوندې، کېدای شي، احتمالاً، ممکنه ده.

**شايع** (šāyíʔ) ص. نب. (ج. شايعات) ۱) خپور، نشر، فاش؛ ۲) ښکاره، څرګند، جوت.

**شايق** (šāyíq) ص.نسر.م.ج. هيله من، مشتاق، مايل.

**شايي بايي** (šāyibāyí) ښځ. م. ج. مزې چړچې، عيش و نوش.

**شباب** (šabā́b) نر.م.ځواني، زلميتوب، ژنې توب.

**شباهت** (šabāhát) نر.م. ورته والی، يوځېر والی.

**شبت** (šibí) نر.م. ج. و ګ. سوره.

**شبتله** (šobtálu) ښځ. م. و ګ. شوتل.

**شبخون** (šabxū́n) نر.م. و ګ. شوخون.

**شبري** (šabaráy) ص. نر.م. شوکور، شپېغلی، شپلتدر، شبکور.

**شبشي** (šabašé) ښځ. ج. يو ډول خړ رنګی نبات دی چې ښاروې يې خوري.

**شبکه** (šabaká) ښځ. م. ۱) يو سيستم، مجموعه، جونګ، پروژه؛ ۲) سوري سوري شی؛ ۳) ډله، څانګه، شعبه؛ ٤) مج. پټه ډلګی.

**شبکيه** (šabakiya) ښځ. م. ريټينا، د سترګې عصبي طبقه.

**شبګير** (šabgír) نر.م. و ګ. شوګير.

**شبنامه** (šabnāmá) ښځ. م. (ج.شبنامې) و ګ. شپه پاڼه.

**شبنم** (šabnám) جن. پرخه، څڼی، شولنګ.

**شبو** (šabó) ښځ. . و ګ. شبی.

**شبور** (šabū́r) نر.م. و ګ. شکور.

**شبه** (šabá) ښځ. م. ۱) يو ډول کيڅه (غير اصلي) مرغلره ده؛ ۲) ورته والی، په څېر، غوندې.

**شبه جرم** (šibajúrm) نر.م. له سرغړونې را منځ ته شوی عمل، چې کوونکی د هغه ضامن ګڼل کيږي.

**شبه جزيره** (šibajazira) ښځ.م.و ګ. ټاپو وزمه.

**شبه عمد** (šibaʔámd) نر.م. (فق.) قصد ته ورته، که د جرم فاعل د اجرا ور کومې نتيجې قصد وکړي خو د جزا ور کومه بله نتيجه منځ ته راشي.

**شبه واول** (šibawāwál) نر.م (ګر.) نيمواک، نيم مصوت، نيم واول، سيمي واول هغه کانسونټ چې د غير سېلابي واول په توګه ادا کړی شي.

**شبهه** (šubhá) ښځ. م. شبهه، شک، ګومان؛ د کومې چارې نيهام والی.

**شبهه ناک** (šubhanā́k) ص. نسر.م. ج. د شک وړ، مشکوک، د ګومان لاندې، د اشتباه وړ.

**شبي** (šabáy) ښځ. م. ۱) د تبې دوړی؛ ۲) شبو، شوبی، د شبو ګل.

**شبی** (šabáy) نر.م. یو ډول وابښه یا گیاه ده.

**شبیت** (šabít) نر.م. و.گ. سوره.

**شبیه** (šabíh) ص. نب. ورته، غوندې، مشابه، په شان، په ډول، نظیر.

**شپ** (šap) نر.م. ۱) اکور، مینه؛ ۲) بام، چت، بلې؛ ۳) ص. نر.م. ژور، عمیق؛ ٤) گرشپ، گرشوپ؛ ۵) نر.م. یو مهمل شکل دی، د (گپ) له کلیمې سره د «گپ شپ» په توگه راځي.

**شپانه** (špāná) نر.م.ج. ۱) د شپون جمع؛ ۲) د شپون مغیره حالت.

**شپانه بنی** (špānábanáy) ښځ.م. یو ډول غوزه ده چې نورو بوټو پورې نښتې وي.

**شپانه پنډی** (špānápandáy) نر.م. د مرخېړي په شېر یو نبات دی.

**شپانه پونډی** (špānápundáy) ښځ.م. یو ډول بوټی دی چې د دورمې په شېر پندونه لري.

**شپانه غوډ** (špānağód) نر.م. و.گ. شپنغوډ.

**شپره** (špará) ښځ.م. ۱) د لرگي د تورلو لپاره د نجارۍ یو ډول آله ده؛ ۲) یو ډول پاسته وابښه دې.

**شپږ** (špaẓ) ص. نر.م. ۱) شپږگوتی؛ ۲) اشاره، شږ، شنډ.

**شپږ بولې** (špaẓbolé) ص. نر.م. شپږ پیښو، شپږ پښو والا.

**شپږ تړ** (špaẓtáṛ) نر.م. د نرد لوبه.

**شپږ خنډی** (špaẓcə́nḍay) ص. نر.م. شپږ لرخیز، شپږ مخی، مسدس، شپږ ضلعي.

**شپږ ډزی** (špaẓḍázay) نر.م. هغه تومپک چې جبوړه یې شپږ کارتوسه اخلي.

**شپږ ډزې** (špaẓḍaze) ښځ.م. ارتیې تمانچه، سرداري تمانچه.

**شپږگوتی** (špaẓgótay) ص. نر.م. شپږ، شرک چې شپږ گوتې لري.

**شپږگوتی** (špaẓgwə́tay) ص. نر.م. شپږ خنډیز، شپږ گونجو واله، شپږ ضلعي.

**شپږمخیز** (špaẓmaxíz) ص. نر.م. شپږ لرخیز، شپږ گونجي.

**شپږن** (špaẓə́n) ص. نر.م.ج. سپږن، شپږک، هغه څوک چې ډېرې سپږې ولري.

**شپږه** (špaẓa) ښځ.م. (ج. شپږې) و.گ. سپږه.

**شپږی** (špaẓáy) ښځ.م. سپږی، سپږکی، یو خزنده چې د غنمو په دانو کې پیدا کیږي.

**شپږیز** (špaẓíz) ص. نر.م. شپږ بیتیز، مسدس.

**شپشتی** (špáštay) نر.م. د یوې لوبې نوم دی.

**شپنغوډ** (španğód) نر.م. شپنغوډه، شپانه غوډ، یو مرغی ده چې د شپې شپیلکی وهي.

**شپنکی** (špankáy) نر.م. ۱) شپونکی، شپون؛ ۲) د شپون مصغر.

**شپنه** (španá) ښځ.م. ۱) شپونه؛ ۲) د شپون مغیر او مؤنث شکل؛ ۳) یو ډول خوږ وابښه دی.

**شپني** (španí) ښځ.م. شپنتوب، شپون توب، رمه پوونه، د وزو او میږو څرونه.

**شپنی** (španáy) ص. نر.م. شپنی، بېگانی، پانه شونی، روگنی.

**شپو** (šapó) ښځ.م. شاپو، هیټ خولۍ، کارډیتالی خولۍ، یو ډول اروپایي خولۍ ده.

**شپوږک** (špuẓák) نر.م.ج. و.گ. شپږن.

**شپول** (špol) نر.م. ۱) کړۍ، حلقه، دایره، هاله؛ ۲) پند غالی، پاغیل، د شاروی لپاره د لښتو احاطه؛ ۳) مال بند، اره، ویره، د ازغیو احاطه.

**شپولغالی** (špolğálay) نر.م. گاچ، شپول، پند غالی، د شارویو لپاره د لښتو احاطه.

شپون (špūn) نر.م (ج.شپانه) شپنکی، شپونکی.
شپونتوب (špūntób) نر.م. شپني، د وزو، پسونو او میږو د پرولو دنده.
شپونکی (špūnkáy) ص.نر.م ۱) شپنکی، شپون؛ ۲) د شپون مصغر.
شپوناکه (špūṇáka) ښځ.م. د کالیو یا توکرانو شوړیدلی یا خوړین ځای.
شپه (špa) نر.م ۱) وګ. شپون؛ ۲) ښځ.م. د ورځې مقابل، له ماښامه ترسبا راختو پورې وخت.
شپه پاڼه (špapā́ṇa) ښځ.م. شپنامه، هغه پاڼې چې په پټه د شپې خپرېږي.
شپه تېری (špatéray) فا. نر.م. شپه تېروونکی، هغه څوک چې د نورو په کورونو کې شپه تېرول غنیمت ګڼي.
شپه روڼی (šparúṇay) ص.نر.م. ۱) شپه لټوونی، شوګیر کوونکی؛ ۲) عابد، پرهېزګار.
شپه کار (špakā́r) نر.م. شپه کاری، د شپې کارکوونکی.
شپه کاري (špakārí) ص. نر.م. شپني کار، د شپې کار.
شپه ګرځی (špagárźay) نر.م. شپه یونی، د شپې ګرځېدونکی.
شپه ګرځېدنه (špagarźedə́na) ص. نر.م. د شپې تګ، د شپې ګرځېدنه.
شپیانه (špyā́na) ښځ.م. خجالت، شرم.
شپیانګه (špyā́nga) ښځ.م. شاپیانګه، ښپیانګه، یو ډول بوټی دی چې خړ رنګي داني لري.
شپې پاڼه (špepā́ṇa) ښځ.م. شپه لیک، شبنامه.
شپې پوهنځی (špepohanźáy) د شپې پوهنځی، د شپې فاکولته.
شپېتری (špetə́ray) نر.م. وګ. شپېشتلکه.

شپېته (špetá) ښځ.م. (ج.شپېتې) شپېتې، شپېته، سپېته، د لرګي پاڼه.
شپې تېر (špetér) نر.م. د شپې تېرولو ځای.
شپېرکی (šperkáy) نر.م. وګ. شپېلک.
شپېړنه (šperə́na) ښځ.م. خړنه، جټله او بېکاره.
شپېزر (špezár) نر.م. ۱) د شپې وروستنۍ شومه؛ ۲) د شپې د وروستنۍ برخې درمې پوولو وار.
شپېشتری (špeštáray) نر.م آخنک، شپېشتې، یو ډول سابه دي.
شپېشتلکه (špeštaláka) ښځ.م. شپیشتری، شپیشتکه، خودرویه شپېشتې (رشقه).
شپیشتي (špiští) نر.ج. رشکه، رشقه.
شپېشتې (špeštáy) ښځ.ج. د ځرخ یره او دندانه.
شپې ښوونځی (špešowanźáy) مخصوص مکتب، شپې لیسه.
شپېلغی (špelǧáy) ص. نر.م. ۱) وګ. شپېری؛ ۲) نر.م. دیره ساراني مرغه نوم دی.
شپېلک (špelák) نر.م. شپېلکی، شپېرکی، شپېلی، شپېلان، شپرلاک، چرچری.
شپېلکه (špeláka) ښځ.م. وګ. ترلکه.
شپېلکی (špelkáy) ښځ.م.ج. یو وړه اله ده چې په اواز کې د خولې شپېلۍ ته ښخي ورته ده.
شپېلل (špelə́l) مص.مت. شپېلول؛ ۱) په خوله غاړولو او ګوتو سره راښپلول او خوړل؛ ۲) د ساکښلو په مرسته د خولو شي راکښل او خوړل؛ ۳) مص. ل. شپېلک وهل.
شپېلندر (špelandár) ص. نر.م. ۱) وګ. شوګور؛ ۲) شپېلندر، شپولندر، شپېلي وهونکی.
شپېلندو (špelandó) ص. نر.م. شپېلي وهونکی، شپېلي غږوونکی، شپېلک کوونکی.

**شپېلول** (špelawúl) مص. مت. ۱) و گ. شپېلل؛ ۲) مج. د يو چا مال او شته خوړل.

**شپېلۍ** (špeláy) نر.م. ۱) شپېلک؛ ۲) شپېلک وهنه، شپېلکی کول.

**شپېلۍ** (špeláy) ښځ.م. ۱) د غوږ دننه سوری؛ ۲) تولکه، توله، نی، فلوټ، د موسيقۍ يو چوکېدونکي آله؛ ۳) د ټوپک ميل.

**شپېلۍ مار** (špeləymár) ص. نر.م. شپېلۍ وهونکی، شپېلندر، توله وهونکی.

**شپېني** (špenáy) ص. نر.م. و گ. شپنی.

**شټ** (šaṭ) نر.م. ۱) سوچ، سيچکی شتکی، شوت، دګوتي په اشارې سره پر او ور معلومونه؛ ۲) ق. شرت، په تېزۍ سره، په تلوار سره تلنه.

**شتا** (šatá) ص. نب. شتاه، شتي، لچر، لچې، شرير.

**شتاب** (šitáb) نر.م. بيړه، تلوار، تېزي، چلتي.

**شتاتوب** (šatatób) نر.م. شتاوالی، شتايي، شريروالی، شريرتيا، لچرتوب، بې حيايي.

**شتام** (štām) نر.م. ټاپه، مُهر.

**شتامبی** (štambáy) ښځ.م. ژغورګی، بغری، وره بغری، آغوز.

**شتاوه** (šatáwa) ص. ښځ.م. شتاهه، شتايه، کاسيره، کنچنی، فاحشه.

**شترکه** (šuturáka) ښځ.م. خوړناکه، شترکي، خوټخوتی چينه.

**شترمار** (šuturmár) نر.م. يو ډول غټ مار دی.

**شترمرغ** (šuturmúrğ) نر.م. ډينګ، اوښ مرغی، اوښ مرغه، يو غټ مرغه دی.

**شتري** (šuturí) ص. نب. ۱) اوښين، د اوښ له وريو جوړ شوی؛ ۲) د اوښ د وريو په شير رنګ.

**شتک شتک** (štakšták) ص. نر.م. دريب، ډير ډير، غوبې ته په غړا باندې د خبرو لوغږ.

**شتکه** (štáka) ښځ.م. هغه لښته چې کوچنيان پرې ګاټي ولي.

**شتکی** (šátkay) نر.م. سيچکی شت سيچ، شرت، شيچ، سوچ، پروېشتنه.

**شتلې** (šatə́le) ښځ.ج. لتې، لغتکې، شتلکې، پرتکې، شتلکې، پرکهنه.

**شتمن** (štamán) ص. نر.م. ج. و گ. پانګه وال.

**شتمني** (štamaní) ښځ.م. ۱) شته متوب، بدايي، ۲) سرمايه داري، شته، دولت، مال.

**شتومی** (štúmay) نر.م. ۱) شتومبی، مولی، چومبی؛ ۲) د اونګ لاستی.

**شته**[1] (šta) نر.ج. ۱) پانګه، دارايي، هستي، جايداد؛ ۲) ف. سته، دی، دي.

**شته**[2] (šatá) ښځ.م. و گ. سووه.

**شته کړنه** (štakṛána) ښځ.م. پنځول، پيدا کول، شته کول، خلقول، تخليق.

**شته والی** (štawálay) نر.م. موجودوالی، سته والی، موجوديت.

**شتی**[1] (šatáy) ښځ.م. ۱) پيين، يوه سپينه مرغۍ ده؛ ۲) و گ. شتا.

**شتی**[2] (štay) ښځ.م. ۱) پرپری، شپتی، توکه، غوټی؛ ۲) د چونګبو کور؛ ۳) په ځمکه کې کوچنی کيندل شوی ځای.

**شتی**[3] (šitáy) ښځ.م. ۱) شپتی، توبری، د جوارو د وريو هغه برخه چې دانې پرې تښتې وي، غبشی، غشی، تير؛ ۲) تبلی، شپتی، لبشه.

**شتېمی** (štemáy) ښځ.م. ۱) شتامبی، بغری؛ ۲) مولی، د پښو پايکو د لرګي په سر کې غونډه منډه تيره، پايکو کاني.

**شتېر** (šatér) نر.م. (عک.) د ورلنګو کړکی، د رنا درځه، په خونه کې يوه ځانګړې کړکۍ ده.

شټل (šuṭál) ص. نر. م. ج. و ګ. شهل.

شټوپ (šṭop) نر. م. و ګ. ستوپ.

شټه (šuṭa) ښځ. م. سېټه، سوټکه، د جوارو غوټه چې پوستکي ولري.

شټېدل (šaṭedál) مص. ل. ارغوچکې وهل، شټلکې وهل، لغتکې وهل، پرقېدل.

شجاع (šujā́) ص. نر. م. ج. زړن، زړور، دلاور، د زړه خاوند، شجیع.

شجاعت (šujāʿát) نر. م. زړورتیا، زړورتوب، دلاوري، له اخلاقي ښېګڼو څخه یوه ده.

شجره (šajará) ښځ. م. سجره، نسب، نسب نامه، د نسب سلسله، شجرة النسب.

شجري (لیک) (šajari(lík)) نر. م. (خ.) یو راز ښکلاییز (تزییني) رسم الخط دی چې ثلث لیک یا محقق لیک ته شکل ورکوي.

شڅرلی (šacárlay) نر. م. و ګ. تربښځ.

شڅړلی (šcáṛalay) نر. م. شولی، اسکنه، د ترکانۍ یوه آله ده.

شحم (šáham) نر. م. ج. (ج. شحمیات) وازده، وازګه؛ شحم له حیواناتو او نباتاتو څخه لاس ته راغلي غوړه ماده ده.

شحمي (šahmí) ص. نب. / نر. ښځ. م. ج. د شحم، وازګین، د غوړو، د تېلو.

شخ (šax) ص. نر. م. ج. ۱) کلک، سخت؛ ۲) ځیږ؛ ۳) لک، دربېلی، نېغ.

شختولی (šaxtólay) نر. م. یو ډول ورېښمینه جالی ده چې د واده په وخت کې یې د ناوې په پتوکي دننه اچوي.

شخړ (šxaṛ) نر. م. د الوتونکو لوی سیل.

شخړه[1] (šxáṛa) ښځ. م. ۱) لانجه، جنګ، جنجال؛ ۲) یرغل، برید؛ ۳) پنګه، دچارې تناب.

شخړه[2] (šxáṛa) ښځ. م. خوساوی، بدبوی، ناولی بوی، بدبویي، د مردار شي بوی.

شخړه ییز (šxaṛáyíz) شخړن، ناندریز، متنازع فیه، لانجن.

شخص (šaxs) نر. م. (ج. اشخاص) سړی، فرد، یو کس، تن، د انسان بدن.

شخصاً (šáxsan) ق. په خپله، همځانه شخص، یوازې شخص.

شخص پرستي (šaxsparastí) ښځ. م. شخصیت پالنه، د یوه کس احترام ساتنه.

شخصي (šaxsí) ص. نب. ځپل، د ځان، ځانته، ځانګړی، خصوصي، د یوه کس.

شخصیت (šaxsiyát) نر. م. سړیتوب، شرف، د یو چا د یو لړ اخلاقي عناصرو جوړښت.

شخکی (šaxkáy) ښځ. م. جرشېدونکې، چوش لرونکې، خوټېدونکې، ایشېدونکې.

شخلی[1] (šaxláy) نر. م. خرغوله، د اوري په څېر یو ډول ګیا ده چې وریې داني کوي.

شخلی[2] (šxúlay) نر. م. و ګ. شخولی.

شخلي (saxaʿí) نر. ج. یو ډول ډېر خواږه انګور دي.

شخنتی (šxantáy) ښځ. م. شمشتی، شکرتنی، کاسه ګرب، کیشپ، کشپ.

شخنه (šxáṇa) ښځ. م. (ج. شخني) مفصل، د هډوکي بند.

شخوات (šaxwā́t) نر. م. د ماشومانو یو ډول لوبه ده.

شخوده (šxodá) ص. نب. نوکاري شوی، شونګاري شوی، په نوکانو ګربدلی.

شخور (šxor) نر. م. کلکه شوې شګه، قنقانی.

شخول[1] (šxwál) نر. ج. ۱) شور، شوغا؛ ۲) د مرغانو چغهار؛ ۳) کشوره؛ ۴) غم، خپګان.

**شخول**(۲) (šxawúl) مص. مت. ۱) ننغول، لګول، درول، ۲) کلکول.

**شخولی** (šxwúlay) نر.م. ۱) دخشو کشرو، ۲) طبراق، دمسافرګوډی، ۳) شخلی.

**شخوند** (šxwánd) نر.م. سخوند. شخوند وهونکی حیوانات چې خپل خواړه نیم ژوولي تیروي او بیا یې بېرته خولې ته راګرځوي او ژوويې یې.

**شخوند وهونکی** (šxwándwahūnkay) نر.م. وابه خوروونکي حیوان لکه غوا، پسه، اوښ، وزه، مېږه او نور.

**شخېدل** (šaxedə́l) مص. ل. ۱) چګېدل، درېدل، لګېدل، ۲) کلکېدل، سختېدل.

**شد** (šad) ص. نر.م ۱) ټينګ، کلک، سخت، استوار، ۲) نر.م. تشدید، د صرف او نحوې په اصطلاح داسې یوه نخښه ده (ّ)، ۳) پرتم، ٤) غیېروالی.

**شداوه** (šdáwa) ښځ. م. شلاوه، یو ډول ګیا ده چې د دریاب په تل کې شنه کیږي.

**شدت** (šiddát) نر.م. ۱) سختي، فشار، ۲) قهر، خوشکه، ۳) تېزي، ٤) قوت.

**شدرو** (šadráw) نر.ج. د ښخو خوږ، د ښخو فالمغال، د ښخو غوریږ.

**شدوپی** (šadopáy) ښځ. م. ۱) چرګی، شین تپکه، شدوپی، یو ډول واښه دي، ۲) دهقانګه، یو شنه، خره، ورو، برګه مرغۍ ده چې اوږده لکۍ لري.

**شدیاره** (šudyára) ښځ.م. ۱) ترکړ د مخه یوه شوی خمکه، شوډیاره، شیدیاره.

**شدید** (šadíd) ص. نر.م.ج. ۱) کلک، ټینګ، ۲) تونډ، تېز، ۳) قوي.

**شډل** (šaɖə́l) ص. نر.م.ج. ۱) ناتوبل شوی، شیبا، ۲) ناراسته، لټ، ۳) بې باره وتبوري، ٤) بې پښه، بې اډانه، ۵) چټل، ناولی.

**شډلتوب** (šaɖəltób) نر.م. ۱) شیبوالی، ۲) بې حاصلوالی، ۳) سستوالی، لټي، ٤) ساده ګي.

**شډله** (šaɖə́la) ص. ښځ. م ۱) شیبه، ۲) بې حاصله، بې باره، ۳) سسته، تنبله.

**شر**(۱) (šar) نر.م. فساد، پسات، فتنه، بدي، د خیر نقیض.

**شر**(۲) (š(a,u)r) نر.م. ۱) شر، د اوبو د تویېدو اواز، ۲) شرپ، شورپ، چینه.

**شراب** (šaráb) جن. ۱) د څښلو شی، مشروب، ۲) مې، خمر، نبېد، د خرما، انګورو... اوبه چې تخمیري شوې وي او څښل یې نشه راولي.

**شرابخانه** (šarābxāná) ښځ. م. ۱) متیبران، پیالګی، میخانه.

**شرارت** (šarārát) نر.م. ۱) فساد، پسات، شر، فتنه، ۲) شر و پسات اچونه.

**شرافت** (šarāfát) نر.م. ۱) شریفوالی، شریف کېدنه، ۲) لوړي، ستروالی، لوی والی.

**شراکت** (šarākát) نر.م. شریکېدنه، ګډون، برخه یا ونډه اخیستنه.

**شرایط** (šarāyít) نر.ج. د شرط جمع، و.ګ. شرط.

**شربت** (šarbát) نر.م.ج. جن. خوږښی، خوږې شوې اوبه، له مېوو ایستل شوې اوبه.

**شربل** (šarbə́l) مص. مت. و.ګ. شاربل.

**شرپ** (šrap) صوت. نر.م. شرپ، شر، د اوبو د تویېدلو اواز.

**شرپسند** (šarpasánd) ص. نر.م. شري، شر خوښوونکی، شریر، شرخوښتونکی.

**شرپهار** (šrapahár) صوت. نر.م. شرپا، شرپی، شرپا، د شېبېږي یا د لښتو د وهلو غږ.

**شرت وشپاړس** (šurtušpāṛás) نر.م.ج. خواره واره، ګډوډ، پاشان، مشتت.

**شرح** (šárha) ښځ. م. ١) تشریح، بیان، تفسیر؛ ٢) پراتیستل، خلاصول؛ ٣) پراخول.

**شرر** (šarár) نر.م. سپرغی، سپورمبغی، سپېنکی، بخرکی، د اور وړه ذره.

**شرشاهي** (šaršāhí) ښځ. م ١) شیرشاهي، د پخوا وختو د تول یو وړوکی مقدار چې له ١٤ ګرامو سره معادل و؛ ٢) لې؛ ٣) د یوې سکې نوم.

**شرشر** (šəršə́r) نر.م. شورشور، شرشر، شرهاري؛ د اوبو د پرله پسې توییدلو یا بهېدنګ اواز.

**شرشره** (šaršará) ښځ. م. جسرړی، څروړی، جوړ جوړی، زاوه، آبشار.

**شرشوبنده** (šaršobánda) ښځ. م. سرسوبنده، شربله، پشوکی، زنځه، ځنځه (و ګ. زنځه).

**شرط** (šart) نر.م. (ج. شرطونه، شرایط) ١) داو، پیمان، قرار، الزام؛ ٢) حالت، مرقبیت؛ ٣) تړ، ګرو.

**شرطنامه** (šartnāmá) ښځ. م. شرطپانه، عهدنامه، لوزنامه، قرارداد پانه، ژمنپانه.

**شرطي** (šartí) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. ١) شرط والا؛ ٢) د شرط، په شرط اړوند؛ ٣) د شرط بیع (د قطعي بیع مقابل).

**شرع** (šar') ښځ. م ١) لاره، طریقه؛ ٢) دین، مذهب، قانون. (و ګ. شریعت).

**شرعاً** (šar'án) ق. د شرعي له مخې، په شریعت سره، د دین، مذهب، قانون او ایین له مخې.

**شرعي** (šar'í) ص. نب. نر. ښځ. م. د شریعت، د شرعي، د دین، په شرعي یا شریعت اړوند.

**شرغشی** (šarğášay) نر.م. کورکه، شلغشی، کالي، کهې ته ورته یو دول ساراني وابه دي.

**شرغندویه** (šarğondoyá) ښځ. م. اوری، تورپک، د شرشمو په شېر یو دول نبات دی.

**شرغوبل** (šarğobál) ص. نر.م. اورلګاوی، اوردور، ګیډي، شخړ.

**شرغه** (šarğá) ص. نر.م. هغه آس چې تندی او سترګی یې سپین وبهتان لري.

**شرف** (šaráf) نر.م. ١) لوړي، عزت؛ ٢) حیثیت؛ ٣) پت، ابرو؛ ٤) د نسب لوړوالی.

**شرفه** (šurfá) ښځ. م. دکتاب د لومړي مخ چاپېرد طلااو لاجوردو تزیینات.

**شرق** (šarq) نر.م ١) ختیځ، لمرخاته؛ ٢) هغه سیمه چې دغه لور ته پرته وي.

**شرقي** (šarqí) ص. نب. نر. ښځ.م. ختیځ، د شرق، په شرق اړوند، هر هغه شه چې په ختیځ اړه مومي.

**شرک** (šírk) نر.م. ١) پرستن، تلتک، کنځر؛ ٢) کفر، له خدای سره شریک پیدا کونګ.

**شرکت** (šarkát) نر.م. ١) ګډون، شریکېدنه، ونډه اخیستنه؛ ٢) اق. کمپنی.

**شرکتي** (š(i,a)rkatí) نر. ښځ. م. ج. ١) د شرکت، په شرکت اړوند؛ ٢) ګډون کوونکی.

**شرم** (šáram) نر.م. (ج. شرمونه) ١) وایه، حیا؛ ٢) ناموس؛ ٣) مج. سپکاوی؛ ٤) اپ. ک: هغه تادیه چې د ملامت له خوا هغه چاته ورکوله کېږي چې تېری پرې پرشوی وي.

**شرمبی** (šrambáy) ښځ. م. تولګی، کونجی، د شلومبو د ځېډلو نخش لرونکی لوښی.

**شرمجن** (šaramján) ص. نر.م. ج. شرمناک، شرمګیر، شرم کوونکی، حیا لرونکی.

**شرمښ** (šarmáş) نر.م. لېوه، سپي ته ورته یو وحشي حیوان دی.

**شرمښ بېږی** (šarmaşbedáy) ښځ. م. د لېوه بېږی، د لېوه بچله.

**شرمنېکی** (šarm(a,u)qkáy) ښځ. م. چرمښې، کرمیښار، شرمشکی، مار ته ورته خزنده چي غلور پښې او اوږده لکۍ لري.

**شرمګیر** (šarmgír) ص. نر. م. ج. شرمناک، حیاناک، حیادار، شرمجن.

**شرمندتیا** (šarmındtyā) ښځ. م. شرمیدتیا، شرمېدنه، شرم او خپرجتیا، شرمنده توب.

**شرمنده** (šarmındá) ص. نب. خز. ملامت، پیکه، خپرج، خوسترګی، خجالت شوی.

**شرمول** (šarmawúl) مص. مت. ۱) خړول، خجالتول، شرمنده کول؛ ۲) دیو چا په ناموس او عفت تېری کول.

**شرمېدل** (šarmedál) مص. ل. ۱) شرم و حیا پري غالبه کېدل؛ ۲) بې آبه او بې پردې کېدل.

**شرمینګي** (šarmíngí) ښځ. م. شرمنده ګي، شرم و حیا شرمېدنه.

**شرنګ** (šráng) ص. نر. م. د فلزاتو یا ښیښه یي شیانو د لګېدلو اواز.

**شرنګانی** (šrangānáy) نر. م. جرنګانی، زنګوله، ګینګری، شرنګارو، شرنګی، جرنګانی.

**شرنګهار** (šrangahár) صوت. نر. م. شرنګا، شرنګهاری، شرنګی، د فلزاتو د لګېدلو غږ.

**شرنګی** (šrangáy) ص. ښځ. م. هغه اسپه چي سر زوري وي او ومندي ته یې ټول ځان ږدي او د سر ښندلو په وخت کي کیږي شرنګوي.

**شرنګېدل** (šrangedál) مص. ل. شرنګېدل، د فلزي یا ښیښه یي شیانو د لګېدلو په اثر اواز وتل.

**شر و شور** (šarušór) نر. م. غالمغال، ځوږ، شور وځوږ، غوبل.

**شروع** (šurūʿ) ښځ. م. ۱) پیل، سر، پیلونه، لاس پورې کول؛ ۲) ورګ. سرېزه.

**شرونه** (šarawána) ښځ. م. ورګ. خنبکی[۲].

**شرونه ژاوله** (šarawána žāwla) ښځ. م. د شروني کنډ، د ختجک د ونې کنډ..

**شرهار** (šarahār) نر. م. صوت. جرهار، جرهار، شرهار، د اوبو د توېدو پر له پسې اواز.

**شری** (šáray) نر. م. سری، شیري، سرخکان؛ د کوچنیانو یوه معموله ناروغي ده.

**شري** (šarí) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) پساتي، فسادي؛ ۲ ښځ. م. یو ډول توکر دی.

**شریان** (šaryān) (ج. شریانونه، شرائین) رګ، هغه رګونه چي له زړه څخه تازه وینه د بدن نورو برخو ته رسوي.

**شریپه** (šaripá) ښځ. م. د بام چجه، د بام تلپاچه، د بام چنه، شرفه.

**شرېدل** (šaredál) مص. ل. شوربدل، شوریدل، د اوبو پر له پسې توېدل.

**شریر** (šarír) ص. نر. م. ج. ۱) شري، پساتي، شر او پسات غوښتونکی ۲) په جرګه او مرکه کي هغه څوک چي د بر غالمغال کوي.

**شریطه** (šaritá) ښځ. م. ۱) شرط او پیمان؛ ۲) اد. دعائیه، په قصیده کي د پای بیتونه.

**شریعت** (šariʿát) نر. م. شریعه؛ ۱) سنت، مذهب، ایین؛ د اسلام یا بل هر اسماني دین ګرده اخلاقي، اقتصادي او حقوقي مقررات؛ ۲) دین او ملت؛ ۳) ګودر.

**شریعت کول** (šariʿatkawál) مص. مت. له عدالت او انصاف څخه کار اخیستل.

**شریف** (šarīf) ص. نر. م ۱) د شرف او لویی خاوند؛ ۲) ساهو؛ ۳) داشرف د کلیمې مفرد مذکر.

**شریک** (šarík) ص. نر. م. (ج. شریکان، شرکا،) ونډه لرونکی، سهیم، ګډ، برخه لرونکی.

**شړيکېدل** (šarikedə́l) مص. ل. ۱) گډېدل، برخه او ونډه اخيستل؛ ۲) مل کېدل، ملگری کېدل.

**شړ** (šaṛ) ص. نر.م.ج. ۱) ناآباده، شاړ، بې حاصله، شنډ؛ ۲) ساده؛ ۳) يو ډول ځنگلي دورمه ده؛ ٤) لټ، کاهل؛ ٥) د اوبو د توېېدلو اواز.

**شړپ** (šṛap) صوت. نر.م. شړپ، چړپ، د اوبو د توېدو اواز.

**شړت**[1] (šṛat) نر.م. په اوبلن شي کې د يوه شي د ډوبولو اواز.

**شړت**[2] (šṛat) ص. نر.م. لټ، سست، کاهل، شرم، شلم.

**شړتوب** (šaṛtób) نر.م. شاړتوب، شړتيا، بې حاصلوالی او بې توبې والی.

**شړتول** (šṛatawə́l) مص. مت. شړمول؛ ۱) په اوبلن شي کې د يوه څيز ډوبونه؛ ۲) بې فايدې کول؛ ۳) سستول، لټ کول، شلمول.

**شړتېدل** (šṛatedə́l) مص.ل ۱) شړتېدل، شړمېدل، په اوبلن څيز کې د يوه شي ډوبېدل؛ ۲) بې فايدې کول؛ ۳) سستېدل، لټ کېدل.

**شړته** (šṛatá) ښځ.م. شړهته، اوريشه، وريشه؛ د اوريشي دانه.

**شړته** (šṛatə́) ص. نب. لږ، کم، په کمه اندازه.

**شړشپه** (šaṛšapá) ښځ.م. د ترپان يا جگړې وروستنی شپه.

**شړشړی** (šaṛšaṛə́y) ښځ.م. ځړوبی، شړشړه، شور شوری، جور جوری، غور غوره.

**شړشم** (šaṛšám) نر.م. شړشم؛ يو ډول بوټی دی، توري وړي دانې کوي چې ډېر زيات غوړي لري اوژېړ، ښايسته، گل گل کوي.

**شړک** (šṛák) صوت. نر.م. شړق، ترک، د متروکې، لښتې، څپېړې... د وهلو اواز.

**شړکول** (šṛakawə́l) مص.مت. شړقول، په متروکې، لښتې، څپېړې... سره وهل.

**شړکېدل** (šṛakedə́l) مص. ل. شړقېدل، په لښتې، متروکې او څپېړې وهل کېدل.

**شړل** (šaṛə́l) مص. مت. ۱) ارتل، لېرې کول، گوښه کول؛ ۲) غورځول، اچول، ارتاوول.

**شړم** (šṛam) ص. نر.م.ج. لټ، سست، شلم، تمبل، تنبل، شوار، ځورند.

**شړمتوب** (šṛamtób) نر.م. سستي، لټي، تمبلي، شوارتوب، شړم والی، شلم والی، ځورندوالی.

**شړمول** (šṛamawə́l) مص.مت. شلمول، سستول، تمبلول، تنبلول.

**شړمېدل** (šṛamedə́l) مص. ل. شړوتېدل، شړتېدل، شلمېدل، لټ کېدل، تمبلېدل، سستېدل.

**شړنګ** (šaṛáng) نر.م. وگ. شړنه.

**شړنه** (šaṛə́na) ښځ.م. ۱) لېرې کونګ، لرې کول، گوښه کونګ؛ ۲) غورځونه، ارتاوونه.

**شړوالی** (šaṛwā́lay) نر.م. وگ. شاړوالی.

**شړوبی** (šaṛóbay) نر.م. شيردان، د نل، سماوار او آبدان شيردان يا څوڅکه، تونټی.

**شړوتېدل** (šaṛotedə́l) مص. ل.وگ. شړمېدل.

**شړول** (šaṛawə́l) مص. مت. ۱) وگ. شاړول؛ ۲) شړورل، تويول، تزکر يا کالي زړول، د تپ غوښه تويول؛ ۳) پخول، خوړينول، نرمول.

**شړوم** (šṛom) نر.م. شلوک، ځگ او نور مواد چې د کوچو تر ويلې کولو وروسته په لوښي کې پاتېږي.

**شړومبې** (šṛombé) جن. شړمبې، تروې شلومبې، شرملې، شومله، شنوېي.

**شړون** (šaṛún) نر.م. وگ. شړنه.

**شړونتيا** (šaṛuntiā́) نر.م. تبعيد، جلاوطني.

شروند (šrūnd) ص. نر.م. شور، خوړند، کورغ، مره.

شرونکی (šarūnkay) فا.نر.م ۱) لږ کوونکی، کوبه کوونکی؛ ۲) شور غوړونکی، اچوونکی.

شرونګ پرونګ (šrungprung) ص. نر.م. شرانګې، وانګې، سست پست، لټ پټ.

شرونګی (šrungáy) ص. ښځ. ج. چسروونکی، چرونګ. تکی (اوبه)، دپره لړه (مایع).

شرونه (šarawəna) ښځ. م. ۱) وګ. شاړونه؛ ۲) شوروونکی، تویونه؛ ۳) پخونه، نرمونه.

شرونی (šarūnay) مف. نر.م. شرونکی، ګوبه کوونکی، رټونکی.

شره (šára) ص. ښځ. م. ۱) اشاره، شنډه ځمکه؛ ۲) هغه کور چې څوک په کې نه اوسېږي.

شرهټه (šarháṭa) ښځ. م. وګ. شرټه.

شری (šaráy) ښځ. م. شالګی، ورینه لاسي جوړه کمپله.

شری بوټی (šaraybūṭay) نر.م. دسپېرکی د بوټي په څېر یو ډول بوټی دی.

شړېدل (šaṛedál) مص. ل. ۱) وګ. شاړېدل؛ ۲) شوربدل، تویېدل؛ ۲) پخېدل، نرمېدل؛ ۳) مج. خرابېدل، ورانېدل.

شست (š(a,ə)st) نر. م. ۱) نیکه، نخښه، نښان؛ ۲) خور؛ ۳) د غشي ویشتونکی ګوتمه؛ ٤) د کب نیولو کونډه.

شستی (šastáy) نر.م. وګ. داودي ګل.

شستی (šastə́y) ښځ. م. ج. مو. وپرده ، دمضرابو ردیف، کیبورډ.

شش[1] (šaš) نر.م. یو ډول ګردی، پرې لرونکې ګانه ده چې د غاړې په امېل کې وي.

شش[2] (šuš) نر.م. (ج. ششونه) وګ. سږی.

ششت (šəšt) نر.م. شاشت؛ ۱) غشه ګوته (ګوتمی) ۲) یو په ښتني غمی لرونکی پسول دی.

ششک (šišk) نر.م. شوش، شوشک، دپړدی، څپرګی، رواق، څپرکی.

ششنا (šušná) ښځ. م. ششنېده، شنهار، شیشنی، د آس شنهاری، د آس شیشنا.

ششنل (šišnál) مص. ل. ششنېدل، شیشنی کول، د آس ششنېدل.

ششنېدل (šišnedál) مص. ل. شیشنل، شنهېدل، ششنل.

شط (šat) نر. م. ۱) پټې، د سیند څنډه؛ ۲) هر سیند چې په سمندر ګډېږي.

شطارت (šatārát) نر.م. ۱) چابکي، تېزي؛ ۲) زرنګي، هوښیاري؛ ۳) بې باکي.

شطرنج (šatr ánj) نر.م. وګ. سترنج.

شعار (šaār) نر. م. (ج. شعارونه ۱) نخښه، نښه، علامه؛ ۲) رواج، رسم؛ ۳) د یوې دلې ځانګړی برغ یا نخښه.

شعاع (šuā́) ښځ. م. (ج. شعاعوې) ۱) وګ. وړانګه؛ ۲) هر سیده کرښه چې د یوې دایرې له مرکز څخه د هغې و محیط ته غځېدلې وي.

شعاعي (šuāī) ص. نب. نر. ښځ. م. د شعاع، په شعاع اړوند.

شعبده (šuqbadá) ښځ. م. چل، چم، دروغنه، حقه بازي، د لاس چالاکي.

شعبده باز (šuqbadabā́z) ص. نر.م. مداري، څوک چې شعبده کوي.

شعبه (šuqbá) ښځ. م. ۱) دفتر، د رسمي چارو د اجرا کوټه؛ ۲) څانګه، دیپارتمنت.

شعر (šiqə́r) نر.م. نظم، اشلوک، بدله، سندره، موزون کلام، مرتب کلام چې وزن و اهنګ لري.

**شعري** (šiʻrī) ص. نب. نر. ښځ. م. نظمي، د نظم، د شعر، په شعر اړوند.

**شعله** (šuʻla) ښځ. م. ۱) شغله، لمبه، شوزګکه؛ ۲) ځلا، رڼايي.

**شعور** (šuʻūr) نر. م. ۱) درک، فهم، پوهه، حس؛ ۲) د سد و هوښ قوه، د درک و پوهېدنې قوه.

**شعوراً** (šuʻūrán) ق. ۱) د شعور له مخې، په شعور سره؛ ۲) ارادتاً، شعوري، عمداً.

**شعوري** (šuʻūrī) ص. نب. ۱) د شعور، په شعور اړوند؛ ۲) ارادي، په لوی لاس، شعوراً.

**شغ** (šaǧ) صوت. نر. م. سغ؛ د ګولۍ د تېرېدو غږ.

**شغاشغ** (šaǧāšáǧ) نر. م. په چټکۍ، په توندۍ، په هواکې د غشي يا کارتوس د تېرېدو اواز.

**شغال** (šaǧál) نر. م. و ګ. سورلنډی.

**شغالي** (šaǧālí) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) و ګ. چغالي؛ ۲) کچه، کم اصله.

**شغالی** (šaǧāláy) نر. م. ۱) يو ډول لټ اوبږ دی؛ ۲) ص. نر. م. شلخی، شغلی. کم اصله، بډل.

**شغرب** (šaǧríb) نر. م. و ګ. ختيغ.

**شغرغ** (šaǧráǧ) ص. نب. پساتي، فسادي، شرير، شري، شرجوړونکی.

**شغز** (šaǧz) نر. م. يو ډول غرنۍ غټه ونه ده چې د اکاسي ونې په شان سپين ګل کوي.

**شغل** (šuǧál) نر. م. (ج. شغلونه) دنده، وظيفه، پېشه، مشغوليت.

**شغله** (šuǧlá) ښځ. م. (ج. شغلې) ۱) شوغله، شعله، لمبه، غوړګکه؛ ۲) ځلا، رڼا، رڼايي.

**شغلی** (šaǧláy) نر. م. (لو.) د ماشومانو يو ډول لوبه ده.

**شغولان** (šoǧulán) نر. م. د لوخې په شان يو ډول بوټی دی.

**شغهار** (šaǧahár) صوت. نر. م. و ګ. سغهار.

**شفا** (šifá) ښځ. م. روغتيا، روغوالی.

**شفاخانه** (šifāxāná) ښځ. م. و ګ. روغتون.

**شفاعت** (šafāʻát) نر. م. ۱) هيله کول، غوښتنه؛ ۲) له چا څخه بل چا د عفوې غوښتنه.

**شفاعتګر** (šafāʻatgár) ص. نر. م. د شفاعت غوښتونکی، د عفوې غوښتونکی، د بخښنې غوښتونکی.

**شفاف** (šaffáf) نر. م. ج. روڼ، روښانه، هغه څه چې د هيبې او بلور په شان وي.

**شفاهي** (šifāhí) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. په خوله، د خولې، د خولې خبرې، په خوله وينا.

**شفتالو** (šaftālú) نر. م. ج. شفتالو، شلتالو، ختوری، يو ډول خوږه او خوندوره مېوه ده.

**شفتله** (šaftála) ښځ. م. و ګ. شوتل.

**شفر** (šifár) نر. م. (ج. شفرونه) شيفر؛ ۱) رمز، راز؛ ۲) د پټې ليکنې د کوډ کلي.

**شفره** (šifrá) ښځ. م. (مو.) د موسيقيز اثر د ريتم د ټاکنې اشاره، ټايم سيګنچر.

**شفري** (šifrí) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. ۱) په شفر اړوند، رمزي؛ ۲) د شفر مؤظف.

**شفعه** (šafʻá) ښځ. م. د ګاونډيتوب حق، د همسايګۍ حق.

**شفق** (šafáq) نر. م. د لمر لوېدو په پيل کې د لمر د روښنايي سوروالی او پاتې وړانګې.

**شفقت** (šafaqát) نر. م. ۱) مهرباني، لورېينه، پېرزوينه، ګروهنه؛ ۲) زړه سوی.

**شفيع** (šafíʻ) ص. نر. م. ج. ۱) شفاعت کوونکی، هيله کوونکی؛ ۲) د شفعې څښتن.

**شفيق** (šafíq) ص. نر. م. ج. ۱) مهربانه، لورونکی، ګروهنی؛ ۲) زړه سواندی.

**شق**[1] (šaq) نر.م. (ج. شقونه) ۱) چاو، چاود، درز؛ ۲) مس. د تعرض یو شکل دی؛ ۳) شانګه، مسلک، رشته.

**شق**[2] (šaq) ص. نر.م. ج. ۱) جنجالي، لانجه مار؛ ۲) نر.م. کړکاچ، کش، جنجال، بسنډول.

**شقاوت** (šaqāwát) نر.م. د سعادت ضد، بدمرغه کېدنه، بدمرغي، بدبختي.

**شقايق** (šaqāyíq) نر.م. شقائق، شقايق النعمان، لاله (وګ. ريدی).

**شقب** (šaqáb) ص.نر.م. مست سرکېده، خشنګ، شوخ، سرکښ.

**شقه** (šuqá) ښځ. م. ۱) پچخوری، ريتاره، ربکی؛ ۲) اورد کاغذ چې په ازموينه کې د زده کوونکو نمرې په کې ثبتېږي.

**شقي** (šaqí) ص. نب. نر.ښځ. م. د سعيد ضد؛ بدمرغه، بدبخته، بدلامی.

**شقيقه** (šaqiqá) ښځ. م ۱) تنکی، ټپک، تندرکی، ستر؛ ۲) څنه، رونګه، اجل ځای.

**شک** (šak) نر.م. (ج. شکونه) ۱) شبهه، ګومان، د يقين خلاف، وټ؛ ۲) په هدوکي کې کوچنی درز؛ ۳) زرنيخ.

**شکارل** (škārál) مص. مت. ښکارل، دتکارل، نسی کول، چوچو کول، کشکارل.

**شکاک** (šakāk) ص. نر.م. شکمن، ګوماني، د شک وګومان خاوند.

**شکاکيت** (šakākiyát) نر.م. شک درلودنه، شک او ګومان لرنه.

**شکال** (šakā́l) نر.م. ۱) پهندی، ښکیل، دربل، دوربل، پېچاری؛ ۲) شک، تردد.

**شکاونه** (škāwaná) ښځ. م. ۱) شوکونه، شوکه، په تکی سره غلا؛ ۲) پرې کونه، غوڅونه.

**شکايت** (šikāyát) نر.م. ۱) ګيله، مانه؛ ۲) د چا د ظلم څخه سر ټکونه؛ ۳) زاري.

**شکر**[1] (šúkar) نر.م. منته، پاس لرنه، د چا د احسان منته.

**شکر**[2] (šakár) جن. د شکرې ناروغي.

**شکرانه** (šukrāná) ښځ. م. ۱) منښته، بېه منته، د شکر ادا کونې شی، تنزانه؛ ۲) مېچ. د کار اجوره.

**شکرپاره** (šakarpārá) ښځ. م. يو ډول خواږه زردالو دي چې په ونو کې يې وچوي او بيا يې څندي.

**شکرخند** (šakarxánd) نر.م. مسکا، خوږه خندا، تبسم.

**شکرخوب** (šakarxób) نر.م. ۱) خوږ خوب، آرام او خوندور خوب؛ ۲) د سهار خوب.

**شکرک** (šakarák) نر.م. کوری، کړوی، شکرکه، د نباتاتو يو ډول ناروغي ده.

**شکرګزار** (šukarguzár) ص. نر.م. ج. شکر کښونکی، شکر ايستونکی، شکر کوونکی.

**شکرګنی** (šakarganáy) نر.م. د مچمچيو کندو، شکيرګبنی.

**شکرلب** (šakarláb) مف. نر.م. ۱) چاکی، ښچی، کنها؛ ۲) د ښې او خوږې ژبې خاوند.

**شکره**[1] (šakára) جن. ۱) تړي، بوره، قند، چيني؛ ۲) د شکرې ناروغي.

**شکره**[2] (šikrá) ښځ.م. ۱) بابنه؛ ۲) کيشکره.

**شکری** (šakaráy) جن. ۱) يو ډول خوږه دی؛ ۲) نر.م. د بابنې نر، يو ډول پياوري مرغه دی.

**شکرۍ** (škarə́y) ښځ. م. شکور، له مزرو او بدل شوی تورې.

**شکريه** (šukryá) ښځ. م. منته، کوروداني، خوښنه، تشکر.

**شکست** (šikást) نر.م. ۱) ماته، ماتې، بایلات؛ ۲) درز، چاک، چاود؛ ۳) وګ. کسر

**شکسته** (šikastá) ص.ښځ.م. شکسته لیک، یو ډول لیک دی.

**شک شک** (šakšák) ق. نیغ نیغ، لک لک.

**شکشکه** (šakšaká) ښځ.م. ۱) د سپېڅتو یو ډول لوبه ده؛ ۲) ص. ښځ.م. (ج. شکشکې) هغه نجلۍ یا ښځه چې تر لازم حده زیاته ګرځي.

**شکل** (šakál) نر.م. (ج. شکلونه) ۱) څېره، رنګ، قیافه، مخ، بشره، بڼه، قواره؛ ۲) سمبول؛ ۳) نظیر، مثال، په څېر؛ ٤) کالبوت.

**شکلاً** (šaklán) ق. د شکل له مخې، د څېرې او بڼې له مخه، په ظاهره.

**شکل پېژندنه** (šakalpežandéna) ښځ.م. جوله پوهنه، مورفولوجي، څېره پېژندنه، د ظاهر علم؛ ۱) د ژوي پوهنې یوه څانګه ده؛ ۲) صرف، د ژبپوهنې یوه څانګه ده.

**شکلی** (šakalə́y) ښځ.م. کتوه، شمله، شلکی، د پګړۍ (لونګۍ) جوغه.

**شکمپاره** (škampārá) جن. ۱) موز، سپغول، سپرز؛ ۲) د کاریز د دوو څاګانو ترمنځ فاصله.

**شکمن** (šakmán) ص.نر.م.ج. ۱) دبدبي، تلولي، دوه زړی، شکي، ګوماني؛ ۲) مشتبه.

**شکنبه** (škanbá) ښځ.م. خند، د بېډیر یو ډول لوبه ده.

**شکنجه** (šikanjá) ښځ.م. (ج. شکنجې) ۱) وګ. سکنجه؛ ۲) د ترکاڼ ګېره؛ ۳) د لرګي لاس ګېره، د صحافۍ ګېره.

**شکندر** (škandár) نر.م. د ګېډې درد، د نس خوږ، د معدې درد، اپنډیسایتس.

**شکنډه** (škanḍá) ښځ.م. د هلکانو یوه لوبه ده.

**شکنه** (škaná) ښځ.م. جن. (یخ.) ساره تاوده، ښورواګی، پیاوه، تاودوبی، تور تاوده.

**شکڼه** (škaṇá) ښځ.م ۱) د شکون مؤنث؛ ۲) شنه ښځه.

**شکور** (škór) نر.م. (ج. شکورونه) شپور، له مزرو څخه جوړه زرغی (توکری).

**شکورشا** (škoršá) ښځ.م. یو ډول ګیاه ده چې په فصل کې راشنه کېږي.

**شکوری** (škoráy) نر.م. شکروټی، ورکوټی شکور، د شکور مصغر.

**شکول** (škawā́l) مص: مت. ۱) څیرل، بږه کول؛ ۲) لوڅول، په لاره کې غلا کول؛ ۳) رابېلول، راجلا کول، راشوکول.

**شکون** (škūṇ) نر.م. (ج. شکانه) شکاڼ، یو ډول وحشي حیوان دی چې پر بدن باندې تېره تور او سپین غشي لري.

**شکوه**(۱) (šikwá) ښځ. م. ګیله، مانه، شکایت.

**شکوه**(۲) (šukóh) ښځ.م. پرتم، شان، لوېي، جلال.

**شکوه**(۳) (šikúh) ښځ.م. ډار، بېره، ویره.

**شکي** (šakí) ص. نب. نر. ښځ. م. وګ. شکمن.

**شکېدل** (škedə́l) مص.ل. ۱) شوکېدل، څیرې کېدل؛ ۲) لوڅېدل، د غله له خوا په لاره کې مال ترې اخیستل کېدل؛ ۳) رابېلېدل.

**شکېدونی** (škedū́nay) نر.م. څیرېدونی، څیرې کېدونکی (شی).

**شکېزه** (škéza) ښځ. م. وګ. اشکېزه.

**شکېلل** (škelə́l) مص. مت. بېډی رغړول، بېډی اچول، بېښته درول، سپېښتې اچول.

**شکېلندر** (škelandár) نر.م. ۱) لوغند، ارغوند، لرغه، مردکه؛ ۲) غټه بېډۍ، لویه سپېښته.

**شکېلی** (škeláy) نر.م. وګ. شپېلک[۱].

**شکیه** (šakyá) ص. نښه. د شک، د گومان. په شک اړوند. شک څرګندونکی.

**شګاره** (šagára) ص. ښځ. م. ۱) بلاربه، امېدواره. حامله (ښځه): ۲) متیزه، متیزکه، شګېزه.

**شګری** (šagaráy) نر.م. ۱) د مجبور ګری، د مجبور ومبکی، د مجبور شاله: ۲) توریک ته د دارو (باروت) اچولو آله.

**شګری** (šagaráy) ښځ. م. د خنوریتو لوبو د جوړولو آله.

**شګلن** (šaglán) ص. نر.م. ج. شګوی، شګنور. شګن، د شګو. شګه لرونکی.

**شګ ماهی** (šagmáhay) نر.م. و.ګ. ربګ ماهی

**شګموښی** (šagmúšay) نر.م. ربګ ل.

**شګوفه** (šagufá) ښځ.م. غوټی، د میوو نیرو یکو ونو ګلان.

**شګوګل** (šagugúl) نر.م. و.ګ. شګی ګل

**شګون** (šagún) نر.م. شګوم، ښه ګوم، شوګوم، شونګن، شوګی. مڼ.

**شګه** (šága) ښځ.م. ج. شګې، ۱) و.ګ. ربګ: ۲) امیده مېده شوي نیره.

**شګی** (šagáy) ښځ.م. د شګو څای. هغه ځای چې توله یکې شګه وي.

**شګي ګل** (šagigwál) نر.م. و.ګ. لبرک.

**شل** (šal) ص. نر.م. ج. ۱) فلج. ګوډ: ۲) نر.م. پوړی، دربه، زینه: ۳) د کرچ غوندې تېغ یا جارحه آله ده.: ۴) حرکت. خوځښته.

**شلاتبه** (šalátba) ښځ.م. بیم. لیبز. لنبیک، د لرخي ښخ. د دیلي ښخ.

**شلامیر** (šlāmír) نر.م. پتیتانه، پوټ پتنکه، د ماشومانو یو ډول لوبه ده.

**شلاتبه** (šalátba) ښځ.م. شلاتبه، سمساره سلابه.

**شلاوند** (šlāwánd) نر.م. شلاون: ۱) د کندهار لو هلمند په اصطلاح کې ویش ته نږدې مانا لري: ۲) هغه حاصل د ځوکسو ترمنځ ووېشل شي.

**شلاوه** (šalāwá) ښځ. م. یو ډول وابښه دي چې د لوېر په دښته او تل کې راشنه کېږي.

**شلبر** (šalabár) نر.م. ۱) ځبېر رخت. شخه او کلکه توته: ۲) جولسبر اوبي ترتیبه کالي.

**شل پلاری** (šalplāráy) ص. نر.م. کم اصل، بې نسبه، د چا چې اصل و نسب معلوم نه وي.

**شلت** (šalát) ص. نر.م. لټ، سست، تمبل. کهال، تمرس، شار، بېکاره.

**شلتي** (šalatí) ص. ښځ. ج. ۱) شلګي (اوربشي). لواري او ربشي شلک: ۲) نیمې اوړې وریجې.

**شلتي** (šaltí) ښځ. م. شلک والی، شنډوالی، خیږ والی.

**شلخته** (šalaxtá) ص. ښځ. م. بې حیا ښځه. شلېڅه.

**شلخورکه** (šalxwaráka) ښځ. م. سمساره، سمسېره، سمسره، سمساره.

**شلخی** (šalxáy) نر.م. ۱) مورغووی: یو ډول سابه دی. ۲) ص. نر.م. شغلی. کم اصل توریک.

**شلدانه** (šaldāná) ښځ. م. د مرغلرو امیل.

**شلغری** (šalğaráy) شلګر. شهلګر. نېزور. نیره باز.

**شلغټ** (šalğáṭ) ص. نر.م. ج. بې ډوله، بدشکله. بدڅواره.

**شلغشی** (šalğašáy) نر.م. و.ګ. شرغشی.

**شلغم** (šalğám) نر.م.ج. تیپر، منګیټه. بنګیټه. یو ډول سابه دی.

**شلک** (šalák) ص. نر.م. ج. و.ګ. شلتي.

**شل کول** (šalkawál) مص. مت. کار سرته رسول. د یوې چارې تر عهدې وتل.

**شلکه** (šálka) ښځ. م. لټي، سستي، تمبلي.

**شل کېدل** (šalkedə́l) مص. ل. کار سرته رسېدل، کار اجرا کېدل.

**شلګ** (šaláğ) ص. نر. م. ۱) شنېل، شلتې، شلګې (اوربشی)؛ ۲) شپږ تو رکړ؛ ۳) بېخي، ګرسره.

**شلګر** (šalgár) نر. م. و ګ. شلغاري.

**شلګره** (šalgára) ښځ. م. جړې، پرله پسې باران.

**شلګري** (šalgarí) ص. نر. م. شل سازي، نېزه سازي.

**شلګونې** (šalgúne) ص. ښځ. ج. شل چنده، شل برابره، شل واري.

**شلګونی** (šalgúnay) ص. نر. م ۱) شلګون، شلی؛ ۲) شلمه.

**شلګه**[1] (šalgá) ښځ. م. د وري لشه، د وري لېشه، د وري لشکه، د غنمو د وري سرګ.

**شلګه**[2] (šalága) ص. ښځ. م. د شلګ مؤنث. شلګه پېره، شپېړه (پېړه نه خړېل شوي).

**شلګی** (šalgáy) نر. م. ۱) ورکوټی شل، وړه نېزه؛ ۲) کمکۍ تیرکۍ.

**شلګی** (šə́lguy) ص. نر. م. شلمه، له شلو څخه یوه برخه.

**شلګۍ** (šalgáy) ښځ. م. رېکۍ، تاخچه، طاقچه، وروکۍ تاخ، شیلګۍ، غراسکۍ.

**شللو** (šalaláw) نر. م. زیاته سپوره ټوروا، لېغوري لرونکي ټوروا.

**شلم** (šlam) ص. نر. م. ۱) شړم، شوار، سست؛ ۲) خانګه، کلکه وازده، لم، کلکه وازګه.

**شلمدنه** (šalamdə́na) ښځ. م. رنی، رې، د یوه نبات ستنه ده چې په درملو کې هم کارېږي.

**شلمول** (šlamawə́l) مص. مت. و ګ. شړمول.

**شلند** (šlan̤d) ص. نر. م. ج. شورب، چاغ، غوړين، مزې.

**شلندتوب** (šlan̤dtób) نر. م. شلندوالي، څوړېوالي، چاغوالي، شړېښت، غټوالي.

**شلندول** (šlan̤dawə́l) مص. مت. ش. ب. چاغول، غوړين کول، مزی کول.

**شلنده** (šlan̤dá) ښځ. م. ۱) خټ نړ، شرمېښکی؛ ۲) سمساره.

**شلندېدل** (šlan̤dedə́l) مص. ل. چاغېدل، شړېېدل، مزی کېدل.

**شل و شوټ** (šalošúṭ) ص. نر. م. ج. بېخي شل، بشپړ فلج؛ ۱) د فلج نارغه؛ ۳) مج. بې کاره، لټ.

**شلول**[1] (šlawə́l) ص. مت. ۱) شکول، شوکول؛ ۲) څیرل، پړ، کول، څیري کول.

**شلول**[2] (šalawə́l) مص. مت. فلجول، شل کول.

**شلوم** (šlom) نر. م. و ګ. شړوم.

**شلومباوڼ** (šlombāwáṇ) نر. م. د چکي کڅوره، د چکي خلته.

**شلومبکه** (šlombáka) ښځ. م. یو پلن سپین پوټی دی چې پرې داري پاڼې لري.

**شلومبې** (šlombé) جن. شلومبه، تروې، شرومبې.

**شله** (šalá) ښځ. م ۱) د نس وازګه؛ ۲) پسته غوښه؛ ۳) ص. نب. جوړغېدلی؛ ۴) اسپین سترګی؛ ۵) عد. شلې، د وروستاري په توګه راځي.

**شله منا** (šalamaná) ښځ. م. ښوندی، شخندي، ښوېندي، شنبندي، ښوېه تېره.

**شلي** (šli) جن. غله، حبوبات، دانې.

**شلي** (šalé) ښځ. م. یشلی، یو ډول غلمینه مړی ده.

**شلیاپه** (šalyāpá) ښځ. م. ګنده ببه، بګه، سروزنه، په پرتوګ کې د پرتوګ بن اچولو ځای.

**شلیته** (šalitá) ښځ. م. ۱) جانخانی جوال، غونج، ګونده؛ ۲) د اوبو تالو؛ ۳) امیانی، همیانی؛

٤) دلي، ډېري، امبار؛ ٤) ص. ښځ. م. بدلمني، کاسېره؛ ٥) جسرګه، پاتې شوني؛ ٤) زړه ورېنه توګه.

**شلېدل(١)** (šledál) مص. ل ١) شکېدل، جلا کېدل؛ ٢) څېري کېدل، ټوټه کېدل.

**شلېدل(٢)** (šaledál) مص. ل. شېلېدل، شل کېدل، فلج کېدل.

**شليک** (šilík) نر. م. ١) شلک، د توپک پاتونه؛ ٢) يوځي سلامي، نظامي سلامي.

**شليکی** (šlíkay) نر. م. اشتغ، اشتک، آشتق.

**شليل** (šalíl) نر. م. ج. د شفتالو له جنسه يوه مېوه ده چې رنګ يې سور او ژېړ وي.

**شم** (šam) نر. م. ١) شمع، شمعه؛ ٢) د معاون فعل د متکلم مفرده صيغه ده، د (شول) له مصدر څخه جوړېږي؛ ٣) (اص.) لـه يخـه منجمد.

**شماخه** (šamáxa) ښځ. م. وګ. شموخه.

**شماخی** (šamāxáy) ښځ. م. شمه، د چاپو شمه.

**شمار** (šmār) نر. م. شمېر، حساب.

**شمارپوهنه** (šmarpohána) د سرشمېرنې علم، د احصائيې علم.

**شمارل** (šmarál) مص. مت. شمېرل، حسابول، ګڼل.

**شمال** (šamál) نر. م. ١) المرجي، دمرو خوا، د سويل مقابله خوا؛ ٢) وګ. باد ١).

**شمال ختيځ** (šamālxatíz) نر. م. شمال شرقي، د شمال او ختيځ تر منځ لوري.

**شمال لوېديځ** (šamāllwedíz) نر. م. شمال غرب، د لمر چې او لمر لوېدو ترمنځ لوري.

**شمامه** (šamāmá) ښځ. م. د خراسان د موسيقۍ يوه ترغونې آله ده چې په قاموسو کې د شپېلۍ يا توکلې په ډول ياده شوې ده.

**شمان** (šamán) نر. م. هغه خاوري - خښلي ځای چې په جارو کولو سره له يوه ځايه څخه راټولېږي.

**شماندروز** (šmāndróz) نر. م. يو ډول ګل شپندروز، شمندروز، فناوېز، يو ځنګلي د ورېښمينو توکرو.

**شمبلکار** (šambalkár) نر. م. سمبلکار، يو ډول زهر دي.

**شمپانزي** (šampānzé) ښځ. م. چمپانزي، انسان دوله بيزو.

**شمته** (šamatá) ښځ. م. د ماشوماتو يو ډول لوبه ده.

**شمخه** (šamáxa) ښځ. م. وګ. شماخه.

**شمره** (šamrá) ښځ. م. خ. د داړو نهايي برخه.

**شمرتي** (šmartí) جن. شمېرته، يو ډول خوشبويه بوټی دی چې خلک يې په کټغ کې ورځ اچوي.

**شمزی** (šamzáy) ښځ. م. ج. د ملا تير، اشتري، ستون فقرات.

**شمزيوال** (šamziwál) شمزي لرونکی، ملاتير لرونکی، فقاريه.

**شمس** (šams) نر. م. لمر، نمر، نور.

**شمس النهار** (šamsunnahár) نر. م. د امير شېر علي خان د دوري يوه جريده وه، په افغانستان کې لومړنۍ جريده ده.

**شمسه** (šamsa) ښځ. م. ١) ص. يـو ډول ترئين و چې د کتابو د پوښو پر شا باندي جوړېده؛ ٢) د ګومبټي پر سـر د لمر په شکل له فلز څخه جوړ شوي شکل؛ ٣) بت.

**شمسي** (šamsí) ص. نسـ. نر. ښځ. م. ج. د شمس، لمريز، د لمـر، پر شمس مربوط؛

شمسي انقلاب: ددوبي او ژمي د فصلونو راتګ.

شمسي سنه: لمريزه سنه، هجري شمسي سنه.

شمسي نظام: لمر او ټول اسماني اجسام چې د لمر پر شا وخوا راڅرخي.

**شمشاد** (šamšā́d) نر.م. د شمشاد ونه، يوه لوړه ونګه غرنۍ ونه ده چې ګردې پاڼې لري.

**شمشتۍ** (šamšatáy) ښځ.م. ۱) و.ګ. کشپ؛ ۲) تمساح.

**شمشمه** (šamšamá) ښځ.م. ۱) پرتم، شان و شوکت؛ ۲) وياړ، سرلوړي، افتخار.

**شمشو** (šamšó) ښځ.م. سيخچه، ورکوټی سيخ.

**شمشېر** (šamšér) نر.م. و.ګ. توره[1].

**شمشېرکه** (šamšéraka) ښځ.م. ګېره، يو تراشلی لرګی دی چې کونده او تير دواړه ورته سوري کوي، د کوټنې له خوا يې تير ته ورننه باسي او د يوه لرګين ميخ په واسطه تيراو کونده يو له بله سره د موټي ترڅنګ کلکوي.

**شمعه** (šamʻá) ښځ.م. شم، شمه، موباتی، د مومو څراغ، شمع، موم باتی، موباتی.

**شمعه دان** (šamʻadā́n) نر.م. شمعداني، د شمع ايښودلو شي يا آله.

**شمکلی** (šamkaláy) نر.م. ۱) هغه تارونه چې د شادر څنډو، د پټکي شملو او... ته پرېښودل کېږي؛ ۲) چمکلی، يو ډول ګاڼه ده چې غاړکۍ غونډې غاړې ته ځوړندېږي.

**شمکی** (šamakáy) نر.م. سيګولی، تريخه، يو ډول تريخ بوټی دی.

**شملانه** (šamlā́na) ښځ.م. بې پروايي، بې اعتنايي.

**شمله** (šamlá) ښځ.م. ۱) چوغه، کټوه، شکلی؛ ۲) د پګړۍ سر وپای؛ ۳) پ.ک. شمله، د ناريتوب نخښه ده.

**شمن** (šamán) نر.م. بت، صنم، محبوبا، مينه، معشوقه.

**شمندروز** (šamandróz) نر.م ۱) و.ګ. شماندروز؛ ۲) ځنې، ځنې کوکو، سنبل (ګل).

**شمندګوټی** (šamandgəṭáy) نر.م. يو ډول نبات دی او په غنمو کې راشين کېږي.

**شمو** (šamó) ښځ.م. يو ډول ګنبون دی چې د خامک کولو لو ګلانو اچولو په ډول کېږي.

**شموټګر** (šamoṭgár) ص.نر.م. شمټګر، چفلګر، شيطان، چغلمار، چوغل.

**شموخه** (šamū́xa) ښځ.م. شماخه، شمخه، د پړنو په څېر ووي او د شولو په څېر بوټي واله يو ډول. واښه دي چې معمولاً په شولوکې راززغونېږي.

**شمول** (šumū́l) نر.م ۱) ګډون اشتراک، داخلېدنه، برخه اخيستنه؛ ۲) احاطه کونګ، نيونه.

**شموليت** (šumūlyát) نر.م. ۱) ګډون کول، برخه اخيستنه، اشتراک کول؛ ۲) احاطه.

**شمه**[1] (šáma) ښځ.م. ۱) هغه کېږدۍ چې د وزو له تورو وېښتو نه جوړه شوې وي؛ ۲) و.ګ. شمعه؛ ۳) شماخې، د دم شو چاي پاتې شوې پاڼې.

**شمه**[2] (šáma) ښځ.م. شومه؛ ۱) خيراتي ډوډۍ چې په مړي پسې پخېږي؛ ۲) توان، سېک.

**شميا** (šamyā́) ښځ.م. مرز غونډې تور مرغه دی چې سپين سپين خاپونه لري.

**شمېر** (šmér) نر.م. و.ګ. شمار.

**شمېراند** (šmerā́nd) نر.م. ګڼونکی، شمېرونکی، حسابدار، محاسب.

**شمېرنومځری** (šmerənūmjə́ray) عددي ضمير.

**شميم** (šamím) نر.م. ۱) ښه بوی؛ ۲) ص.نر.م. لوړ، جګ، مرتفع.

**شناخت** (šnāxt) نر.م. ۱) پېژندنه، پېژندګلوي، اشنايي؛ ۲) د اتن مهارت.

**ښناخته** (šnā́xta) ص.نهد ۱) آشنا، پېژندوی؛ ۲) ښځ.م. ښاخه، د قبر ولاړه تيږه.

**شناخچه** (šnā́xča) ښځ.م. و.ګ. شاخه.

**شناره** (šnára) ښځ. م. یو ډول اغزی (غنه) دی.

**شناز** (šanáz) نـر.م. (ج. شـنازونه) خـیک، ژی، مشک.

**شناس** (šnás) نـر.م. ۱) پېژندګلوي، شناخت؛ ۲) ص. نر.م. دوروستاري په ډول صفت جوړوي.

**شناسه** (šnása) ښځ. م. وګ. شاخه.

**شناغله** (šnáğla) ښځ. م. د شنیو پیټي، شنې او میده شیداني له اوړو سره ګډیږي، وروسته وړدې تري پخوي چې دې ته شناغله وایي.

**شنالغه** (šnálğa) ښځ. م. نیمه خمیره، پتیر اوړه، هغه اوړه چې رسېدلي (خمیره) نه وي.

**شناوۍ** (šnawə́y) ښځ. م. شنروی، شنوبې، شلومبې، شنیبې.

**شناوی** (šnáwáy) ص. نر.م. شینجاوی، شنه ویره، مې وریجې، د ویرې یا سر ویښتان چې سپین او تور ګډ وي.

**شلتۍ** (šantáy) ښځ. م. شنډۍ، ډکه، بند.

**شنجرف** (šanjárf) جن. وګ، شنګرف.

**شنجکۍ** (šanjakáy) ښځ. م. وګ. دمل.

**شنځۍ** (šanǰáy) ښځ. م. وګ. شمزۍ.

**شنخته** (šnáxta) ښځ. م. وګ. شاخه.

**شند** (šand) نر.م. شاهین، باتور، ګـوریت ته ورته یو ډول ښکاري مرغه دی.

**شندل** (šandál) مص. مت. ۱) نوستل، شـیندل؛ ۲) غارول، چارول، ښندل.

**شنده** (šánda) ښځ. م. ۱) پارېدنه، هیجان، ولوله؛ ۲) ملنډې، مسخرې؛ ۳) اسراف؛ ٤) نامعلومه مصیبت.

**شندی** (šanday) نر.م. وګ. رېدی.

**شندي** (šandi) ص. نب. ۱) پارېدلی، هیجاني؛ ۲) ټوکمار، مسخراچي؛ ۳) بدخرڅي، اسرافي.

**شنډ** (šanḍ) ص. نر.م. ۱) بې ثمره، بې حاصله، بې میوې؛ ۲) اګر، وچ، عقیم؛ ۳) وران، ویجاړ؛ ٤) وګ. زنجبیل.

**شنډاک** (šanḍák) نـر.م. یو ډول سوبه ده چې په پنځو چیتیو سره کېږي.

**شنډتوب** (šanḍtób) نر.م ۱) شنډوالی، بې ثمرتیا؛ ۲) وچېدنه، اولاد نه زېږېدنه، عقیم والی؛ ۳) ویجاړتیا، خرابوالی.

**شنډوخاني** (šanḍuxāni) نر.ج. ص. نب. شونډو خاني، یو ډول خواږه اوږده کندهاري انګور دي.

**شنډول** (šanḍawə́l) مص. مت. ۱) بې حاصله کول؛ ۲) عقیمول، له اولاده اچول؛ ۳) بې نتیجې کول.

**شنډه** (šánḍa) ص. ښځ. م. ۱) وچه، عقیمه، هغه ښځه چې اولاد نه زېږوي؛ ۲) بې ثمره، بې حاصله.

**شنډۍ** (šanḍə́y) ښـځ.م. ۱) شنتۍ، بند، ډکه؛ ۲) د یو ډول ونې نوم؛ ۳) اوم اګور، اومه مېوه.

**شنډېدل** (šanḍedál) مص. ل ۱) بې حاصله کېدل؛ ۲) له اولاده پاتې کېدل، عقیمېدل؛ ۳) خرابېدل، ویجاړېدل؛ ٤) بې نتیجې کېدل، ناکامېدل.

**شنقار** (šanqár) نر.م. ښنکار، د باز د کورنۍ یو مرغه دی.

**شنکاړه** (šankā́ṛa) ص. ښځ.م. سنګړه، تراړه، ډبرینه، کانیزه ځمکه.

**شنکۍ** (šinkáy) نر.م. شینکی، هغه ختکی چې تر ګل وروسته دانه نیسي او شین رنګ لري.

**شنګ** (šang) نر.م ۱) خفیف اواز؛ ۲) افواه، شایعه ۳) ص. نب. لې. لې غوندي؛ ٤) رمز، اشاره.

**شنګار** (šangár) نر.م. سغهار، د ټوپک د ګولیو د تېرېدو اواز.

**شنګال** (šangál) نر.م. ښنګل جوړه، بهره، شناګه.

**شنګرف** (šangárf) جن. وګ. شنګرپ.

**شنګرک** (šangrák) نر.م. سرخنې، عناب، يو ډول ميوه ده چې په درملو کې استعمالېږي.

**شنګرۍ** (šangráy) ښځ.م. ۱) د خاورينو لوښو د جوړولو قالب؛ ۲) د شوکېدلې او شارنې لپاره غلور کونجه برج.

**شنګرپ** (šangáṛp) نر.م. جن. د جيوې سولفور، د جيوې دکان د ډېرو شخه يو ډول چې سور يا قهوه يي رنګ لري.

**شنګړه** (šangáṛa) ښځ. م. شيګاره، متيزه، داسې پخله يا ښځه چې له کوم نارينه سره وتښتي.

**شنګلۍ** (šangaláy) نر.م. پيڅه، رنګارنګ مرۍ په تار پېيي، له دغو مريو شخه تارونه ښپلوي او سرونو ته يې درې درې غوټې ورکوي، چې د غونډۍ ښه پيدا کوي.

**شنګڼ** (šangáṇ) نر.م. شګون، شګوم، ښاګوم، ښګوم.

**شنګورۍ** (šangúray) نر.م. يو ډول خېروزمه غرنۍ بوټی دی.

**شنل** (šanál) مص. مت. ۱) التول، پلتل؛ ۲) ګينل، ګينودل؛ ۳) تار تارکول، شيندل، پاشل.

**شنوالی** (šanwā́lay) ښځ.م. ښونلی، د ښوروند ونې زوی او دانې، د زيتون دانې.

**شنوبې** (šnobé) جن. شلومبې؛ و ګ. شرومبې.

**شنه** (šna) نر.ج. ۱) واښه، نباتات؛ ۲) سابه؛ ۳) شين رنګ.

**شنه پېروي** (šnaperawí) ښځ.ج. دسترګو شنه پرده.

**شنه توخله** (šnatuxála) ښځ.م. شنه غاره، توره غاره، يو ډول ساري توخی دی.

**شنه خېره** (šnaxáṛa) ښځ. م. ق. سهار وختی، پر لوی سهار، سپېدې چاود، سپېده داغ.

**شنه زرغونه** (šanazarǧoná) ښځ. م. و ګ. . ره وزرغونه.

**شنه غاړه** (šnaǧā́ṛa) ښځ.م. و ګ. شنه توخله.

**شنه کوتره** (šnakawtára) ښځ.م. ولغه، غرنۍ کوتره، دښتې کوتره، سارانې کوتره.

**شنه لوخړه** (šnalūxáṛa) ښځ.م. خورسکه، غروسکه، غرسکه، شين دود، ګڼ لوګی.

**شنه هريړه** (šnahariṛá) ښځ.م. شنه اريړه، يو ډول طبي بوټی دی.

**شنی** (šánay) نر.م. ۱) شينې، شونې، د چرګانو شينې؛ ۲) شينې، يو ډول دانه ده چې د لاس پرګوتو يا د ښو په تلي کې راخېژي؛ ۳) خسمار.

**شنې** (šne) ښځ. ج. شنې، تيتاقې، اورې، دختجک د ونې غوړې دانې.

**شنېدل** (šanedál) مص. ل. ۱) رېږدل، ترېدل، رېږدېدل؛ ۲) زهيرېدل، پرېشانه کېدل.

**شنېلی** (šneláy) نر.م. و ګ. شينلی.

**شڼ** (šaṇ) ص. نر.م. ۱) مست؛ ۲) د آس شڼنې.

**شڼا** (šaṇá) صوت. ۱) شڼ، شنهار، شڼنې؛ ۲) مج. ښځ. م. شور، مستي.

**شڼ شڼ** (šaṇšaṇ) نر.م. شڼا، شنهار، شيشڼې، د اس شڼنې.

**شڼشڼی** (šašanáy) نر.م. ۱) ګونګړی، ګينګړی؛ ۲) شرنګارو، جرنګانې.

**شڼول** (šaṇawál) مص. مت. ۱) شڼول، شڼدل، خوځول؛ ۲) شڼنول، شڼنول، شونول.

**شنهار** (šaṇahā́r) صوت. نر.م. ۱) شڼا، کشهار؛ ۲) شڼنا، د آس اواز؛ ۳) د پاڼو د رپېدو اواز.

**شڼېدل** (šaṇedál) مص. ل. ۱) رپېدل، خوځېدل، ښورېدل؛ ۲) شيشڼېدل، شڼشڼېدل (د آس).

**شو** (šo) صوت. ښځ. م. ایش، اوش، وش، هش، ایشه، د خره د درولو غږ.

**شواخون** (šawāxūn) نر.م. نول، غم، کبراک، رنځ، خورین زړه.

**شوار** (šwār) ص. نر.م ۱) ازات، آزاد؛ ۲) غوړولی، خپور ور، اولر، هوار.

**شوارول** (šwārawәl) مص. مت ۱) ازتول، ازادول، خلاصول؛ ۲) غوړول، خپرول، اولرول.

**شواریدل** (šwāredәl) مص.ل. ۱) ازتیدل، وازیدل، خلاصیدل؛ ۲) غوړیدل خپریدل، اواریدل.

**شواړ** (šwāṛ) ص.نر.م.ج. ۱) بې ترتیبه، بې نظمه؛ ۲) سست پست، نرم، شرم، ژاولې.

**شواړه** (šwāṛa) ص. ښځ. م. ۱) شاره، شنده، بې حاصله؛ ۲) بېکاره اولته (ښځه).

**شواړي شواړي** (šwāṛešwāṛe) ق. ۱) توکر توکر، خیرې خیرې؛ ۲) بې نظمه، گډوډ؛ ۳) سست پست.

**شوال** (šawāl) نر.م. ۱) پرتوگ؛ ۲) چار، کار.

**شوبله** (šobla) ښځ. م. ۱) و.گ. زنځه؛ ۲) ن. اصې. جنگې ټانک؛ ۳) ښځ. م. هغه اوبه چې په سینه کې لښتې لښتې بهیږي؛ ۴) زابر، زاکېن، جر.

**شوبین** (šawbīn) ص. نر.م.ج. هغه شه چې د فاسفورو ترکیباتو مواد لري او د شپې په تیاره کې ځکاري.

**شوپ** (šup) صوت. نر.م. غورپ، غړپ، گړپ، د مایعاتو د څښلو اواز.

**شوپا** (šopā) ص. نر.م. شوپه، ناسنته، شرپر، هغه سړی چې سنت (خته) شوی نه وي.

**شوپرک** (šawparak) نر.م. ښکالکې، ښکالی، ماښام ماپېرک، کتپوز، تې مرغه دی، بدن یې وړو لوښتو وزرونه لري د شپې الوتنه کوي.

**شوپړ** (šopәṛ) ص. نر.م. و.گ. شوپا.

**شوپه توب** (šopatob) نر.م. شوپه والي، ناخته توب، ناسنت توب.

**شوپه شو** (šopašo) ص. نېد. شرپشو، تیت پرک، تار په تار، خپور ور ، خپرې ورې.

**شوپیان** (šupyān) نر.م. تاوان، ضرر، اتاوې، نغور، نقصان.

**شوپیانه** (šūpyāna) ښځ. م. ۱) تسور، تسرمته ۲) شرم، خجالت.

**شوت** (šut) ند. نر. م. سوچ[سیچ] شکلی (عمل)، سوچېره) د لوبو یوه اصطلاح ده.

**شوتار و بازار** (šawtār wbāzār) نر.م.(لو.) د ژمني موسم یو دول لوبه ده.

**شوتتی** (šawtatáy) نر.م. و.گ. کېشپه.

**شوترکي** (šutaráki) ښځ. م. دلره، د اوبو دلره، د اوبو پشکه.

**شوتل** (šawtál) نر.ج. شوتله، شبتل، شفتل، شبدر، یو دول گیاه ده.

**شوته** (šawtá) جن. یوه سربېښناکه ماده ده چې د ونو او نباتاتو له حشرو او خزنده و څخه راتویبږي او نبات وچوي.

**شوتلړ** (šutlә́ṛ) نر.م. شترلړ، دوه مایل لرگي دي چې د ارت د پېړي د تاوولو لپاره درول شوي وي.

**شوتې** (šáwte) ښځ.ج. ۱) توکې ټکالي، ملنډې؛ ۲) الوتې بوتې، چتیات، ناشودي.

**شوټ** (šuṭ) ص. نر.م.ج. ۱) شرټه، شل، هغه څوک چې لاس یا پښه یې شله او له کاره لوېدلې وي؛ ۲) نر.م. په سپورټو کې د هدف په لور د گېند پورې وهلو عمل.

**شوټ کلیان** (šuṭkalyān) نر.م. و.گ. سود کلیان

**شوټکه** (šuṭáka) ښځ.م. غولی، سوټکه، دجوارو وږی.

**شوټه** (šúṭa) بېغ.م. ۱)اوم ختکی، اومه خربوزه؛ ۲)ص. نب و گ. شوټ ۱).

**شوټی** (šuṭáy) ص. نبرم. شوټ لاسی، په لاس شوټ، په لاس گوډ.

**شوخ** (šox) ص.نر.م.ج ۱)وران، مست، شیطان؛ ۲)ظریف، ټوکمار؛ ٤)روجانه رنگونه.

**شوخون** (šawxún) نر.م. تار، شبخون، ناتار، د شپې له خوا پر دښمن باندې ناڅاپي یرغل.

**شوخي** (šoxí) بېغ.م ۱)ورانی، مستي، شیطاني؛ ۲)ټوکه، ظرافت.

**شودانه** (šawdána) بېغ.م. شوانه، سیلی، لوبېږنده، د ماشومانو د تندي او کوټي ترمنځ ترمه برخه.

**شودپی** (šodapáy) بېغ.م. ۱)و گ. شدوپی؛ ۲)شودي پی، یو ډول شیدې لرونکی نبات دی.

**شودر** (šawdár) جن. و گ. شوتل.

**شودسارنگ** (šudsaráng) نر.م. (مو.) سود سارنگ، د کافي ټاټ یو راگ دی.

**شودناټ** (šudnáṭ) نر.م. سودناټ، سدمناټ، د میگ راگ د پترو له بارجاو څخه یو دی.

**شوده** (šodá) جن. و گ. شیدې

**شوده** (šodá) ص. نب. ساده، بې تهذیبه، کم عقل، سودر.

**شودیاره** (šudyára) بېغ.م. و گ. شدیاره.

**شودې والا** (šudewālá) شیدې خرڅوونکی، شودې خرڅوونکی.

**شودې وریجې** (šudewrijé) شیدې وریجې، شیربرنج.

**شوډنگ** (šoḍáng) ص. نر.م.ج. ۱)شرډه، ساده؛ ۲)بې غیرته؛ ۳)نر.م. له شرمه ډک عمل.

**شور**(۱) (šor) نر.م. ۱) چغې، نارې، سورې، ځوږ؛ ۲)د خولې جنگ؛ ۳)خوشکه، قهر؛ ٤) هیجان.

**شور**(۲) (šur) صوت. نر.م. شی، شور، چور، شرت، د مایع شي د بهېدلو او تویېدلو اواز.

**شورا** (šorá) نر.م. ۱)اسلا، مشوره، مصلحت، سورت؛ ۲)شورا، جرگه، غونډه.

**شورش** (šoráš) نر.م. و گ. بورېږ.

**شورشر** (šuršár) نر.م. د خولې جنگ، غالمغال.

**شورشور** (šuršúr) صوت. نر.م. شرشر، شرشر، د اوبو د تویېدو اواز.

**شورکی** (šurkáy) صوت. نر.م. شرهار، شورهار، شورکی، د اوبو یا مایعاتو د پرله پسې تویېدلو اواز.

**شورکی** (šorakáy) بېغ.م. شارکه، زرگره، گل خرېنگه، مینکه، مینا، بهاروني، بهارو.

**شورماشور** (šormāšór) نر.م. خور، شور و غوغا، چان چړن، غالمغال.

**شوروا** (šorwá) بېغ.م. و گ. ښوروا.

**شوره** (šorá) جن. و گ. ښوره.

**شوربدل** (šuredál) مص. ل. چربدل، شربدل، شربدل، د اوبو یا نورو مایعاتو تویېدنگ.

**شور** (šur) صوت. نر.م. ۱)چر، شی، د مایعاتو د تویېدو اواز؛ ۲)غرپ، گوټ، شوپ، جرعه؛ ۳)نر.م.ص. نب. چوخړن، چوړن، چوړن.

**شوراتوت** (šoratút) نر.م. سوره توت؛ د شستي توت له کورنۍ څخه یو ډول توت دی.

**شورایي** (šorāyí) بېغ.م. کیپ، قیف، کیف.

**شورپور** (šurpúr) ص.نر.م.ج. ۱)تالولی، مردار؛ ۲)اشرم، شولو.

**شورتک** (šurták) نر.م. داسې توکر چې سست او شپل او پدل شوی وي.

**شورک** (šurk) نر.م. شوت، شت، سیخ، شیخ، چلتک، پرویښنه، شتکی کول.

شوړګی (šoṛgáy) نر.م ۱) اورنګ، هاونګ، هاون، چتو، وکلی؛ ۲) دشلومبو لوښی.

شوړول (šuṛawə́l) مص. مت. ۱) شړول، توېول، یو شي له دېرو پخولو یا مینځلو یا دېرو زړولو له امله شړول؛ ۲) د تېپ شړېدل، کالي شړېدل.

شوړه[1] (šóṛa) ښځ. م ۱) د چنولو توکر؛ ۲) ماشوره، خولپوتی؛ ۳) غته مږی، لویه خمڅه.

شوړه[2] (šúṛa) ښځ. م. ۱) دجوارو شنه؛ ۲) د باجړې وږی؛ ۳) ص. ښځ. م. هغه ستړګه چې اوبه او چوخښې کړي.

شوړهار (šuṛhā́r) صوت. نر.م. شوړهار، شرهار، شورکی، شرلو.

شوړېدل (šuṛedə́l) مص. ل. ۱) د ډېرو پخېدو یا پرېول کېدو یا زړېدو له امله توېېدل، شړېدل؛ ۲) شوړهار کول؛ ۳) د تېپ، لباس... شړېدل.

شوش (šoš) نر.م. ۱) وګ. ششک؛ ۲) مرغند، سکروټه، خوولن، شوشی.

شوشک (šošák) نر.م. وګ. ششک.

شوغ (šuğ) ص. نر.م. کږور، تپاټ، تاټ شوی، منحنی.

شوغېدل (šuğedə́l) مص.ل: ۱) سرغړېدل، دده پرده اوښتل، لرخ پر ارخ اوښتل.

شوغکه (šuğáka) ښځ. م. لشه، شکه، لمشه، د غنمو یا اوربشو د وږي لشه.

شوغول (šuğawə́l) مص. مت. کږول، تاتول، منحني کول.

شوغه (šuğá) ښځ. م. ۱) شغ و بهڼه، مکیږه و بېهتان؛ ۲) غدکه، چرغه، جوغه، لویه چینه، چکمنه.

شوغی (šuğáy) ص. نر.م. ۱) هغه پسه چې غوږونه یې سپین تکي ولري؛ ۲) کرسه.

شوغېدل (šuğedə́l) مص. ل. کږېدل، منحني کېدل.

شوق (šawq) نر.م ۱) تانت، غله، شله، میل، مینه، لېوالتیا، ذوق؛ ۲) تص. مفرط میل، انزعاج.

شوقدر (šawqadár) نر.م. وګ. شوکدر.

شوقمن (šawqmán) ص. نر.م.ج. لېوال، شوقي، ذوقمند، کازمن.

شوک[1] (šūk) مف. نر.م ۱) شکېدلی، پرېکړ شوی؛ ۲) لوڅ شوی، مال لوټ شوی، تري اخیستل شوی.

شوک[2] (šok) نر.م. ۱) بوور، ټک، شرق، جرک، ټکان، ضربه؛ ۳) د حیرانتیا په وخت کې د مغز یا احساساتو ناڅاپي پارېدنه.

شوکاره (šūkā́ra) ښځ. م. نوکاره، ټونګاره، شیکاره، شونګاره، ګروی.

شوکانی (šawkā́ṇay) نر.م. نرم، پرست او ټوی کانی چې له هغو څخه غېنی لوښي جوړوي.

شوک پوک (šūkpū́k) ه ن. نر.م. خیري ویري، خیري خیري، ریتاري ریتاري.

شوکت (šawkát) نر.م. برم، پرتم، لوکوب، شان، سامانه، شمشمه.

شوک ترایي (šoktrapi) ښځ. م. د شوک په وسیله معالجه، د شوک درمان، د عصبي تحریک په وسیله روغتیا اعاده کول.

شوکدر (šawkadár) نر.م. شبکدر، د قدر شپه، شب قدر، لیلة القدر، شوقدر.

شوکمار (šukmā́r) ص. نر.م. (ج. شوکماران) داره مار، شوکه کوونکی، لاري وهونکی.

شوکور (šawkór) ص. نر.م.ج. شبه ړوندی، شپړلندر، شپغلی، شبکور.

شوکول (šukawə́l) مص. مت ۱) شکول؛ ۲) رابېلول، راجلا کول؛ ۳) په لاره کې شکونه کول.

شوکه (šū́ka) ښځ. م. غلا، تېښتونه، لاره وهنه، له یو چا څخه په لاره کې په زور مال اخیستل.

**شوکي پوکي** (šükepüke) ص.نب.و ک. شرک پوک.

**شوکېدل** (šukedəl) مص. ل. و گ. شکېدل[1].

**شوګه** (šúga) ښځ. م. يو ډول وريجې.

**شوګير** (šawgír) نـر.م. خوب نه کول، شوګيره، شپه پر سر اخيستنه.

**شول[1]** (šwə́l) مص. ل. سول، کېدل.

**شول** (šul) ص. نر.م. سخت، کلک، ټينګ.

**شولپمبی** (šolpambáy) نر.م. شولمبی، پلاله، د شولو ميده وابښه، شول وابښه، پروره.

**شولتکی** (šoltákay) نر. م. شولک، شولګ، د بدن پوست، د وجود پوستکی.

**شولغ** (šoláx) نر.م. د ژبې زيږه برخه، د ژبې ټينګه حصه، د ژبې پاسنۍ برخه چې ټينګه وي.

**شولکه** (šolaka) ښځ. م. و ګ. ژوره[1].

**شولکی** (šolakáy) ښځ. م. يو ډول کوچنی بنيان، د نوي زېږېدلي ماشوم ورکوټی بنيان.

**شولګ[1]** (šolág) نر.م. ۱) شولک، د پوستکي لومړی طبقه؛ ۲) بوجی، بوری، ګونی، ګونی.

**شولګ[2]** (šulág) نـر.م. ژامـه، زامـه، د خولې ژامه.

**شولګره** (šolgára) ص. نب. شولګر، هغه ځمکه چې شولې په کې کرل شوې وي.

**شولمبکه** (šolambáka) ښځ.م. يـو ډول پلن بې دنډره بوټی دی چې پاڼې يې سپين رنګ لري.

**شولمپی** (šolampáy) نر.م. و ګ. شولپمبی.

**شولوابښه** (šolwáṣa) جن. پروره، ناړې، پـلاله، د شـولو دروزه، د شولو وابښه.

**شوله[1]** (šolá) ښځ. م. ۱) د وريجو بوټی، د شولې بوټی؛ ۲) جن. يو راز خواړه دي چې د پخو وريجو څخه پخېږي.

**شوله[2]** (šwála) ښځ. م ۱) د نس خرېکي؛ ۲) د ښاروږو د نوکانو پرې کـولـو آلـه؛ ۳) د قـولنج درد؛ ۵) د ښځې د وضع حمل درد.

**شولی** (šoláy) ص. نب. بېکاره او سسته ښځه.

**شولې** (šolé) ښځ. ج. د وريجو بوټي.

**شوم** (šūm) ص. نر.م. ج. (ج. شومان) ۱) کرتی، موزي، بخيـل؛ ۲) نحس؛ ۳) بدمرغه؛ ٤) مج. نهار، وږی.

**شوماشتي** (šomāšti) ښځ. م. زمـروړ د هېواد له ژبو څخه يوه ژبه ده. د ژوند تاتوبی يې کونړ دی.

**شومتيا** (šumtyā́) ښځ. م ۱) شوموالی، کنجوسي، بخيلي؛ ۲) مج. بدمرغي؛ ۳) نحوست.

**شومرې** (šumré) جن. و ګ؛ شرومبې.

**شومل** (šumə́l) مص. ل. شـومول، چېبل، ښېل، چکل، څکل، د مايعاتو غوړېل.

**شومله** (šomlá) ص. نب. زوړ او له کاره وتلې ښځه.

**شومول** (šumawə́l) مص. مت. و ګ. شومل.

**شومه** (šúma) ښځ. م. ۱) د مېږي غوښه؛ ۲) ديوه شي جـوهر و قوت؛ ۳) د مـړي د لومړي شپې يادګار پوره کېدو خيرات؛ ٤) د شپې يوه برخه؛ ٤) د يوې شپې خواړه؛ ٥) ديوه وخت زړی.

**شومه دم** (šūmadám) نر.م. نيمه شپه، پخه شپه.

**شومه نيول** (šumaniwə́l) مص. ل. (پ. ک.) له ورځې څخه لاس نيول؛ شوکسه د ننواتي په توګه د هغه چا کره ورځي چې د ورو سپېدلی زيان د غچ لپاره هيڅ جوړې ته نه حاضرېږي، په دغه وخت کې نوله ډوډۍ څخه لاس نيسي چې د کور خاوند د دوی غوښتنه ومني.

**شومی** (šúmay) نر.م. غرب، ګوټ، شوب.

**شومي** (šūmí) ښځ.م. ۱) شوموالی، شومتيا؛ ۲) نحوست؛ ۳) لوږه؛ ٤) کمزورتيا.

**شونتی** (šontáy) نبغ. م. بیهزبی، بیوزه، دروکی، پهلوشی، چراغ چوب؛ ۲) ص. نبغ. م. شوتی، هغه نبغه چې په بوره لاس کړه وي.

**شونډ** (šūnḍ) جن. ۱) وګ. زنجبیل؛ ۲) نسر.م. شونډه، سونډه.

**شونډا** (šunḍá) ص. نب. شونډور، شنډور، کنډا، شونډور، غټ شونډی.

**شونډان** (šunḍán) نسر.ج. شونډي، سونډي، د (شونډه) جمع.

**شونډک** (šundák) نر.م (ج. شونډکونه) وریوز؛ د شونډو لاندینی برخه چې زنه هم په کې راځي.

**شونډکی** (šūndakay) ص. نسر.م. بډرنګه، بې شهري، د بډرنګي بنې شخص.

**شونډکیزچرګ** (šundakizčárg) نر.م. پیل مرغ، خرتبی چرګ، فیل مرغ.

**شونډو** (šudu) ص. نب. وګ. شونډا.

**شونډوخاني** (šunduxānī) نر.ج. ص. نب. وګ. شنهوخاني.

**شونډه** (šūnḍa) نبغ.م. (ج.شونډي) شنده، سونډه، د خولې بهاندینۍ برخه چې دوې برخې لري.

**شونډه وتل** (šunḍawatál) مص. ل. پرشونډه باندې ولړه ولړه بخارونه راختل.

**شونډیز** (šundíz) ص. نسر.م.ج. د شونډي، په شونډه لروند – شونډیز غږ (ب. پ).

**شونکی** (šūnkay) نسر.م. کبهوتی، کبهونکی، شونی، ممکن.

**شونګوره** (sūngóra) نبغ. م. شونګه، هغه بهوی چې بوره شنده یې نه وي.

**شونګن** (šūngún) رګ. شګون.

**شونګه** (šūnga) نبغ. م. هغه سپنسته چې بوره شنده یې نه وي.

**شونه** (šwána) نبغ. م. کښته.

**شونی** (šúnay) مف. نر.م. شونکی، کبهونکی، کبهونی، ممکن.

**شوو** (šwū) نبغ. م. پناه ورکونګ، پناه.

**شووینیزم** (šowinízam) نر.م. په وطنپالنه کې تعصب، افراطي وطنپالنه.

**شوه** (šáwa) نبغ. م ۱) د شیشم ونه؛ ۲) ص. نب. ق. کښته خور، شپوه؛ ۳) عجز، انکسار.

**شوه توب** (šawátob) نر.م. خورتوب، خوږوالی.

**شوه کیدل** (šawákedál) مص. مت. ۱) شپوه کېدل، پیکسته تلل؛ ۲) مبع. له جګړې څخه لاس اخیستل، عجز بیکاره کول.

**شوی** (šáway) مف. نسر.م. سپینه شوې خاماتا، سپینه شوي بیستي.

**شوې** (šáwe) نبغ. ج. نیم، بوره ونه ده چې پوستکی او پاڼې یې تریخ خوند لري.

**شه** (ša) ف. ۱) شو، سو، کېده، استمراري ماضي؛ ۲) سه، د مخاطب مفرد صیغه ده – ورک شه.

**شها** (šahā) نبغ. م. شهی، معشوقه، محبوبه.

**شهاب** (š(a,i)hāb) نسر.م. ۱) لمبه، داورلمبه؛ ۲) ستوری، روښانه ستوری.

**شهاب ثاقب** (šahābusāqib) نسر.م. اسماني ډبري، اسماني تیږي، شهاب، میتور.

**شهادت** (šahādát) نسر.م. ۱) شاهدي ورکونه، ګواهي ورکول؛ ۲) ل.م. حضور، معاینه، اطلاع؛ ۳) شهیدېدنه؛ ٤) څرګندېدنه.

**شهادت نامه** (šahādatnāmá) نبغ. م. ۱) برې لیک، د پیلوم، د پلومه؛ ۲) تصدیق؛ ۳) شهادت لیک، شهادت پاڼه.

**شهامت** (šahāmát) نر.م. ۱) مېړانه، غیرت، زوروتوب؛ ۲) لويي، ستر توب؛ ۳) لخېرکي.

**شهانه** (šahānā́) ص. نب. د شاه، شاهي، شاهانه.

**شهباز** (šahbā́z) نـر.م. ۱) لوسپين غټ باز، يو ښکاري باز؛ ۲) مو. و گ. زخمه.

**شهد** (šahd) جن. و گ. شات.

**شهرت** (šuhrát) نر.م. ۱) مشهوريدنه؛ ۲) ښکاره کېدنه، خبرګندېدنه، جوتېدنه؛ ۳) سوانح، پېژندنه.

**شهريار** (šahryā́r) نر.م ۱) د ښار مشر؛ ۲) پاسوال، تولواک، پاچا.

**شهزاده** (šahzādá) نر.م. و گ. شازاده.

**شهسوار** (šahswā́r) ص. نـر.م. شا سوار، د اس د سپرلۍ ماهر.

**شهکار** (šahkā́r) نر.م. و گ. شاهکار.

**شهلا** (šahlā́) ص. ښځ. م. ۱) تکې توري ښايسته سترګې (ښځه)؛ ۲) شين ويره سترګې؛ ۳) يو دول نرګس.

**شهنايي** (šahnāyí) ښځ. م. مو. شاهنايي، شهنا؛ «سورنا».، د موسيقۍ يوه لرګينه آله ده.

**شهند** (šahánd) نر.م. و گ. شند.

**شهو** (šahó) ښځ. م. ۱) شها، شهۍ، معشوقه؛ ۲) شهۍ، ددلي مينه (معشوقه).

**شهوت** (šahwát) نر.م. ۱) مني؛ ۲) جماع ته زړه کېدل؛ ۳) د لذت د درک ميل.

**شهود** (šuhū́d) نر.م ۱) حاضريدنه؛ ۲) ع. مشاهده؛ ۳) شاهدېدل، د شي ليدل.

**شهيد** (šahíd) ص. نـر.م. ۱) د خدای په لاره کې مړ؛ ۲) حاضر، شاهد.

**شهين** (šahín) نر. م. ۱) و گ. شند؛ ۲) د يوه ساز نوم دی.

**شی** (šay) نر.م. (ج. شيان) ۱) مال، متاع؛ ۲) څه، څيز؛ ۳) (فل.) پديده.

**شي** (ši) ف. مرستيال فعل دی چې په حال، استمراري او راتلونکي زمانه کې استعماليږي، د امر صيغه ده.

**شياخه** (syāja) ښځ. م. شاخه، شازه، د تيږې تيې، دکاني تيې، پلنه تيږه.

**شېبره** (šebára) ښځ. م. وچکۍ، لويه تبه، خواځي توره تبه، محرقه (تبه).

**شيبره** (šibára) ښځ. م. اساني، سهولت.

**شېبه** (šebá) ښځ. م. ۱) لحظه، دم، آن، لږ وخت؛ ۲) ترله، تروه، د باران شېبه.

**شيبه** (šíba) ښځ. م. يو دول کچه مرغلره (مرغچي) ده.

**شېبه ګری** (šebagaráy) د رنګ شېبه، د رنګ ساعت، لږ ساعت، څه وخت.

**شيت** (šit) ص. نـر.م.ج. ۱) څخيټ، چيت پيت؛ ۲) مراوی، شيته، جينګ.

**شيتان خوت** (šaytānxwā́t) نـر.م. کولولو، د مټ شيطان، يو دول خزنده ده؛ ۲) د ماشومانو يو دول لوبه ده.

**شيت په شيت** (šitpašít) ص. نـر.م.ج. شـويه شو، خپور ور، تيت و پاشان.

**شيتر** (šitár) نر.م. څيرر‌خت، شلل رخت.

**شيته** (šíta) ص. ښځ. م ۱) د شيت مؤنث؛ ۲) د يوې مرغۍ نوم دی؛ ۳) يو يه شوی ښځه.

**شيته خوله** (šitaxwlá) ښځ.م. جينګه خوله، وينه خوله، ويره خوله.

**شېتی** (šetáy) ښځ. م. ۱) شتی، تويری؛ ۲) تيره او سپنه چې د تبر په سر لګول کېږي؛ ۳) توکه، پرپری؛ ٤) د لرګي تيلی.

**شيته** (šitá) ښځ. م. شوته جوار د شخرلو سره جوار، د جوارو هغه غوټۍ چې پتونه ولري.

**شیخ** (š(e,ay)x) ص. نر.م. ۱) سپین ږیری، بوډا؛ ۲) مرشد، پیر؛ ٤) مسلمان شوی هندو.

**شیخ چلي** (šexčalí) نر.م. یو افسانوي شوده دی چې نوم یې د کوزې پښتونخوا او هند په شعرونو متلونو او کیسو کې ډېر اخیستل کېږي.

**شېخډو** (šexdáw) نر.م. شخه دو. شیشو. شیشی، بڅخک، چیچړ. یو ډول مرغی ده.

**شېخي** (šxí) ښځ. م ۱) سپین ږیرتیا، بوډاتوب، زړښت؛ ۲) مرشدي، پیري؛ ۳) زهد، تقوا.

**شېخي** (šayxáy) نر. م. د پښتونو یوه ناروغي ده.

**شیدا** (šaydā) ص. نب. ۱) مین، عاشق؛ ۲) ع. د جذباتو اهل.

**شیدانکه** (šidánka) ښځ.م. یو ډول نبات دی.

**شیدې** (šidé) جن. شودې، پی، شوده، لبن.

**شیدې وغوړي** (šidewuǧwaṛí) جن. (ښځ.) یو ډول خواږه دي.

**شېډ** (šeḍ) نر.م. (ج. شېډونه) شېټ، استر، پوښ، دویم استر.

**شېرازه** (šerāza) ښځ. م. ۱) د کلا لـه دېـواله چاپېره راتاو شـوی بل دېـوال؛ ۲) ص. نب. ښېرازه، سمسور؛ ۳) جن. چکه، د تروو چکه.

**شېراک** (šerák) نر.م. تلتک، برستن، شېرک.

**شیرالپ** (širālap) نر.م. یو ډول نبات دی چې ژېړ ګل لري.

**شیرچای** (širčáy) جن. توري، د شیدو چای.

**شیرچایي** (širčāyí) ص. نب. نر.ښځ. م.ج. له سرو رنګو شخه یو ډول رنګ دی.

**شېرخت** (šerxát) نر.م. شېرخط، شېر و خط، د شرط تړلو او قمار یوه وسیله ده.

**شېرخوله** (šerxwála) ښځ. م. یو ډول شین بوټی دی چې ژېړ ګلان کوي.

**شیرخښت** (širxéšt) جن. شیرخشت، زمرود هـواد د طبي نباتاتو یو محصول دی.

**شیردان** (širdán) نـر.م. ۱) چوبه، تولی، شرخه، مجـوکه، یوه آلـه ده چې په اودان، پوتـل او لـ پورې تېيتي وي؛ ۲) المورئ، د ماشومانو یو ډول ناروغي ده.

**شېرشاو** (šeršáw) نر.م. کنډه، کمکی تله، کوچنی ترازو، وړه تله.

**شیرشیرک** (širširák) نـر.م. جهېزلره او مرغه لرونکي څمکه.

**شېرک** (šerák) نر.م ۱) وګ. شېراک؛ ۲) شرک، کلاتکار، شیغنکی.

**شیرک** (širák) نر.م. پی شوده، شیرګی، شیرګی، د جـوارو هغه وږی چې دانه یې کلکه شـوي نه وي.

**شیرکارل** (širkārál) مص.مت. ۱) اوشکي کول، بېکارل، توش کول؛ ۲) مج. لمسول.

**شیرکټي** (širkaṭáy) ښځ. م. هغه غوا چې کال وسر (تول کال) شیدې کوي.

**شیرکښ** (širkáṣ) جن. یو څه خمیره شوي اوړه په اوبـه کې مښي چې لږ پاتې شي او یو ډول ژاوله پیدا کړي بیا په زخم یا د پښو په چاودو وږدي.

**شېـرکه** (šeráka) ښځ. م. وګ. ښارو.

**شېـرکی** (šerakáy) ص.نر.م. ۱) زمروتی، زړورا؛ ۲) د شېر مصغر شکل.

**شیـرګرم** (širgáram) ص. نر.م. ج. شیرګرمه، ترم ترمن، تودوکی، تمنی، تومنی.

**شېـرګنی** (šerganáy) نر.م. چته، د مچیو کندو، د مچیو غاله، د مچیو ګری، شګیرګینی.

**شیرماهي** (širmāhí) نـر.م. ۱) اصیل ماهي، یو ډول غټ کب دی؛ ۲) یو ډول صدف دی.

**شیرواړ** (širwā́r) نر.م. پی‌وار، څو کورونه شپه‌ دي سره یوځای کړي، مستقیم یې په ګډه سره شاربي او کرچ یې په‌ولر اخلي.

**شیرواری** (širwānáy) ښځ.م. ۱) دلرګي څمڅې پاکوندی چې کرچ وربانديې له شلومبو څخه راغونډوي؛ ۲) دمستو کټوه.

**شیروانی** (širwānáy) ښځ.م. دکرتي ډېم د پاسه له لرګو څخه یوبېل جوړوي په‌سر یې خته اچوي، په‌دي وسیلې سره د اوبو مخه نیسي.

**شیرواني** (širwānī́) ښځ.م. دنوي زېږېدلي ماشوم چینه.

**شیروشکر** (širušakár) نر.م.وګ. ذولسانین.

**شیره** (širá) ص. نر.م.ج. ۱) پر: ، اېلوچ، نابالغه هلک؛ ۲) ورې، رودونکی . ر.ب؛ ۳) عصاره، جوس، د میوې اوبه، څوږ؛ ۴) خرېړی؛ ۵) ساده‌لیتی، اتوب.

**شیری** (šíray) نر.م. د ګنډني په‌شپېر یو دول بوټی دی چې خوږ خوند لري او خوړل کېږي.

**شهری** (šeráy) نر.م. وګ. شري.

**شهری** (šeráy) ښځ. م. ج. وګ. شاری.

**شهرين** (šerín) ص. نر.م. ج. وګ. خوږ(۲).

**شهرين بویه** (šerínboyá) ښځ. م. وګ. خوږه‌وله.

**شیرینکه** (širináka) ښځ. م. وګ. څوانکه.

**شهریني** (šerinī́) ښځ. م. (ج. شهریني) ۱) خوږه، خواږه؛ ۲) زېږېي پډله؛ ۳) شهریني خوري، لاس نیوی؛ ۴) خوږوالی.

**شهریني باب** (šerinibā́b) نر.ج. خواږه، خواږه شیان، ټول هغه شیان چې خواږه وي.

**شهېر** (šer) ص. نر.م. وګ. شور(۲).

**شهرا** (šerā́) ص. نب. ذوغر، څوک چې په یوه مترګه روند وي.

**شیزوفرني** (šizofrenī́) ښځ. م. (رو.) شیزوفرینیا، دروح یا شخصیت د تجزیې ناجوړي، د ځواني جنون، یوه اروایي ناروغي ده.

**شیزوګوني** (šizogonī́) ص. نب. (بیا.) شایزوګوني، غیرزوجي څانګړې مضاعف انقسام دی.

**شیست** (šist) نر.م. یوه کرېستالیني ډبره ده چې په اسانۍ سره پرده پرده کېږي.

**شیشپېر** (šišpér) نر.م. ۱) مج.غړانګه، دقهر ناره؛ ۲) مېخ لرونکی سوټی.

**شیشتی** (šištáy) نر.م. شپشتی، د څرخ پره، برونی، لکه د ژرندې د څرخ پرې.

**شیشر** (šišár) ص. نر.م. ۱) بې حیا، بې شرمه، چیچړ؛ ۲) نر.م.چوړو، شیشو، شپخدو، یو دول مرغی ده.

**شیشک** (šišák) نر.م.ششک، درشیل، دوشیرل، پیشرلی، دري کلن پسه.

**شیشکه** (šišáka) ښځ. م. ۱) روږ، لرسابې، بلا؛ ۲) لبته، شتکه؛ ۳) دتفر نری نری کرښې.

**شیشګی** (šišgáy) نر.م. جبېزګی. شیژګی، شکون ته ورته یو کوچنی تي لرونکی او حشره خوړونکی ژوی دی پزه یې اوږده، لاسونه او پښې یې لنډ دي.

**شیشګی مار** (šišgaymā́r) نر.م. تورمار.

**شیشن** (šišə́n) نر.م. چېشنکی، اوله، لیری، نوی زېږېدلی وری، وری چې شودې رودي.

**شیشم** (šišə́m) نر.م. وګ. شوه(۱).

**شیشنل** (šišnál) مص. مت. وګ. ششنل.

**شیشني** (šišnáy) نر.م. ششنا، د آس شیشنا، د آس جګ او څانګړی اواز.

**شیشو** ([illegible]) نر.م. وګ. شیشر(۲).

**شیشه** (šiša) ښځ. م. و گ. ښیښه.

**شیشی** (šišáy) نر.م. شیشنار، سسی، لگوړنی، یو بوټی دی چې د اور بلولو لپاره کارېږي.

**شیطان** (šaytán) ص. نر.م. ج. (ج. شیطانان) د غټ دیو، ابلیس: ۱) د اسلام له نظره شیطان یو پېري دی چې له اوره پیدا شوی دی. ۲) مج. چوغلگر: ۳) شوخ، ورانکاری.

**شیکی** (šikáy) نر.م. یو ډول زهرجن بوټی دی.

**شیگره** (šigará) ښځ. م. ۱) باران: ۲) تېز باران، د باران تېزه شېبه.

**شیگړه** (šigára) ص. ښځ. م. شیگاره، شنگره، متېزه، له خپل مېړه څخه تېښتېدلې ښځه.

**شیل** (šil) نر.م. ج. ۱) یوه رسوبي ډبره ده: ۲) د باندې کلک پوښ: ۳) گوجې: ٤) گولی.

**شېلاوه** (šelāwá) ښځ. م. یو ډول خبرونه ده چې په ټوله ځمکه باندې یو شان اورېدل کېږي.

**شېله** (šelá) ښځ. م. ۱) خوړ، لگۍ: ۲) دسترگو په گونجو کې کښته.

**شیله پینگ** (šilapíng) ص. نر.م. ج. گوښې، گوښه، له خلکو جلا، ښځې ته.

**شېلی** (šeláy) نر.م. له سپین او تور رنگ څخه یو مرکب رنگ دی.

**شیمي** (šimí) ښځ. م. و گ. کیمیا.

**شین** (šin) ص. نر.م. (ج. شنه) ۱) یو رنگ دی: ۲) و گ. زرغون ۲): ٤) راټوکېدلی، زرغون شوی، راشین شوی.

**شین امي** (šinamí) ص. نر.م. نالوستی، بېسواده، بالکل امي.

**شین پاڼی** (šinpāṇay) نر.م. نیلوفر، د نیلوفر گل، یو ډول بوټی دی چې غټ گل کوي.

**شین پوزی** (šinpozáy) نر.م. گلټی توپک.

**شین تتی** (šintatáy) نر.م. و گ. شمشتی.

**شین تړی** (šintaṛáy) نر. م. یو ډول بلبل دی.

**شین توپکه** (šintopáka) ښځ. م. و گ. شدوړی.

**شین توپۍ** (šintopəy) ښځ. م. و گ. شدوړی.

**شین تاغ** (šintāǵ) نر.م. شین تغی، شین تغ، شین تاغی، یو مرغه دی.

**شینجاوی** (šingjāwáy) نر.م. شین وزمه، مراوې ونه، مراوی بوټی، جینگ بوټی، شیته بوټی.

**شینجکی** (šinjakáy) ښځ. م. و گ. دمل.

**شین چغزی** (šinčaǵzáy) ښځ. م. پسته، غرنی مېوه ده.

**شین چمبی** (šinčambáy) نر.م. چمبوری، رنگریز، نگریز (و گ. رنگریز).

**شین خوټی** (šinxóṭay) نر.م. شین تغ، یو مرغه دی چې په درې یې نیله زاغ بولي.

**شین خورکه** (šinxwaráka) ښځ. و گ. شرمښکی

**شیند** (šind) نر.م. و گ. شند.

**شیندکه** (šindáka) ښځ. م. گاټې، واړه واړه گاټې چې هلکان پرې لوبې کوي.

**شیندل** (šindál) نر.ج. ۱) دښار وېو تر پښو لاندې لامده خوشايي: ۲) مج. بولې، متیازې، ادرار: ۳) مصیبت. نوستل، ښندل، خپرول.

**شیندونی** (šindúnay) نر.م. ۱) د شیندلو آله: ۲) ص. نر.م. بدخرڅه، مسرف.

**شینده** (šindá) نر.ج. نوسته، شنته، ښنده.

**شیندی** (šindáy) نر.م. ۱) یو ډول غرنی ولبنه دی ۲) د حیواناتو دانې: ۳) و گ. رېدی.

**شین ډولی** (šinḍáwlay) نر.م. مراوی فصل، جینگ او شیته فصل.

**شینډۍ** (šinḍáy) ښځ. م. کراو، ریږ، کراک.

**شین زمری** (šinzmaráy) ص. نــــر.م. زړور، دلاور، تکړه او چمتو.

**شین ږیری** (šinžíray) ص. نر.م. کـمبربښتی، چې ږیره یې سپین او تور ویښتان ولري.

**شین سترګی** (šinstárgay) ص. نر.م. شـینی، شینو، د شنو سترګو خاوند.

**شین سری** (šinsáray) ص. نــــر.م. هغه وریجې ویښتان لرونکی.

**شین سرې** (šinsáre) ښځ.م. ۱) یو ډول شنه توبې ده؛ ۲) آسونه، یو ډول هیلۍ ده؛ ۳) ص. ښځ. م. د شین سری مؤنث.

**شین سورخی** (šinsurxáy) نــر. م. ۱) شین بخن رنګ، شین ویره؛ ۲) یو ډول آس دی.

**شینشوبی** (šinšóbay) نــر .م. صــارایي ویلنی، وحشي پودینه.

**شین غاړی** (šingáṛay) نر.م. رناګی، یوه خـېره مرغۍ ده چې نسبتاً غټه او شنه غاړه لري.

**شین غټ** (šingáṭ) نـــر.م. نیمه پخـه غـله، کچه غله.

**شین غټه** (šingáṭa) ښځ. م. پلوه ګـوته، بوتنه، لاکولکړه، چوخلی، دشهادت ګوته.

**شین غزی** (šingázay) نر.م. د غز یو ډول ونه ده چې پاڼې نه غورځوي.

**شین غوډه** (šingóḍa) ښـځ. م. تیتاري، یـو ډول مرغۍ ده.

**شین غولانځی** (šingolānʒay) نسر.م. دوزو، مـېږو یو ډول ناروغي ده.

**شین کڅ** (šinkáṣ) نـــر.م. یو ډول ر ګ لـــرونکي تیږه ده. له دې تیږې نه مردکي هم جوړوي.

**شینکلی** (šinkalay) ښځ.م. شـتکه، شـیشکه، شنه لبنته.

**شین کوړم** (šinkwaṛám) نر.م. شـین ونډ، د اوبو ځلیر، تالاو، د اوبو ونډ.

**شین کوژی** (šinkóžay) نر.م. د یوې مـرغۍ نوم دی.

**شین کوسی** (šinkósay) نر.م. ۱) ترکوترې غټ یو ډول مرغه دی؛ ۲) یو ډول شنه مرۍ ده.

**شین کومکه** (šinkumáka) ښځ. م. شین کـومه، سارانۍ کوتره، شنه کوتره، ولغه.

**شینکی** (šinkáy) نر.م. ۱) خـام ختکی؛ ۲) شنه وابنه؛ ۳) ارنګه خاوري.

**شینکۍ** (šinkə́y) ښځ.م. خاوري، کنډول، خاورینه کاسه.

**شینکی ماهی** (šinkaymāháy) نر.م. یو ډول شین ښکلی کب دی.

**شینګټی** (šingaṭáy) ښـځ. م. شـینغتی، شـنه خټل، ارمه مېوه.

**شینګړۍ** (šingṛə́y) ښځ.م. برج، انباري، اتـارس، تاری، ګړی، بورجل، مربع شکله برج.

**شینګړو پینګړو** (šingṛópingṛó) ص. نسب. شړانګې ورانګې، شاړې واړې، شړم ړم.

**شینګړه** (šingáṛa) ص. ښځ. م. شیګړه، شنګړه، شـینګړی، متېزه؛ ۱) هغه صـېرو ښـه چې لـه مـېره خـفـه وتښتي؛ ۲) هغه نجـلۍ چې تر واده د مـخـه پـه خپل مـېره یـا بل چـا پـسې وتښتي.

**شینګړی** (šingaṛáy) ص.ښځ.م. و ګ. شینګړه.

**شینګلی** (šingwáray) نر.م. ۱) شین ګل، یو ډول مضر بوټی دی؛ ۲) داوبو غولانځه، یو ډول خود بوټی دی چې شین ګل لري.

**شینګی** (šingáy) نر.م. پابو، تټو یا هغـه اس چې د سپرلی نه وي او بارونه پرې وړل کېږي.

**شینلی** (šinuláy) نر.م. شنیلی، تازګی، شنه او تازه وابه یا ګیاه.

**شین منځی** (šinmúnǰay) ص. نر.م. شین مغزی، یو ډول ختکی دی چې منځ یې شین وي.

**شینو** (šinó) ص. نر.م. شین سترګی.

**شینوالی** (šinwā́lay) نر.م. شین رنګ لرنه، کبود؛ د بدن پوستکی چې ضربه ووینی.

**شین وېره** (šinwábra) ص.نر.م.ج. شین بخن، شین وشمه، شین ورګی، شین رنګه.

**شینوبی** (šinóbay) نر. بنځ: م. شناوې، نری شلومبې.

**شین ورګی** (šinwárgay) ص.نر.م. ۱) وګ. شین وېره؛ ۲) هغه حیوان چې شین پوستکی ولري.

**شینولی** (šinwálay) نر.م. نیله، یو ډول چنار دی.

**شینی** (šínay) نر.م. ۱) شونی، یوه خزنده ده چې د پسونو او چرګانو په پوستکي کې پیدا کېږي؛ ۲) وچن، خسمار؛ ۳) شینو، شین سترګی.

**شینېدل** (šinedál) مص. ل. شین کېدل، تورکېدل، زرغونېدل.

**شېوا** (šewá) ص. نب. روان، فصیح، بلیغ، بې تعقیده، رسا.

**شېوه** (šewá) بنځ. م. ۱) لاره، طریقه، روش؛ ۲) ناز، مکېز، کرشمه؛ ۳) ص. نب. کښته، خور، مایل؛ ٤) وګ. بنیوه ۲).

**شېوه کېدل** (šewakedál) مص. مت. وګ. شوه کېدل.

**شیین** (šayín) نر.م. وګ. شند.

# ښ

ښ (ṣin,ṣe) نر.م .ښځ. م.د پښتو الفبې شلرویشتم توری دی . په پېښور ، ننګرهار او پکتیا کې په «خ» او په کندهار کې په یوه ځانګړي بڼ او مخرج سره چې د «ش» له مخرجه پرته او تر هغه پورته ادا کېږي.

ښاپېرک (ṣāperák) نر.م. و ګ. شوپرک.

ښاپېری(ṣāperáy) نر.م(ج. ښاپېري) ۱)شاپېری ۲)ص. نر.م. (مج.) ښکلی ، ښایسته.

ښاپېرۍ (ṣāperə́y) ښځ. م. شاپېرۍ؛ د ښاپېری مؤنث شکل ، یو افسانوي خیالي موجود دی.

ښاڅه (ṣāǰá) ښځ. م. و ګ. شاڅه.

ښاڅ (ṣāc) نر.م. غرور ، لویي ، کبر.

ښاڅل (ṣācál) نر.م. ویاړل ،نازېدل ، فخر کول.

ښاڅمن (ṣācmán) نر.م. ویاړن ، پېسمن ، مغرور .

ښاڅېدل (ṣācedál)مص. ل. نازېدل ؛ لویي کول؛ په خپلو شتو نازېدل او مغرورېدل.

ښاخ (ṣāx) نر.م. (ج. ښاخونه) ۱) ښېلی ، ښورنګ، خونګ؛ ۲) د نسب سلسله.

ښاخدار (ṣāxdā́r)ص.نر.م ۱) ښاخ لرونکی ، ښاخور ځانګور؛ ۲) ښکرور؛ ۳) مج.غټ ، لوی ، قوي.

ښاخک (ṣāxák) نر.م. ښکر ، شاخک ، د کورني طبي علاج یوه وسیله ، ،.

ښاخلن (ṣāxlán) نر.م. ج. و ګ. ښاخدار .

ښاخله(ṣāxlá) ښځ. م(ج. ښاخلې) ترکې ، میږکی ، ښلانګه؛ وروکې ځانګه.

ښاخور (ṣāxawár) نر.م. ج. و ګ. ښاخدار .

ښاخه (ṣāxá) ښځ. م. روګی ، ښېره لاره ، ښېره واټ ، کولی ، بادلی ، نری لاره ، د پلو لاره.

ښاخۍ (ṣāxə́y) ښځ. م. شاخۍ ، سکو ، د درمند لو پورسو بادولو یوه آله ده.

ښاد (ṣād) ص.نر.م.ج. ۱)خوښ ،خوشحال ،خوشاله؛ ۲) بریالی ، موفق.

**ښادمن** (sādmán) ص. نر.م. ج. ۱) ښاد شوی، خوشال، خوښ؛ ۲) بریالی، موفق.

**ښادنامه** (sādnāmá) ښځ. م. د خوښی ښکاره کولو یاد پوه چاد هرکلي له امله د تویک ډزې کول.

**ښادول** (sādawúl) مص. مت ۱) خوښول، خوشالول، خوشحالول؛ ۲) خیر رسول.

**ښادي** (sādí) ښځ. م. خوښي، خوشالي؛ ښادیانه، د خوښیو مراسم.

**ښادیانه** (sādyāná) ښځ. م. خوښي، ښادي، خوشالي ښادنامه.

**ښادېدل** (sādedál) مص. ل. ۱) خوشاله کېدل، خوښېدل؛ ۲) خیر وګټه رسېدل.

**ښادېدنګ** (sādedáng) نر.م. و ګ. ښادېدنه.

**ښار** (sār) نر.م. (ج. ښارونه) شهر؛ د انساني ټولنو داوسېدو ځای چې آبادي، کورنه سرایونه، پوهنتون تیاترونه او داسې نور ولري.

**ښارک** (sārák) نر.م. ۱) د لرګي یوه وړه ټوټه ده چې د مېچنې تیرک پکې ګرځي؛ ۲) ښارګوټی.

**ښارکوټ** (sārkót) نر.م. د ښار جنګي کلا، بالاحصار.

**ښارګ** (sāráǵ) نر.م. ښمرګی، ښارګی، شارګ، شهرګ، ورید، د مرۍ غټ رګ.

**ښارګوټی** (sārgóṭay) نر.م. ووکی ښار، کوچنی ښار، ورکوټی ښار، ښارک، ښارګی.

**ښارګي** (sārgí) ص.نب. وارخطا، تلولی، پرېشانه، له وېرې ببوږه کېدل.

**ښارګی** (sār gáy) نر.م. و ګ. ښارګوټی.

**ښارمېشتی** (sārmeśtay) ښاري، د ښار اوسېدونکی.

**ښارمېشتي** (sārmeśti) ښاریتوب، ښاري استوګنه، ښاري ژوند.

**ښارو** (sārú) ښځ.م. (ج. ښاروګانې) شارو، مېنا، مېنکه، یو تور مرغه دی چې وینا هم کوي.

**ښاروال** (sārwā́l) ص.نر.م. ۱) د ښاروالي یا بلدیې رئیس، د ښاري چارو د سمبالولو موظف مشر؛ ۲) ص.نر.م.ج. ښاري، د ښار، په ښار اړوند.

**ښاروالي** (sārwālí) ښځ. م. بلدیه، د ښاري چارو د تنظیم او د ښاریانو د هوساینې د وسایلو د برابرولو یوه موسسه ده.

**ښاروګی** (sārogáy) ښځ. م. د ښارو مصغره بڼه.

**ښاره** (sārá) ښځ. م. ۱) ښار غونډې لوی کلی؛ ۲) اشاره، زونګه، رمز.

**ښاري** (sārí) ص. نب. ۱) د ښار، په ښار اړوند؛ ۲) د ښار اوسېدونکی؛ ۳) متمدن، مهذب.

**ښاغېپ** (sāgáp) ص. نر.م. سراېښ، الوی، سولن، روسترګی، اړوا ووی.

**ښاغل** (sāgál) مص. مت. ۱) ښایسته کول، ښکلی کول؛ ۲) ښه ګڼل؛ ۳) چنول، غوره کول.

**ښاغلتوب** (sāgaltób) نر.م. ۱) ښاغلتیا، محترموالی؛ ۲) ښایست، ښکلا.

**ښاغلی** (sāgálay) ص.نر.م ۱) ښه مېړه، پتیالی، محترم، عزتمند؛ ۲) ستایل شوی؛ ۳) ښکلی، ښایسته.

**ښالمه** (sā́lma) ښځ. م. غاز، پای، خالمه، شیمه، د اورو سربېنې.

**ښالنګ** (salang) ص.نر.م ۱) کچل، کبی، کچل؛ ۲) بوخت، لګیا، اخته.

**ښالیز** (sālíz) ص.نر.م. ښالیز، ښېرازه، سمسور.

**ښالیزي** (sālizí) ښځ. م ۱) ښېرازي، سمسورتیا؛ ۲) اوبلن، اوبلنتیا.

**ښامار** (sāmā́r) نر.م. (ج. ښاماران) لوی مار، سترمنګور.

ښانده (ṣ̌āndá) ښځ. م. ۱) پېژندنه، پېژندګلوي، پلټنيا، معرفت؛ ۲) الړه، تراو؛ ۳) ن ر. ج. ښنل، ښنده، شنده، نوسته، ښتنه.

ښانک (ṣ̌anák) نر. م. ښنک، خانک، ښانکی، يو دول لرګين پلن و اولږ لري لوښي.

ښانکی (ṣ̌ankáy) نر. م ۱) ښنکی، وروکی ښانک ۲) هغه وړوکی چې دواړه په سپا د نجلی د تولی پلرګنی له خوا د هلک کورته ورلېږل کېږي.

ښانګر (ṣ̌angár) نر. م. شانګه، اښنګر، ښنګر، ښانګر؛ د پېښي د تلي خارښتېدل.

ښانګور (ṣ̌angawár) ص. نر. م. ج. ښانګه ور، هغه انسان يا حشره چې اوږدې پښې لري.

ښانګورمېږی (ṣ̌angawarmeẓáy) نر. م. ښانګه ورمېږی، يو دول اوږد پښيزی مېږی دی.

ښانګه (ṣ̌ánga) ښځ. م. ۱) د پښې له ښنګري ښخه تر کوناتو پورې برخه؛ ۲) د ژي ښانګه.

ښانګی (ṣ̌angíy) ښځ. م. ښاخی سکو، شانګی.

ښاوات (ṣ̌awát) نر. م. يوه کولبه شمکه، يوه اندازه شمکه، يوه قلبه شمکه.

ښاول (ṣ̌awál) نر. م. شاول.

ښاوندی (ṣ̌awandáy) نر. م. سرورخ، وتی، د اوبو سربند.

ښايست (ṣ̌ayást) نر. م. ښکلا، حسن، ډول، ښائيست توب، ښايسته والي.

ښايستوکی (ṣ̌ayastukáy) ص. نر. م. ۱) ډېر ښکلی، ګلالی؛ ۲) د ښايسته مصغر.

ښايسته (ṣ̌ayastá) ص. نب. نر. ښځ. م. ښکلی، اغلي، ډولي، حسين (تع.) و ګ. ښکلی.

ښايه (ṣ̌áya) ف. ۱) ښيه، ښوده، وايه، ورښوده، ورزده کاوه؛ ۲) ورښيه، ورزده کړه.

ښايي (ṣ̌áyi) ف. ۱) په کار ده، مناسبه ده، لازمه ده ۲) شايد، احتمالاً، ممکنه ده؛ ۳) ف. ورښيي، ښيي، ورزده کوي، د مفرد غايب صيغه ده.

ښايېدل (ṣ̌ayedál) مص. ل. لازمېدل، مناسبېدل، موزونېدل.

ښپ (ṣ̌ap) ص. نر. م. کنپاس، کرشوپ، غابي وتلي، کنډول.

ښپېته (ṣ̌peṭa) ښځ. م. پانه کونده، کاره، خسپني، پليګده، پانه کونده، يو دول جزا ده.

ښپېتول (ṣ̌peṭawál) مص. مت. پانه کول، شپېته کول، فانه کول، په پاني سره جزلوړ کول.

ښتره (ṣ̌atrá) ښځ. م. (ج. ښترې) د واړو لو نورو شيانو پاکولو آله.

ښتری (ṣ̌atráy) ص. نر. م. سوداګر هندو.

ښتګری (ṣ̌atgáray) نر. م. (ج. ښتګري) ښنګری، ګيتی، خنګری.

ښځکی (ṣ̌ajakáy) ښځ. م. د ښځي مصغر.

ښځلی (ṣ̌ajálay) نر. م. سورغوری، چوړکی، تروکی.

ښځمني (ṣ̌ajmaní) ښځ. م. ښځوالی، ښځتوب، ښځي والي، د ښځي صفات و خواص لرنه.

ښځمنې (ṣ̌ajmané) ښځ. ج. ښځي، زنانه.

ښځمينه (ṣ̌ajmína) ص. نب. ښځينه، د ښځي.

ښځنوکی (ṣ̌ajnukáy) نر. م. ښځونکه ښځونکی ښځولی؛ ۱) هغه نر چې خصوصيات يې د ښځو په شېر وي؛ ۲) مج. بې غېرته.

ښځنی (ṣ̌ajanáy) ص. نر. م. ۱) د ښځو، ښځينه ښځينی؛ ۲) ښځنوکی.

ښځه (ṣ̌ája) ښځ. م (ج. ښځي) د نر مقابل؛ ماينه، مېرمن، ماندينه، عورت.

ښځی (ṣ̌ájay) نر. م. د ښځي تناسلي آله.

**ښغي توب** (sajetob) نر.م. ۱) ښغه توب، ښغوالی؛ ۲) د ښغي غوره صفتونه درلودل.

**ښخرلی** (sacárlay) نر.م. سکنه، ښورلی، شرلی؛ د ترکاني پره آله ده.

**ښخیاکه** (sacyáka) ښځ.م. ښخویشکه، توتکی، غچی، توتکرکي، کوچی.

**ښخ** (sax) ص. نر.م. ج. ۱) خښ، دفن، مدفون؛ ۲) ننوتی، منهل شوی؛ ۳) ابېودلی، لګولی.

**ښخند** (saxánd) نر.م. ښخه، ښختنه، لن غښکی، پلندی، یزه، ښخندی، د سربښوونو، هغه ځای یا معامله چې سړی تري ځان نه شي خلاصولای.

**ښخندی** (saxandáy) ښځ.م. د کوچنیانو د یوې لوبې نوم دی.

**ښخوالی** (saxwālay) نر.م. ۱) خښوالی، دفن والی؛ ۲) کلکوالی؛ ۳) لګوالی.

**ښخول** (saxawə́l) مص.مت. ۱) خښول، دفن کول؛ ۲) ننهول، لګول؛ ۳) منهل.

**ښخوونی** (saxawū́nay) نر.م. د ښخولو آله.

**ښخېدل** (saxedə́l) مص.ل. ۱) خښېدل، دفن کېدل؛ ۲) ننهېدل؛ ۳) منهل کېدل؛ ٤) کلکېدل.

**ښرا** (sarā́) ښځ.م. (ج. ښراوې) و ګ. ښېرا.

**ښرغلی** (sarğálay) نر.م. مېږتون؛ د مېږیانو کور، د مېږیانو او نورو حشرو کور.

**ښرکنی** (sarkanáy) ښځ.م. خرکنی، کنډواله، خرابه، ویرانه.

**ښرن** (sarə́n) ص.نر.م. ښورنده ښوره ماغه، ښږنه، ښوره زار، ښوره لرونکی.

**ښرونکی** (sarū́nkay) نر.م. یو ډول بوټی دی چې پاڼې یې نری او سور ډنډر لري.

**ښروه** (sárwa) ښځ.م. خروه، ښېروه؛ یو ډول غرنی ونه ده.

**ښره** (sará) ښځ.م. ښوره، شوره، شناګه، شنګل.

**ښره مغزه** (saramágza) ص. ښ.ب. ښوره ناکه، ښوره زاره، ښوره لرونکي، ښرن.

**ښکار** (skār) نر.م. ون، ونا؛ د سپورټ یا غذا موندلو لپاره د وحشي حیواناتو یا مرغانو ویشتل او نیول.

**ښکارځای** (skārʒáy) نر.م. ښکارځی ښکارغلی، د ښکارځای.

**ښکارځن** (skārʒán) ص. نر.م. ج. ښکاري، وتی، ښکارزن.

**ښکارغالی** (skārğā́lay) ښکارغلی، ښکارځای.

**ښکارل** (skārə́l) مص. مت. ۱) شکارل، توش کول، د تکارل، سپې چاته یا ښکار ته پارول؛ ۲) منج. لمسول، کشکارل.

**ښکارند** (skāránd) ص.نر.م. و ګ. ښکارندوی.

**ښکارندوی** (skārandóy) نر.م. ۱) ښکاره، څرګند، ښکارنده؛ ۲) اوځار، مشهور.

**ښکارندويي** (skārandoyí) څرګندويي، استازګرنه، نماینده ګي.

**ښکارنده** (skāránda) ص. ښ.ب ۱) و ګ. ښکارند؛ ۲) ښکارندوني، سله، مرکچي، نماینده.

**ښکاروز** (skārwáz) نر.م. ښکوروز، بزګر، کریغ، کرګر، دهقان.

**ښکاروزتوب** (skārwaztób) ښکاروزي، بزګري، دهقاني، زمینداره، د کرکیلي کسب.

**ښکارول** (skārawə́l) مص. مت. ۱) ښکاره کول؛ څرګندول؛ ۲) ښکار کول، ونا کول؛ ۳) په نښه کول؛ ٤) ښورول، ښودل، لوڅول.

**ښکاره** (skārá) ص. ښ.ب. ۱) جوت، څرګند، ښودا؛ ۲) نر.م. د سپېتو یو ډول لوبه ده؛ ۳) یو ډول سپین ورله بوټی دی.

**ښکاري** (skārí) ص. نب. رنی، ښکارځن؛ هغه څوک یا حیوان یا مرغه چې ښکار کوي.

**ښکارېدل** (skāredál) مص.ل. ۱) ښکارکېدل، د ښکار چاره ترسره کېدل؛ ۲) څرګندېدل.

**ښکالو** (skāló) ښځ. م. ۱) څپهار، د پښو اواز؛ ۲) نښه، علامه؛ ۳) پس پسی، غوږی.

**ښکالوه** (skālawá) صٍ. نب. ۱) ګران، سخت؛ ۲) ښځ. م. ګرتې، کرکړ، زیاتې خبرې کول.

**ښکانځه** (skā́nja) ښځ. م. ښکنځا، زیاره.

**ښکتنی** (skatanáy) ص. نر.م. لاندېنی، کوزنی، لرنی، کښتنی.

**ښکته** (skáta) ق. کښته، کوز، لاندې، لر.

**ښکته والی** (skatawā́lay) نر.م ۱) ځوروالی، غوره مخ کښته، کوزوالی؛ ۲) ټهنه، کښتې.

**ښکر** (škar) نر.م. (ج. ښکرونه) ښاخ، ۱) د وزې، غوا، هوسۍ... په سرکې دوه د هډوکو راوتلي ښهان؛ ۲) د ژرندې تونکه.

**ښکرور** (skarawár) نر.م.ج. ۱) ښکری، ښکر لرونکی؛ ۲) مج. زورور، د زور خاوند.

**ښکروره** (skarawára) ښځ. م. ۲) پشپېری، یو دول مرغۍ ده؛ ۲) ص.ښځ.م. د ښکرور مؤنث.

**ښکری** (skaráy) نر.م. ۱) کرېس، کروستی، د حیواناتو پلی؛ ۲) ص. نب. ښکرور، ښکروره.

**ښکرۍ** (skaráy) ښځ. م. شکرۍ، له مرزې څخه جوړه شوې تورکرۍ.

**ښکل**[1] (skál) مص.مت. ۱) باسل، کاږل، ایستل، ویستل؛ ۲) الېرې کول؛ ۳) لیکل، کښل.

**ښکل**[2] (skwal) نر.م. ږچیه، خولګۍ، مچو، مچوکه.

**ښکلا** (skulā́) ښځ. م. (ج. ښکلاوې) ښایست، حسن، ډول، جمال.

**ښکلا پېژندنه** (skulāpežandána) ښځ. م. ښایست پوهنه، ښایست پېژندنه، د هنر فلسفه.

**ښکلل** (skwalál) مص.مت. ښکلی کول، ښایسته کول، ډولي کول، تزیینول.

**ښکلنه** (skulána) ښځ.م. سینګارونه، پسوللې، پسولنه، تزیین.

**ښکلونکی** (skulunkáy) نر.م. سینګارورونکی، پسولونکی، متزین.

**ښکلول** (skwalawál) مص.مت.و ګ. ښکولول.

**ښکلی**[1] (skwálay) ص. نر.م. ښایسته، ډولي، حسین.

**ښکلی**[2] (skálay) مف.نر.م. ۱) باسلی، ایستلی، ویستلی؛ ۲) کښلی، لیکلی.

**ښکنځا** (skanjā́) ښځ.م. ۱) ښکنځل، ښکنځله، کنځا، زیاره؛ ۲) سپکتیا، اهانت.

**ښکنځل** (skanjál) مص. مت.نر. ښکنځا کول، کنځل، زیارې کول، چاته بد ورد ویل.

**ښکنل** (skanál) مص. مت. ترل، سخت ویل.

**ښکنه** (skána) ښځ. م. کښنه، ویستنه، باسنه.

**ښکولول** (skwalawál) مص. مت. ښکلول، مچې کول، مچول، مچو اخیستل.

**ښکوم** (skum) نر.م. ورم، پند، نصیحت، نغوته.

**ښکومی** (skū́may) ص.نر.م. خواخوږی، خیرخواه، خیرغوښتونکی.

**ښکوی** (skuy) نر.م. لیکنه، کښنه.

**ښکې** (ske) ق. ۱) کښته، ښکته، کوز، لر، لاندې؛ ۲) پیل، شروع.

**ښکېل** (skel) ق. نښتی، ګېر، تړلی، بند.

**ښکېلاک** (skelā́k) نر.م. استعمار.

**ښکېلاکګر** (skelākgár) فا.نر.م. استعمارچي، استعمارګر.

**ښکېلول** (şkelawál) مص. مت. ۱) ښدول، ترل، نښلول راګیرول؛ ۲) دڅاروي ترل.

**ښکېلېدل** (şkeledál) مص. ل. ۱) تـړل کېدل، نښلېدل، راګیرېدل؛ ۲) پر غړک کېدل.

**ښکېنې** (şkenáy) ص. نـر.م. ښـکېنی، لـرنی، ښکتنی، کوزنی، لاندینی.

**ښکېنې وژی** (şkenaywážay) نر.م. لوی وژی، د باسلیق رګ، دانسان په لاس کې یو رګ دی.

**ښکیه** (şkiyá) ق. له لاندې خوا، دکښتې خوا.

**ښګلوني** (şaglúnay) نـر.م. یو ډول تیږه ده چې د لوږو ډېرېنې مردکې پرې سولول کېږي.

**ښل** (şal) نـر.م. ښـيل، لرکیـنه لاره، د لرګي زینه، اندرپایه، د لرګي ګرځنده زینه.

**ښلونه** (şlúna) ښځ.م. ګرمکه، ګرمکي، وړې وړې دانې دي چې د ګرمۍ له امله پر بدن راخېژي.

**ښمڅ** (şmác) ښځ.م. سمڅه، سمڅ، ښمڅه، ګاره، غار، سپونغاړی.

**ښمر** (şamár) نر.م. ګټه، نفع، خیر، فایده.

**ښنځري** (şanjáray) نر.م. سنځري، تنځري، تمځري، یو ډول مرغی دی.

**ښنځه** (şánja) ښځ.م. (ج. ښنځې) دمېله، شلنه، ښنجکی، سینجکی، لونه، دانه.

**ښند** (şand) نر.م. افراط، زیاتی، له حده تېری.

**ښند پال** (şandpál) افراطي، تېری کوونکی.

**ښندل** (şandál) مص. مت. ۱) پاشـل، شـيندل؛ ۲) جارول، ځارول، قربانول، بخښل.

**ښندواله** (şandwála) ښځ.م. ښندپالنـه، افـراط پالنه.

**ښنده** (şandá) نر.ج. ۱) شینده سوسته؛ ۲) قربانوره، ځاروه، بخښه؛ ۳) زیاتی.

**ښنډی** (şandáy) ښځ.م. و.ګ. شنډی ۲).

**ښنغلی** (şangálay) نر.م. مغانده، سربښنه، غښندی، ښنګسری، ښنګښر، مغانه، غښندی.

**ښنک** (şanák) نر.م. ۱) و.ګ. ښانک؛ ۲) ښنګ، کلکه شوې وینه؛ ۳) کنګل شوې ځمکه.

**ښنکی** (şanakáy) نر.م. و.ګ. ښانکی.

**ښنګ** (şáng) نر.م. ۱) ښنګ، ښوش، یو ډول بوټی دی چې خړې پاڼې لري؛ ۲) و.ګ. ښانک.

**ښنګر** (şangár) نر.م. و.ګ. ښانګر.

**ښنګروښ** (şangarwáş) نر.م. ښنګراوښی، وانښی، د ښېلې غوټه.

**ښنګري** (şangáray) نر.م. ۱) ښنګر، ښنګروانښی، یو رواز بوټی دی؛ ۲) دجولاد تانستې یوه آله ده

**ښنګسری** (şangsáray) نر.م. و.ګ. ښنغلی.

**ښنګل** (şangúl) نـر.م. ښنـګله، شـناګه، ښـریه، شنګل، شینګل، شوره.

**ښنګلن** (şanglán) نر.م. ښوره چن، تریو، ښورن.

**ښنګلی** (şangaláy) ښځ.م. منګ ځمکه، کته مته؛ هغه کلکه او سخته ځمکه چې اوبه نه جذبوي.

**ښنګلي مالګه** (şangalimálga) ښـځ.م. له ښنګل څخه جوړه شوې مالګه.

**ښنګوري** (şangoráy) ښځ.م.ج. متوزه، ښنګره؛ دنه، شیګره (و.ګ. شینګره).

**ښنګی** (şangáy) ښځ.م. ونډر، ښنګی، غرونډی؛ هغه پړی چې د څاروي په غاړه کې اچول کېږي.

**ښنه** (şna) ښځ.م. (ج. ښنې) ۱) ښانګه، ښنه، دورانه ذنښتې خوا؛ ۲) اندام، توټه، بند بند.

**ښنه** (şnu) ښځ.م. ۱) ښـنه؛ ۲) بند بند؛ ۳) د ورانه کونډی، د کوناتې هډوکی.

**ښنو** (şū) نر.م. خو، د دوو ګوتو په اندازه توکردی چې د ښـنګرې د بوټي په اوبو یې مینځي او بیا یې سره را نغاړي چې دې نه ښوراپي.

ښوانه (ṣwāna) نر.م. خاڼلی، ښونه، زېڅون، ښوون.

ښوبه (ṣūba) ښځ. م. شوخه، شوخکه، توتی، شیرذهن.

ښوبي (ṣwabáy) اص. نر.م. بې وسلې، تش لاسی. غیر مسلح.

ښوپه (ṣupá) اص. نر.م. ج. شوپا، شوپه، شوپې. نسته.

ښوځل (ṣucál) مص. مت. نیځل، سوری کول، سوری ایستل، برمه کول.

ښوځنی (ṣucanáy) ښځ. م. تیځی، برمه.

ښوځه[1] (ṣūca) ښځ. م. سوری، سوره، غار.

ښوځه[2] (ṣúca) ښځ. م. ۱) د ښلونه، گرمکه؛ ۲) ص. نب. مج. بې صبره، بې حوصلې.

ښودل (ṣodál) مص. مت. ۱) ښوول؛ ۲) لارښودنه کول، رهنمايي کول؛ ۳) وروزده کول.

ښودونکی (ṣodúnkay) فا. نر.م. ۱) ښوونکي، استاذ، معلم؛ ۲) لارښود.

ښور[1] (ṣor) نر.م ۱) ښورېدنه، خوځېدنه، حرکت؛ ۲) ښار؛ ۳) د مېږيانو او مچيو کور.

ښور[2] (ṣūr) نر.م. منهاوو، راکول، غاښور.

ښوربښ (ṣorbáṣ) نر.م. ښوربهت؛ ۱) حرکت، تلاطم؛ ۲) بلوا، اړودوړ، انارشي؛ ۳) هيجان.

ښورکی (ṣwukáy) نر.م. ښوری، تروزکی، تريوکی، سورغووی.

ښورماښور (ṣormāṣór) نر.م. ۱) شور و غوغا؛ ۲) دچينجيانو او نورو حشرو دېروالی.

ښورماغه (ṣormāğa) ص. نب. ښورن، ښوره ناکه، ښورنه، ښوره لرونکي ، شوره زاره.

ښورن (ṣorán) ص. نر.م. ښوره ناکه، ښوره زار.

ښورند (ṣorānd) ص. نر.م. ۱) ښورېدونکی، خوځېدونکی؛ ۲) لړزېدونکی برېښېدونکی.

ښوروا (ṣurwā) جن. ښځ. م(ج. ښورواوې) شوروا، زبېښه، زومنه، کتو، ښروا، شوربا، سوپ.

ښورواگی (ṣorwāgúy) جن. ۱) لږه ښوروا، کمه ښوروا؛ ۲) بې غوښو ښوروا؛ ۳) و گ. شکته.

ښورول (ṣurawál) مص. مت. ۱) خوځول، حرکت ورکول؛ ۲) منجول، لړزول؛ ۳) مج. تکان ورکول، راپارول.

ښوره (ṣora) جن. ۱) شوره، شناګه ښنکل، ښنګله؛ ۲) پارو؛ ۳) يو ډول بوټی دی.

ښوری (ṣóray) نر.م. ۱) و گ. ښورکی؛ ۲) يو ډول ناروغي ده چې د شاورو په سترگو کې پيدا کېږي.

ښورېدل (ṣoredál) مص. ل. ۱) خوځېدل، حرکت کول؛ ۲) منجېدل، رچېدل؛ ۳) پارېدل.

ښولنی (ṣolanúy) نر.م. ۱) يو ډول بوټی دی؛ ۲) کوچنی ښوون، د ښونه د وږي مصغر.

ښومک (ṣomák) نر.م. يو ډول ناروغي ده چې خره وژني.

ښوون (ṣowán) نر.م. و گ. ښوانه.

ښونګ (ṣúng) نر.م. ۱) غاو، لوتي، هغه سوری چې (د مردکو په لوبه کې) مردکي وراچوي؛ ۲) ښونګی، لېښه (لوبه)؛ ۳) د يوه شي ښنه.

ښونګری (ṣungaráy) نر.م. ښنګری، شونګری؛ ۱) د پښې بجلکه؛ ۲) د غواوو، غېلو او هوسيو گوتونه، د آسو، خرو او غاترو سوې، کړاوې.

ښونګړ (ṣungór) نر.م. پښه بېده دل، پښه ويده کېده.

ښونګه (ṣónga) ښځ. م. ښنه، گوټ، ژی.

ښونګی (ṣūnguy) نر.م. ۱) گوډ، نکوښی، گړدی؛ ۲) ښونګ، لېښه (لوبه).

**ښونلی** (ṣonaláy) نر.م. ۱) غوړګی، د ښونه کوچنی ونه؛ ۲) د ښونه د ونې میوه او دانې.

**ښونه** (ṣóna) نر.م. ښون، ښوون، د زیتون ونه.

**ښوول** (ṣowál) مص. مت. ۱) ښودل؛ ۲) وروزده کول، تعلیم ورکول؛ ۳) وربنکاره کول.

**ښوولی** (ṣowálay) نر.م. مدلول، دلالت کړی شوی، مانا.

**ښوونپښویه** (ṣowanpṣóya) ګر. ښوونځیواله ښویه، تعلیمي پښویه، د ښوونځي ګرامر.

**ښوونځی** (ṣowanjáy) نر.م (ج. ښوونځي) مکتب؛ د زده کړې او ښوونې ځای، د لیک لوستو زده کړې او د علومو د تدریس ځای.

**ښوونډ** (ṣowánd) نر.م. دال، دلالت کوونکی، لفظ.

**ښوونکی** (ṣowúnkay) نر.م. ۱) معلم، استاذ، استاد، لارښود؛ ۲) ښودونکی؛ ۲) وربنکاره کوونکی.

**ښوونه** (ṣowána) ښځ.م. ۱) ښودنه، ورزده کونه، تعلیم ورکول؛ ۲) درس ورکول، تدریس کول.

**ښوونه او روزنه** (ṣowána aw rozána) ښځ.م. د ښوونکي دنده او مسؤلیت، مېتود، ښوونه، تعلیم و تربیه.

**ښوونیز** (ṣowaníz) نر.م. په ښوونې اړوند: تعلیمي، تدریسي.

**ښوهول** (ṣwahawál) مص. مت. ښویول، غولول، دروهل.

**ښوهېدل** (ṣwahedál) مص.ل. ښویېدل، غولېدل، دروهېدل.

**ښوی** (ṣway) ص. نر.م. ج. ۱) ښویه، اوار، د ځیږ مقابل؛ ۲) مج. غولوونکی؛ ۳) نر.م. و.ګ. ۱) ډډګی؛ ۲) راشپیل، راشپیل.

**ښوی سری** (ṣwaysaráy) نر.م. دوه مخی سړی، منافق، په ژبه پوست و پاته وروست.

**ښوی ښالاک** (ṣwayṣālák) ق. ۱) و.ګ. ښوی ښهاک؛ ۲) د کلاو د ښوال یو صفت دی چې د ښوالونه یې ښوی، مستحکم وي؛ ۳) تربېلی، تره هېلی؛ ٤) تش تور، تش لاس.

**ښوی ښهاک** (ṣwayṣahák) ق. ښوی ښالاک، ناځاپه (ورکېدنه)، ښوی ښاک ورکېدنه، ناپېره ورکېدنه.

**ښویکی** (ṣwayakáy) ښځ.م. د یوې مرغۍ نوم دی.

**ښویکی** (ṣwayakáy) ص. نر.م. و.ګ. ښوی سړی.

**ښوین** (ṣawín) نر.م. د ښه نظر ښېښتن، د ښه نظر خاوند.

**ښویند** (ṣwayánd) ص. نر.م. ښوینده، ښوی شی، لشم (ښیز).

**ښویندوکی** (ṣwayandúkay) نر.م. ۱) هغه ځرګ چې ښویږي؛ ۲) غولېدونکی، دروهېدونکی، غلطېدونکی؛ ۳) هغه ځای چې خلک ځانونه پاندې ښویږي.

**ښویندی** (ṣwayánday) ص. نر.م ۱) ښوی، ښویه، صاف؛ ۲) ښویېدیز (یخمالک).

**ښویوالی** (ṣwaywálay) نر.م. ۱) ښویتوب، لشمتوب؛ ۲) مج. چالاکي.

**ښویول** (ṣwayawál) مص. مت. ۱) په ګنګل یا بل ښوی شي ښوول یا غورځول؛ ۲) دروهل، خطا ایستل؛ ۳) اوارول، هوارول.

**ښویه** (ṣwáya) ص. نښ. و.ګ. ښوی ۱).

**ښوېدل** (ṣwayedál) مص.ل. ۱) سلیپ کول، په ګنګل یا بل ښوی شي غورځېدل؛ ۲) غولېدل؛ ۳) بې لارې کېدل.

**ښه(۱)** (ṣa) ص. نسر.م.ج. ۱) د صفت په توګه او د رضایت، تایید، ستاینې، خوښې څرګندولو لپاره یوه کلیمه ده؛ ۲) رغېده، روغتیا مونده، رغېدنه.

**ښه(۲)** (ṣu) ص. نر.م. نېکي، مرسته، لاسنیوی.

**ښها** (ṣahā́) ښځ.م. ۱) نعمت؛ ۲) بخښنې، ورکړه، پیها، بخښنه.

**ښهاک** (ṣahā́k) ص. نر.م. ج. ښوی (۱).

**ښهانه** (ṣahā́na) ښځ.م ۱) ښېګڼه مېهانه، نېکي، ښه‌ښېګړه؛ ۲) فایده، ګټه.

**ښه‌اوبد** (ṣaawbád) نر.ج. -بد.) که یو شاعر په خپل شعر کې څښتن داسې کلیمې راوړي چې لول بد او وروسته مدحه څني جوړه شي.

**ښه‌ترا** (ṣatará) ق. په ښه‌ډول، په ښه توګه.

**ښه‌ترښه** (ṣatarṣá) ص.نر.م.ج. ق. لا ښه، ښه تره، بهترین، تر هغه لا ښه.

**ښه‌توب** (ṣatób) نر.م. ښه‌والی.

**ښه‌چاری** (ṣačā́ray) ص. نر.م. ښه کروني، نېک، نېک عمله.

**ښه‌چارې!** (ṣačā́re) ند. د سلام او خیرخواهی څرګندونه ده.

**ښه‌راغلې** (ṣarā́ğle) ند. هرکله راشي استړي مه شې! په خیر راغلي، ښه راغلاست.

**ښه‌کلو** (ṣakló) ښځ.م. ښه‌ورغ، رفاه، نېکمرغي.

**ښه‌کول** (ṣakawə́l) مص. مت. ۱) جوړول، رغول (له ناروغۍ)؛ ۲) نېکي کول، مرسته کول.

**ښه‌کېدل** (ṣakedə́l) مص. ل. ۱) روغېدل، له ناروغۍ جوړېدل؛ ۲) پخلا کېدل.

**ښهل** (ṣahə́l) مص.مت. ۱) بې برخي کول، محرومه کول، شړل؛ ۲) عاق کول، عاقول.

**ښه‌لوهی** (ṣa lóhay) د چې اشتها درلودونکی.

**ښه‌مرغ** (ṣamarğ) نر.م. ښه بخت، ښه طالع، ښه نصیب، نېک پال، ښه ستوری.

**ښه‌مرغی** (ṣamárğay) ص.نر.م. بختور، نېکمرغه نېکبخت، نېکبخته.

**ښی** (ṣay) ص. نر.م. راسته، راست، د کیڼ مقابل.

**ښي** (ṣe) ښځ. م. ښین، د «ښ» اواز و تلفظ.

**ښیالمې** (ṣyā́lme) ښځ. م. چرمې، وږې، ناري؛ لاتي، لیاري؛ د خولې لاړې.

**ښیځ** (ṣij) نر.م. غونډک، غونډل، کوکې، (و ګ. غونډل).

**ښېځه** (ṣéja) ښځ. م. ښځي، خرېښکې، نرغوټ، د ګنډنې په څېر یو ډول غرنی سابه دي.

**ښېرا** (ṣerá) ښځ. م. (ج. ښېراوې) ښېراه، ښېرا، د دعا ضد.

**ښېراز** (ṣerā́z) ص. نسر.م. ۱) تازه، سمسور؛ ۲) آباد؛ ۳) مج. ښاد، خوښ، خوشاله.

**ښېرازتوب** (ṣerāztób) نر.م. ښېرازتیا، ښېرازي؛ ۱) سمسورتیا؛ ۲) آبادي؛ ۳) خوښي.

**ښېرازول** (ṣerāzawə́l) مص.مت ۱) سمسورول؛ ۲) آبادول؛ ۳) خوښول، خوشالول.

**ښېرازېدل** (ṣerāzedə́l) مص. ل. ۱) تازه کېدل، سمسورېدل؛ ۲) ودانېدل؛ ۳) خوښېدل.

**ښېرون** (ṣerún) نر.م. د ښونه‌دوني په څېر یو ډول غرنۍ ونه ده.

**ښېرونه** (ṣerwā́na) ښځ.م. تیتاقه، وروی، اوګی، دښتو یا شنې (ونه)، د ځنجک ونه؛

**ښېروه** (ṣerā́wa) ښځ.م. ښېروه، شېروه، یو ډول غرنۍ ونه ده چې کلکې لښتې لري.

**ښېره** (ṣerá) ښځ. م. و ګ. ښېرا.

**ښیښه** (ṣiṣá) ښځ.م ۱) شیشه، هغه رڼه تخته چې په کړکیو کې اچول کېږي؛ ۲) هینداره، آینه.

ښی ګرځ ( saygár̤ ) اسر. ند. د عسکري پوه قوماندهده.

ښېګړه ( ṣegára ) پښ. م. و ګ. ښېګڼه.

ښېګڼه ( ṣegáṇa ) پښ. م. ( ج. ښېګڼې ) ۱ ) ښه، ښېګړه، ښېګي، مرسته؛ ۲ ) ښه‌والی، فايده‌من، ګټورتوب.

ښېيل ( ṣayál ) مص. مت. و ګ. ښودل او ښيل.

ښېلی ( ṣélay ) نر. م. ۱ ) و ګ. سېلۍ؛ ۲ ) اشلوپي.

ښيښه ( ṣína ) پښ. م. خوښيښه، خوشينه، د مايني خور، د ښځې خور.

ښيوني ( ṣayúnay ) فا. نر. م. ښودونکی، ښوونکی، لارښود.

ښېوه ( ṣewá ) پښ. م. ۱ ) ډول، سينګار، ترايش؛ ۲ ) ناز، کرشمه

ښېوه ګر ( ṣewagár ) ص. نر. م. ډولي، سينګاري.

ښېيل ( ṣeyál ) مص. مت. و ګ. ښوول.



# ص

**ص**[1] (swắt) نر.م. د پښتو الفبې پنځه ویشتم توری چې ابجدي لړ زښت یې ۹۰ دی.

**(ص)**[2] (swắ) نر.م. د صلی الله علیه وسلم لنډون.

**صابر** (sābír) ص. نر.م.ج. (ج. صابران) ۱) صبر کوونکی، پېښیالی؛ ۲) قانع؛ ٤) حوصله ناکی

**صابون** (sābū́n) نر.م. یوه ماده ده چې د مایع، پوډر، چکی... په شکل وي، له مېښلو سره ځګ کوي او خلک یې د غاښو او کالیو پرېولو لپاره کاروي.

**صابي** (sābí) ص. نر.م. صابئین، صابئه، مشرک، د بت یا ستورو عبادت کوونکی.

**صاحب** (sāhíb) نر.م. ۱) خاوند، څښتن، مالک؛ ۲) یار، مل، ملګری، اشنا.

**صاحب زاده** (sāhibzādá) یښ.م. د روحاني شخص لولاده.

**صاحب منصب** (sāhibmansáb) نر.م. عسکري منصبدار، په اردو کې د لوړ رتبې لرونکی.

**صاحبي** (sāhibí) نر.م.ج. ۱) وګ. سابي؛ ۲) ی. د ول ورېښمین توکر دی.

**صادر** (sādír) ص. نر.م.ج. ۱) بهر ته تلونکی، لېږل کېدونکی؛ ۲) بهر ته راګرځېدنه؛ ۳) مج. څرګندېدونکی، پېښېدونکی.

**صادرات** (sādirā́t) نر.ج. صادرېدونکي شیان، تر ملک د باندې استول کېدونکي شیان.

**صادرول** (sādirawál) مص.مت. لېږل، استول، بهر ته استول.

**صادره** (sādirá) ص. نب. د لېږلو، د استولو، په صادر پورې تړلې، د وارده ضد.

**صادرېدل** (sādiredál) مص. ل. لېږل کېدل، استول کېدل، خارج ته تلل.

**صادق** (sādíq) ص. نر.م. رېښتونی، سم، صاف.

**صاعد** (sāʿíd) ص. نر.م.ج. ختونکی، پورته تلونکی، لوړېدونکی.

**عنبري** (ʕanbarí) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) دعنبر، په عنبر اړوند ؛ ۲) ښه بوی لرونکی، عنبرین.

**عندلیب** (ʕandalíb) نر. م. چوښی، بلبل، بلبله.

**عنصر** (ʕunsúr) نر. م ۱) اصل، لر؛ ۲) ماده، بسیط جسم؛ ۳) عناصر اربعه: باد، خاوره، اوبه او اور؛ ٤) ک. هغه جسم چې ټول لـه هغـو اتمـو څخه جـوړ شوی وي چې یو اتومي عدد لري.

**عنعنه** (ʕanʕaná) ښځ. م. (ج. عنعني) ۱) روایت، نقل؛ ۲) دود، رسم، رواج، دستور، عرف، لاره، تره.

**عنقا** (ʕunqá) نر. م. ورک مرغه، «سیمرغ»؛ یو افسانوي ستر مرغه دی.

**عنقریب** (ʕanqaríb) ق. ژر، ژر به ... نیږدې، ژر تر ژره به ... .

**عنکبوت** (ʕánkabut) نر. م. و ګ. غني.

**عنوان** (ʕ(u,i)nwán) نر. م. ۱) سرلیک، سرنامه؛ ۲) سریزه، مقدمه؛ ۳) نښه، نښاني، پته.

**عواطف** (ʕawātíf) ښځ. م. ۱) د عاطفه جمع؛ ۲) انفعال (خوښي او ویر) چې د بر لي په مجرده او بسیطه توګه پاته کیږي.

**عوام** (ʕawám) نر. ج. د (عامه) جمع، وګړي، خلک؛ د یوې ټولنې یا هېواد اکثریت.

**عوام فریب** (ʕawāmfaríb) ص. نر. م. ج. عوام غولوونکی دخلکو تېرایستونکی، دیماګوګ.

**عوامل** (ʕawāmíl) نر. م. دعامل جمع ۱) کاریګران؛ ۲) دکار غوایان؛ ۳) فاکتورون.

**عوامي** (ʕawāmí) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. ولسي وګړنیز، د خلکو، د وګړو، د عوامو.

**عود** (ʕud) نر. م. ۱) لرګی؛ ۲) لـه وني څخه پري شوی ښاخ؛ ۳) د هند و هندوچین د سیمو یو دول ونه ده چې له لرګي څخه یې د سوځېدلو په وخت

په ورو ولاړیږي؛ ٤) د موسیقۍ یوه تاریزه لو لېندۍ والا آله ده.

**عورت** (ʕawrát) نر. م. ۱) پټ ځای، شرم ځای؛ ۲) تناسلي آله؛ ۳) ښځه.

**عورته** (ʕawráta) ښځ. م. و ګ. اورته.

**عوض** (ʕiwáz) نـر. م. ۱) بدل، الش، یو شی د بل شي په بدل کې ورکول؛ ۲) بدل، موخې.

**عوضي** (ʕiwazí) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) ځای ناستی، جانشین؛ ۲) موخی؛ ۳) په عوض اړوند.

**عهد** (ʕáhd) نر. م. ۱) ژمنه، قول، وعده؛ ۲) تړون، بندن؛ ۳) زمان، روزګار؛ ٤) وفا؛ ٥) قسم.

**عهدنامه** (ʕáhdnāmá) ښځ. م. تړون لیک، بندن لیک، د قرارداد پاڼه، لوزنامه.

**عهده** (ʕuhdá) ښځ. م. ۱) ذمه، غاړه؛ ۲) کفالت؛ ۳) مسوولیت؛ ٤) تړون، پیمان؛ ٥) مج. وظیفه.

**عیادت** (ʕiyādát) نـر. م. د ناروغ لیدو ته تګ و د ناروغ پوښتنه کول.

**عیار**[1] (ʕiyár) نـر. م. ۱) امتحـان، لزمېښت؛ ۲) د سرو یا سپینو زرو د اندازې سنجولو مقیاس.

**عیار**[2] (ʕayár) ص. نر. ج. ۱) څوک چې ډېر تګ وراتګ کوي؛ ۲) چماړ، تګ؛ ٤) په منځنیو پېړیو کې زمونږ د هېواد یوه ډله چې کاریې ځواني کول، له ځانه تېرېدنه او کله د مذهب د اصولو یا فروعو سره لېوالتیا نه درلودل.

**عیاش** (ʕayyáš) ص. نـر. م. ج. عیشي، میله باز، میله یي، چرچه یي.

**عیاشي** (ʕayyāší) ښځ. م. ۱) چرچې، میلې، عیش کول؛ ۲) وزګارتیا، لوچکي.

**عیال** (ʕayál) نر. م. (ج: عیالونه) ۱) ارینر، بال بچ، ښځه او اولاد؛ ۲) ښځه، ماندینه، کډه.

**عيان** (ʕ(a,i)yán) ص. نر.م.ج. ۱) الوڅار، جوت، ښرګند؛ ۲) په لېدلو باندې يقين؛ ٤) معاينه.

**عيب** (ʕayb) نر.م. (ج. عيبونه) ۱) نقص، نقصان، بدي، نيمګړتيا؛ ۲) بدنامي؛ ۳) ګناه.

**عيبجن** (ʕaybján) ص.نر.م.ج. ۱) عيبناکه، عيبي، نقصاني؛ ۲) مضر، ضررناکه.

**عيد** (ʕid) نر.م. ۱) اختر؛ ۲) جشن، د جشن ورځ.

**عيدګاه** (ʕidgáh) ښځ.م. اخترځی، هغه ځای چې په هغه کې د اخترونو لمونځونه کېږي.

**عيسويت** (ʕisawyát) نر.م. مسيحيت، عيسايت، د کرېشتانيانو دين، نصرانيت، د حضرت عيسی (ع) دين، عيسوي دين.

**عيش** (ʕayš) نر.م. ۱) مزې، عشرت، چرچې؛ ۲) ژوند، ژوندون.

**عين** (ʕayn) نر.م. ۱) سترګه؛ ۲) د «ع» د توري لولز؛ ۳) ذات، نفس؛ ٤) خالص، واضح؛ ٤) څښتن؛ ٥) ص. نب. عيناً، عيني، کټ مټ، ښېر، ورته، يو، يو شان؛ ٦) چينه.

**عين اليقين** (ʕaynulyaqín) نر.م. ۱) په سترګو د يوه شي ليدنه او د دې شي ماهيت په يقين سره درک کول؛ ۲) تص. د لوی څښتن تعالی د عينو صفتو د تجلياتو شهود.

**عينکې** (ʕaynáke) ښځ.م.ج. سترګې، عينک، چشمې، چشمکې.

**عيني** (ʕayní) ص.نب.نر.م.ج ۱) په عين اړوند؛ ۲) سکه، سکنی؛ ۳) فل. مادي، په سترګو د ليدو وړ، آبجکتيف، آبژکتيف، آفاقي، د ذهني ضد.

**عينيت** (ʕaynyát) نر.م. ۱) په سترګو د ليدني حالت، آفاقيت، د ماديت وصف؛ ۲) کټ مټ والی، يوروالزتوب؛ ۳) من. د عينيت او ذاتيت مبدا، د تفکر يو پرنسيپ دی.